بسم الله الرحمن الرحيم

فَمَن يَكْفُرْ بِالطَّاغُوتِ وَيُؤْمِن بِاللَّهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَىٰ لَا انفِصَامَ لَهَا وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ. (البقره ٢٥٦)

# الدورة الشرعية في رد القوانين البشرية

من افادات

الشيخ ابى محمد رحمه الله تعالى

دويم چاپ

سره د زیادت او تخریج نه

# فــــهرســـت

## تمهيدى كلمات

الحمد لله والصلاة والسلام على رسول الله ، وبعد !

كله چه دا امت په عروج باندې وو نو ددې د علماؤ او فقهاؤ د توجه او سوچ مرکز دا وو چه هغوی به د بهرني فکري يرغل نه اسلامي عقيدے بچ اوساتي ، د علم او عمل په ميدانونو کې د کافرانو د حملو مقابله اوکړي ، او د حق دين پاک او صفا دعوت په ټوله دنيا کې خور کړي ، او دا دعوت په دليلونو ، ثبوتونو او د تورې او ډهال په ذريعې سره غالبه کړي ، او د بې لارو ډلو تحريفونه د اهل سنت خواته پرې نږدې ، او د دين روښانه مخ باندې چه د زمانې تيريدو سره کوم ګردونه غورځيدلي هغه په ډير خائسته انداز سره صفا کړي ، چه الله تعالیٰ د خپل دين د حفاظت کومه وعده کړې ده چه د هغې په پوره کيدو او تکميل کې د هغوي برخه هم اوليکلے شي ، په دغه وجه ددې امت عالمان به کله د روم او فارس په وړاندې د جهاد په ميدان کې په جګړه وو ، کله به د خوارجو او روافضو د فتنو سره په علمي او عملي مقابلو کې مشغول وو ، کله ئې د يوناني فلسفې د زهريله حملو نه ددې امت عقيدې بچ ساتلې وے ، کله ئې د باطني فرقو د سازشونو نه امت خبردار کړے دے ، کله ئې د ظالمو حاکمانو مخې ته د کلمه حق د وئيلو په وجه تکليفونه برداشت کړي ، او کله ئې د تاتاريانو او کله ئې د صليبيانو د حملو دپاره امت د غفلت د خوب نه را پاڅولو ، د الله جل جلاله رحمتونه دې وي په هغه عالمانو او امامانو باندې .

بيا کله چه په امت باندې زوال شروع شو ، نو ترجيحات بدل شول ، امت د بهرنئ خطرو نه مخ واړولو ، نو په داخلي او کورنئ اختلافاتو کې اخته شو ، د امت د عالمانو په مينځ کې هم د مسلمانانو د متفقه اصولو او عقائدو د حفاظت نه زيات په فروعي بحثونو کې د زور رجحان زياتيدو ، د شريعت د نافذ کولو نه ئې د خپل مکتبه فکر د غلبې جذبه زياتيدله ، او په نتيجه کې دا امت خپل داخلي او کورني اختلافاتو کې داسې اخته شو ، چه د بهرني هر قسم يرغل دپاره دروازے کهولاؤ شوې ، او په دغه دروازو باندې نه څوکيدار او نه محافظ باقي پاتې شو ، بغير د لږ اهل علم او اهل درد نه چه حالانکه دومره لګ اهل علم د دومره

لوئي محاذ دپاره نه ناکافي کيږي .

حاصل دا چه مغرب مونږه نه صرف په عسکري او سياسی توګه مغلوب کړو ، بلکه د مغرب ګنده او مرداري شرکي عقيدې هم په امت کې را دننه شوے ، او د اسلام بنيادی اصولو سره مخالف نظرياتو او خيالاتو ته هم عين اسلام اوئيل شو ، د اسلام يوه داسې تشريح کيږی چه حاضر او موجوده نظام او د غالب تمدن (تهذيب ) سره مفاهمت باندې مبنی وي ، بلکه د هغې هر قسم عقيده او تصور د اسلام نه ثابته وي ، دې نزدې تيره زمانې پورې هم دغه غلامانه ذهن لرونکو او سقوط لرونکو قومونو هم دغه طريقې زمونږه په علمي فضا باندې واکمنې کړې ، او ددې خلاف مقابله کونکې آوازونه کمزورې کيدل .

خو الله تعالیٰ ددې دين د حفاظت وعده کړې ده ، دا د الله تعالیٰ آخري دين دے او ددې په خپل طبيعت کې د کافرانو د اميد نه څه ډير زياته د بغاوت او مقابلې ماده جذبه او قوت موجود دے ، نو د الله تعالیٰ په فضل سره په تيرو څو کلونو کې ... خصوصا د روس خلاف جهاد او بيا د 11 ستمبر پيښو ( واقعاتو ) نه روسته ... پدې امت کې يو ځل بيا د بيدارئ يو عمل شروع شو ، د بهر نه راتلونکې فکري او عسکري يرغل په مقابله کې کمزوري آوازونه دوباره مضبوط شول ، د مجاهدينو غريبي او نا اشنائي لرې کيږي ، او حق ويونکو عالمانو شمير ورځ په ورځ زياتيږي ، او امت بيا عروج طرف ته قدم واخستو ، او ددې سفر د شروع يو ښکاره دليل دا دے : چه د امت اهل علم ، د عربو او عجمو په ديني او مذهبي خلقو کې الله تعالیٰ داسې اشخاص را پورته کوي چه کوم د سلفو علماؤ پشان امت ته را مخ ته شوې حقيقی خطرو طرف ته متوجه شول ، او د بهرنې يرغل په خلاف د بند تړولو کار کوي ، امت د فروعي او نظري بحثونو نه را اوباسي او اصولي او عملي مسئلو طرف ته ئې متوجه کوي، او خصوصا د مغرب چه کوم زهريله فکرونه په مونږ کې را دننه شوي د هغې د پيژندلو کول، او د هغې مخ نيوے کول او د اسلام پاک او صفا تعليماتو لره په خپل اصلي رنګ کې د وړاندې کولو دپاره کوشش کوي .

ستاسو مخې ته چه کومه شرعی دوره د کتاب په شکل کې موجوده ده ، دا د وخت يو اهم

ضرورت پوره کوي ، او د نن ورځې د ټولو نه لوئې فتنې ، د جمهوريت د فتنه ( ډيموکراسۍ ) حقيقت ښکاره کوي ، په دوره کې د جمهوريت په حقله په تفصيل سره بحث کوي .

ځکه چه اوس په دې دور کې دين اسلام ته نقصان رسونکي فتنو کې په وړومبي نمبر د جمهوريت فتنه ده چه په پوره زور او شور سره قائم او ولاړه ده ، چه د هغې جرړې په پوره دنيا کې موجودې دي ، د عالم اسلام علاقے هم ددې فتنې نه بچ نه شوے ، يوه زمانه وه چه مسلمانانو د الله د حکم نه علاوه د خلقو په حکم باندې عمل کول خو لرې خبره ده بلکه د هغې د منلو نه هم منکر وو .

ډيره زياته د افسوس خبره ده !! چه مسلمانان هم د جمهوريت په دې فتنه کې په بې ارادې او ارادې سره مبتلا شول ، او په مختلفو طريقو سره ئې د واګې قابو کړي دي ، ظلم دپاسه ظلم دا چه ځنې خلق خو ددې اسلامي کيدلو په کوشش کې لګيا دي ، او د اسلامي جمهوريت پشان چمکدار اصطلاح ګانې ئې ورله وضع کړي دی او دې جمهوريت لره د اسلامي جوړولو په فکر کې مشغول دي ، حالانکه د جمهوريت په حقيقت ، ددې په تعريف ، ددې په مقاصدو او ددې په وضع کونکو که چرې سوچ اوکړے شي نو د نمر پشان به دا حقيقت مخې ته راشي چه جمهوريت ( که مغربي جمهوريت وي يا زمونږ په ملکونو کې اسلامي جمهوريت ) په خپل مقاصدو او اصلي جوړونکو په لحاظ سره د خلافت د نظرئې ضد دے ، چه په کې د الله تعالیٰ حاکميت په ځائې د غير الله يعنی د عوامو او پارلمان حاکميت منلی شي ، هم دغه وجه ده چه محققينو علماؤ جمهوريت ته کفر او شرک وئيلے دے .

نن صبا يوه مسئله دا هم ده چه د قرآن او سنت واضحه او ښکاره نصوصو ته نه کتل کيږی ، او په هره خبره کې څوک شخصيت پرستۍ پسې روان دي ، څوک قوم پرستۍ پسې روان دي ، اهل حق علماؤ له دې الله بدله د خير ورکړي ، چه هغوي دنورو فتنو سره سره ددې فتنې د جمهوريت هم ښه آپريشن کړے دے ، او ددې حقيقت نه ئې پرده اوچته کړے ده .

البته ! دا جدا خبره ده چه نننې دور د سهولت پسندئ دور دے عام خلق خو لرې خبره ده بلکه علماء او طلبه هم د سهولت پسندئ لوجے نه ځان دپاره غلط غلط مصلحتونه جوړ

کړي او حق ویلو او قربانئ ته تیار ندي .

په آخره کې د الله تعالیٰ نه دعاء کووم چه دغه دوره د جمهوریت د بت ماتولو ذریعه اوګرځوي ، او بالخصوص د اهل دین طبقو لره ددې جادو نه د ویستو سبب اوګرځوي ، اے الله ! ددې دورے په ذریعه د مسلمانانو په ختېونو د مسلط شوس باطل نظام بدوالے ، د جمهوریت د دین اسلام سره تضاد او د مغربي فکرونو د اسلامي عقیدو سره مخالفت ، په دې ملکونو کې د اوسیدونکو مسلمانانو په ذهنونو او زړونو باندې را کهولاؤ کړې ، چه هغوي خپل ژوند ددې نظام په ورانولو ، د مغربي عقیدو ، مغربي فکرونو او د مغربي ژوند طریقو نه نجات موندلو ، او ددې په ځائې اسلامي عقیدے عام کولو ، او د اسلامي ژوند طریقو د رائج کولو او د شرعي نظام د نافذ کولو دپاره وقف کړي ، آمین !

الله تعالیٰ دې زمونږه دا کوشش په خپل دربارِ عالي کې قبول او منظور کړي .

إن أريد إلا الإصلاح ما استطعت وما توفيقي إلا بالله

از طرف کاتب : ابو عاصم .

**********

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

إِنَّ الْحَمْدَ لِلّٰهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّاٰتِ أَعْمَالِنَا مَن يَّهْدِهِ اللّٰهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَن يُّضْلِلْ فَلَاهَادِيَ لَهٗ ، وَأَشْهَدُ أَن لَّآاِلٰهَ اِلَّااللّٰهُ وَحْدَهٗ لَاشَرِيْك لَهٗ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ ، أما بعد : فأعوذ بالله من الشيطن الرجيم ، بسم الله الرحمن الريحم : يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ حَقَّ تُقٰتِهٖ وَلَا تَمُوْتُنَّ اِلَّا وَاَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ۝ [1]

يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمُ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ وَّ خَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيْرًا وَّنِسَآءً ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْ تَسَآءَلُوْنَ بِهٖ وَالْاَرْحَامَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيْبًا ۝ [2]

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَ قُوْلُوْا قَوْلًا سَدِيْدًا ۝ يُّصْلِحْ لَكُمْ اَعْمَالَكُمْ وَ يَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ ۭ وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيْمًا ۝ [3]

أَمَّابَعْدُ : فَإِنَّ اَصْدَقَ الْحَدِيثِ كِتَابُ اللّٰهِ وَاَحْسَنَ الْهَدْيِ هَدْىُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّم وَشَرَّ الْأُمُورِ مُحْدَثَاتُهَا وَكُلّ مُحْدَثَةٍ بِدْعَةٌ وَكُلّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ وَكُلّ ضَلَالَةٍ فِيْ النَّارِ .

اللهم رب يسر ولا تعسر وتمم بالخير ، وبک نستعين ، يافتاح يافتاح ، إفتح خزائن هذا العلم.

حاضرينو محترمو ددې مبارک محفل الله سبحانه وتعالیٰ دې ابتداء او انتهاء په خير او عافيت سره اوکړي ، او الله تعالیٰ دې په کې خير او برکت واچوي ، او الله تعالیٰ دې په دې باندې مونږ ته د عمل کولو توفيق راکړي ، داسې محفلونه او داسې مواقع ډير کم ميلاويږي ځکه چه زندګي خو هسې هم يوه ډيره مصروفه شوے ده ، او بيا د جهاد زندګي دا ډيره يوه مصروف ترينه زندګي ده ، چه الله مونږ له پديکې يو داسې موقع راکړه نو په هغې باندې د الله ډير شکر اداء کول پکار دي ، او دا څه نوے طريقه نده مخکنی دور کې به اکثر سلف

---

(1) [ سورة آل عمران : ١٠٢ ] .

(2) [ سورة النساء : ١ ] .

(3) [ سورة الأحزاب : ٧٠ ـ ٧١ ] .

صالحين راجمع شول په يو مجلس کې او دا به ئې اووئيل چې : «**تَعَالوا نُؤْمِن سَاعَةً**» " راځئ چې لږ وخت د ايمان مذاکره وکړو "، او دا مونږ او تاسو چې دا درس کوو نو دا هم يوه مذاکره ده ددې دپاره چې پدې سره الله تعالیٰ زمونږ او ستاسو ايمان راتازه کړي .

**تنبيه** : دا مونږ چې کوم درس کوو نو دا نه افتاء ده او نه پوره علم دے بلکه دا صرف يوه طريقه او يوه لاره پيژندل دي هسې نه چه بعضو ملګرو علم نه وي کړے او بيا ددې نه بعد دا مقصد واخلي چه د فتوی لږولو کار شروع کړي ، نو د داسې کار نه به ځان ساتو ، ځکه چې سړي پوره عالم نۀ وی نو بيا په هره خبره سړے کافر کوی ، او په چا باندې د کفر فتوی ورکول ، نو دا ډيرے ګرانی او مشکلې خبرے دي ، الله سبحانه وتعالیٰ دې زمونږ او ستاسو د ژبو حفاظت اوکړي .

دا شرعی دوره چې مونږ کوو نو صرف پدې آيات باندې دعمل کولو دپاره ، لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَخُذُوهُمْ وَٱحْصُرُوهُمْ وَٱقْعُدُواْ لَهُمْ كُلَّ مَرْصَدٍ ﴾ [1]

" يعنې تاسو دوي ونيسئ ، او محاصره ئې کړئ ، او په هره مورچه کې دوی ته کينئ ".

بعضې علماء کرامو دا ليکلي دي چه د هرے مورچې مطلب دا دے : چه دوی په کومې طريقې سره ستاسو مقابله کوي ، نو په هغه طريقې سره د دوي مقابله اوکړئ ، که دوي چرې ستاسو مقابله په اعلامي جنګ سره کوي نو تاسو ورسره په اعلامي جنګ کې مقابله اوکړئ، که دوی چرې تاسو سره د اسلحې په جنګ کې مقابله کوي نو په هغې کې ورسره هم مقابله اوکړئ په هره طريقه کې د دوي سره مقابله وکړئ .

خو نن کفر يو ترتيب جوړ کړے دے ، څۀ وخت مخکې په خبرونو کې ئې دا خبره کړے وه چه په امريکه کې يو سکول کولاؤ شو او په هغې کې صرف د درې مذهبونو متعلق بحث او درسونه به کيږي ، او په هغې کې به د هغوي مقصد دا وی چې د اسلام يو بزدلانه تصوير پيش کوی ، چه اسلام څه غيرتي او امن والا دين خو ندے بلکه جنګ او جګړو والا دين

---

[1] [ سورة التوبة : ٥ ] .

دے او دغه شان قسما قسم پروپيګنډے ئې شروع کړی دی ، او دا د دوی د مشرانو نه يوه طريقه راروانه ده ، دغه رنګے د نظرئے په لار کې دوی خپل مشن شروع کړے دے ، او دوی د قرآن کريم په مقابله کې بل قرآن جوړ کړو الفرقان پديکې ستر 70 سورتونه دي او د جهاد سورتونه او آيتونه ئې ترې مکمل ويستلې دي او هغه ئې په مختلف ممالکو کې تقسيم کړو لکه کويت وغيره نورو ممالکو کې ، خو اګر چه هغه ته څه مقبوليت حاصل نشو خو بيا هم دوی خپله لاره اختيار کړه او خپل کوشش ئې وکړو او د نورو مذاهبو سره به ددې اختلاف ختموي ، دارنګه مخکې د روپو ( پيسو ) جنګ وو ، او اوس د هغوي جنګ نظرياتي جنګ دے ، نو د دوي په مقابله کې زمونږ څۀ حال دے ؟

نو الحمد لله زمونږ نظريه دا ده : چه په جهاد او په منهج باندې کلک ولاړ يو ، ليکن په بعضې مواضعو کې شيطان يو مجاهد ته دا وسوسه ور واچوي چې ته په څۀ جنګيږې ، تا سره پدې څۀ دليل دے ؟ په بعضو وختونو کې به ته خلق ګوره چه هغوي جهاد پريخې وي؟

نو دا اصل کې زمونږ نظريه صحيح کلکه نۀ وي ، او مونږه ته هغه هدف ندے معلوم چې مونږه دا جهاد کوو نو څه سره ئې کؤو او تر کوم وخته پورې به فرض وي ؟

نو ددې دپاره دا قسمه محفلونه او مجالس شروع وي ، او دا مونږه ډير په مختصر انداز سره راجمع کړيدي ، ددې دپاره چې يو مجاهد خپله خبره په صحيح انداز سره کولې شي نو ددې دپاره اکثرو استاذانو داسې دورے مقرر کړي دي ، او تفصيل دپاره بيا تاسو د هرې موضوع لاندې مطالعه کولے شئ .

**ددې دورې خصوصيت** : لکه څرنګه چه يو مجاهد لره د اسلحې تربيت پکار وي نو دغه شان مجاهد لره علمي قوت هم پکار دے ، لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَأَعِدُّواْ لَهُم مَّا ٱسۡتَطَعۡتُم مِّن قُوَّةٖ ﴾[1]

[1] [ سورة الأنفال : ٦٠ ] .

او هغه قوت بدني قوت دے «أَلَا إِنَّ الْقُوَّةَ الرَّمْيُ» دغه شان مونږ لره پکار دي چه مونږ علمي قوت هم تيار کړو چه دومره شي چې مونږ خپل هدف او خپل مقصد اوپيژنو.

دغه شان الله تعالىٰ فرمائی : ﴿ وَلَوْ أَرَادُوا الْخُرُوجَ لَأَعَدُّوا لَهُ عُدَّةً ﴾ [1] يعني که اراده د جهاد ئی لرلې نو دوي به ورته تيارے کړے وے ، نو لکه څنګه چه مونږه بدنی تيارے کړيدے دارنګه علمی تيارے هم مونږ له پکار دے چه څه نا څه علم خو حاصل شی ، او الله تعالىٰ دې وکړي چه پدې دورے سره زمونږه علمي تنده څه نا څه الله رب العزت ماته کړي ، إن شاء الله .

نو دې دورے ته **شرعی دوره** وائی : خو د مقصد د شروع کيدلو نه مخکې يو څو خبرے پيژندل ضروري دي :

۱/ تعريف د شرعی دورے ، ۲/ فوائد د شرعی دورے ، ۳/ خصوصيات د شرعی دورے ، ٤/مضامين د شرعی دورے .

**۱ ـ تعريف د شرعی دورې** : دا هغه دروس دي چه پدغه درسونو مونږه ته دا معلومات کيږي چه زمونږ هدف جهادي څۀ دے ، او مونږ به جهاد څنګه کوو ، او جهاد به مونږ په کومې طريقې سره کوو ، او په جهاد کې به مونږ د چا چا نه استعانت ( يعنی مدد او کومک) اخلو ، او دا لاره د جهاد مونږ ولې اختيار کړه ، او پديکې به د اسلام هغه حقيقی منهج او د هغې روح بيانيږی .

**۲ ـ فوائد د شرعی دورې** :

**۱/ فائده** : خپل منهج به درته معلوم شي چه زه په کوم منهج روان يم .

**۲/ فائده** : کوم مصلحتونه دي چه خلق ئې نن په کور کينولی دي دا به درته معلوم شی چه دا صحيح دے او کنه .

---

[1] [ سورة التوبة: ٤٦ ] .

**٣/ فائده**: د دور حاضر طاغوت به اوپيژني .

**٤/ فائده**: دين اسلام او ډيموکريټک اسلام کې فرق اوپيژني .

**٥/ فائده**: چه مجاهد ته به پدي لاره ښهٔ پوهه او بصيرت حاصل شی .

**٦/ فائده**: چې دلائلو کې به تهٔ خپل مقابل او دشمن غلې ( چپ ) کولې شې .

**٧/ فائده**: حتى الوسع به په تا باندې داسې حالات نه راځي چه ته به وائې چه زه جهاد کوم او په منهج کې به د الله غضب طرفته روان وی ، نو د الله تعالیٰ د رضا په ځائی به تهٔ عدم رضا نه حاصلوے .

## ٣ـ خصوصيات د شرعى دورې :

١/ چې کوم موضوعات مونږ ذکر کوو نو اول به د هغې تعريف ذکر کوو .

٢/ د هغې اقسام به ذکر کوو .

٣/ مونږ به د هغې احکام ذکر کوو ، چې ددې څهٔ حکم دے .

٤/ پديکې به دلائل ذکر کوو ، او په دلائلو کې به زمونږه طريقه دا وي : چې داهل السنة والجماعة څومره ډلې وي نو د هغې ټولو نه به مونږ دلائل ذکر کوو ، که اصحاب د مذاهب اربعوؤ وي ، او ورسره به د اهل حديثو علماؤ چې کوم متقدمين وي هغوي دليل به هم ذکر کوو ، باقي اهل هواء ، اهل بدع ، لکه شيعه ، معتزله ، خوارج ، نو د هغوي مسلک سره زمونږ کار نشته ، نو نه به د هغوي دلائل ذکر کوو ، او نه به ئې تابعداري کوو .

٥/ تکرار د دلائلو به راځي ، لکه د يو مسلک نه به دليل پيش کړو ، نو د بل مسلک نه به هم مونږ دليل پيش کوو او هغه دواړه به يو شان وي .

٦/ په دلائلو يا موضوع باندې چه د چا څومره اعتراضات وي هغه به ذکر کوو او د هغې جوابات به هم ذکر کوو ، بفضل الله وبکرمه .

**وبالله التوفيق** .

❋❋❋❋❋

## مضامين ددې دورې

ړومبې موضوع ددې دورے هغه به منهج العلم والعمل نه شروع کوو نو منهج العلم والعمل دغه د منهج په انداز کې ذکر کيږی اردو کې « علم وعمل » د دينه به بحث کوو چه علم ضروری دے بيا ورسره عمل هم ضروری دے بلا عمله علم کې فائده شته او کنه ، بيا د علم او عمل تر منيځه دا خبره چه علم مخکې اوکړه بيا به روستو عمل کوے او کنه که علم او عمل په يو وخت کې پکار دے پدې خبره باندې به لږه رنړا واچوو .

بيا د هغې نه پس زمونږ دويمه موضوع به دا شروع کوو : « صفاءُ المنهجِ أهمُّ من تبرءَة الأشخاص » پديکې بعضو اشخاصو لکه عبدالماجد درياب آبادي رحمه الله يوه وړه شان رساله هم ليکلے ده .

په اردو کې به ئې دا معنى وکړو : " شخصيت پرستى يا حق پرستى " چه بس مونږ دې يو شخص پسې روان يو د هغه په تابعدارئ کې به روان يو که هغه هر څنګه خبره کوى او که نۀ مونږ به حق پرستى کوو .

دريمه موضوع زمونږه « من صفاء المنهجِ تسليم الأحكامِ بلا استصلاحِ » دا ئې د عربئ عنوان دے ، او په اردو کې ديته " مصلحت پسندى " وائى چه مصلحت پسندى کول په احکامو کې يا ديکې دا مصلحت دے او پديکې دا مصلحت دے ، نو آيا دغه د الله په مقابله کې اخستل جائز دى که ناجائز دى ددينه به بحث کوو ، ان شاء الله تعالىٰ .

څلورمه موضوع زمونږه : « منج الدين منهج عالميٌ لا قومي » دا به ئې د عربئ عنوان وى، او په اردو کې ديته " قوم پرستى " وائى چه قوم پرستئ نه ځان ساتل پکار دي ، او قوم پرستى څۀ شى دے ؟ نو پدې موضوع کې به ددې نه بحث کوو .

پنځم نمبر موضوع زمونږه : « منهجُ الدّين بناءٌ على الحقِّ لا على الكثرةِ » دا به ئې د عربئ عنوان وى ، او مونږ ورته " اکثريت پرستى " وايو ، چه اکثريت پرستى به نۀ کوو ، پدې موضوع کې به بيا لګ موضوعات زيات شي ځکه چه د دې نه روستو چونکه اکثريت پرستى د نظام په شکل کې ده نو ددې نه به مونږ بحث زيات کوو .

په اکثريت پرستئ پسې بيا د « طاغوت » بحث ذكر كوو بيا هغې پسې د « تحكيم القوانين » بحث ذكر كوو چه آيا دغه قوانين چه انسانانو جوړ كړيدي آيا پدې باندې فيصلے كول كفر دے كه ندے نو ددې خبرے وضاحت به كوو ، ان شاء الله تعالىٰ .

بيا به ورپسې د « سيكولرزم » نه بحث كوو چه سيكولرزم دا څه شی دے ؟ او څنګه جوړ شو ؟ او د سيكولرزم څهٔ حكم دے ؟ نو دا پوره يو نظام دے ددينه به بحث كوو .

بيا به د يوے بلے موضوع نه بحث كوو چه هغه « الديمكراتيه » ده يعنى جمهوريت ډيمكراسی ددې وضاحت به كوو ، بيا به ورپسې د ډيمكراسی تعريف ذكر كړو چه ډيمكراسی څه شی دے ؟ ددې ابتداء به ذكر كوو او ددې ارتقاء به ذكر كوو ، بيا ددينه پس به ئې حكم ذكر كوو ، بيا به ئې مفاسد ذكر كوو ، او د هغې نه پس به پدې باندې تنقيدات ذكر كوو ، چه اول به تنقيدات عقلی ذكر كوو بيا ورپسې تنقيدات شرعی ذكر كوو ، نو پدې ځائی به بيا د جمهوريت بحث ختم شی .

بيا به د الولاء والبراء موضوع شروع كوو او بيا به ددې نه بعد زمونږ موضوع وي جهاد في سبيل الله ، چه دغه موضوع كې به اول د جهاد تعريف ذكر كړو ، بيا به دا خبره ذكر كړو چه جهاد او قتال څه ته وائی ؟ درانګه في سبيل الله دا څه ته وئيلے كيږي او ددې متعلق چه څومره خبرے وي هغه به ذكر كړو ، دارنګه پديكې به بيا څه اعتراضات او د هغې جوابات ذكر كوو .

او ددې نه بعد به بيا بله موضوع ذكر كوو چه " الأعذار الكاذبة " د دروغو عذرونه چه دا خلق ئې نن پيش كوي ، چه په ما باندې خو دغه چل دے څكه نشم تلے ، څوک يو عذر پيش كوی او څوک بل عذر پيش كوي ، نو مختلف قسمه بهانې خلقو جوړې كړې دي ، نو ددې نه به جوابات ذكر كړو .

او بيا به ورپسې " امر بالمعروف نهي عن المنكر " موضوع شروع كړو ، چه د هغې نه روسته به " فقه الجهاد " موضوع ذكر كړو ، او ددې سره چه كوم متعلق بحثونه وي هغه به هم ذكر كړو ، نو پدې سره به زمونږه دا دوره اختتام ته ورسيږي ، إن شاء الله .

**نوټ** : پدې جلد کې صرف د الولاء والبراء موضوع پورے مضامين ذکر دي .

❊ ❊ ❊ ❊ ❊ ❊

## 1 / موضوع: منهج العلم والعمل ( اوله حصه )

زمونږ اولنئ موضوع ددې دورے شرعي هغه منهج العلم والعمل ده ، يعنی د علم او د عمل واله منهج ، اسلام د علم او عمل دواړو منهج دے نه صرف د علم منهج او نه صرف د عمل بلکه د دواړو منهج دي ، او دغه د اسلام مزاج دے چه اسلام په علم او عمل دواړو کې مقارنت يعني پيوستوالي غواړي .

پدې موضوع کې يو څو خبرے پيژندل ضروري دي : ١/ د علم تعريف ، او د عمل تعريف، ٢/ د علم مختصر فضائل ، ٣/ د علماء سوء په باره کې چې کوم وعيدات راغلي دي هغه په مختصر (لنډ) انداز سره وليکو ، ٤/ علم چه بې فائدے ګرځي ددې څه وجه ده ؟ د هغې ذکر به اوکړو ، ٥/مبدء د علم شرعي به بيان کړو ، ٦/ د صحابه کرامو رضي الله عنهم مبدء د علم شرعي څه وه ، او اوسني خلق د هغې نه ولې خلاف دي ، نو هغه به مختصراً انداز سره ذکر کړے شي ، إن شاء الله تعالیٰ .

**١/ خبره: د علم تعريف** : د دې علماء ډير تعريفونه کوي خو بس آسان تعريف ئې دا دے : چه علم دا يو حالت دے چه پدې باندې تاته اشياء څيزونه ښکاره کيږي ، او تاته د هغې حکم ښکاره کيږي چه دا څيز حلال دے او دا حرام ، او په هغې باندې تۀ تمييز کولے شی د حلالو او د حرامو .

**خلاصه** : علم هغه شئ دے چه په هغې باندې تاته تميز د حالاتو معلوميږي .

**عمل تعريف** : عمل ديته وائی : چه اظهار د علم دے په اعضاؤ باندې په تقاضا د شرع سره ، چه شريعت څنګه تقاضا کوی د هغې مطابق چه تاسره کوم علم راغے هغه علم ته پدې

خپلو اندامونو باندې ښكاره كول ، مثلاً تاته علم د مونځ راغلې دے چه څنګه علم تا ته راغلے دے د شريعت مطابق هغه علم ته ښكاره كړے او هغه شان مونځ اوكړے ، نو دغه ته عمل وائی .

**٢/ خبره: فضيلت د علم**: د علم ډير لوئ فضيلت دے ، لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ يَرْفَعِ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مِنكُمْ وَٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلْعِلْمَ دَرَجَٰتٍ ﴾ [1]

الله تعالیٰ مؤمنانو ته رفعت ( اوچتوالې وركړے دے ) او درجې وركړيدي خو بيا كوم كسان چې پديكې د علم والا دي نو هغوي ته ئې بيا پدې عامو مؤمنانو زياته اوچته مرتبه وركړيده .

بل آيت كې الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَمَن يُؤْتَ ٱلْحِكْمَةَ فَقَدْ أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا ﴾ [2]
عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائی : چاته چه علم وركړے شو هغه علم چه مطابق د عمل وي نو دۀ ته ډير خير وركړے شو .

بل آيات كې الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ إِنَّمَا يَخْشَى ٱللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ ٱلْعُلَمَٰٓؤُاْ ﴾ [3]

دلته الله تعالیٰ حصر كړے دے ، يعني په تحقيق سره چه د الله نه يريږي نو هغه علماء دي ، نو د الله نه يره كول پدې باندې الله د انسان سره د جنت وعده كوي ، لكه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ ذَٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ رَبَّهُۥ ﴾ [4]

يعني دا جنت د هغه چا دپاره دے چه څوک د الله نه يره كوي ، نو خشيت دا يوه لويه مرتبه ده .

---

1) [ سورة المجادلة : ١١ ] .

2) [ سورة البقرة: ٢٦٩ ] .

3) [ سورة فاطر : ٢٨ ] .

4) [ سورة البينة : ٨ ] .

هم دغه شان الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي ٱلَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَٱلَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ (1)

" اے پيغمبر ﷺ ! ته د دوي نه تپوس اوکړه چه هغه کسان چه عالمان دي او هغه چه جاهلان دي دا دواړه برابريږي " .

**نو جواب** : چه « لا » نه برابريږي ديته استفهام انکاري وائی ، دغه شان الله تعالیٰ په مختلفو آيتونو کښې د علم ډير فضيلت بيان کړيدے .

حديث کښې راځي : عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « **مَنْ سَلَكَ طَرِيقًا يَلْتَمِسُ فِيهِ عِلْمًا سَهَّلَ اللَّهُ لَهُ طَرِيقًا إِلَى الْجَنَّةِ** » . (2)

" ابو هريره رضي الله عنه فرمائی : چه رسول الله ﷺ فرمائی : څوک چه روان شو په يوه لاره چه طلب کوي په هغې کښې علم نو اسانه به کړی الله هغه ته لاره د جنت " .

بل حديث کښې راځي : عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « **فَقِيهٌ وَاحِدٌ أَشَدُّ عَلَى الشَّيْطَانِ مِنْ أَلْفِ عَابِدٍ** » . (3)

" عبدالله بن عباس رضي الله عنهما فرمائی : چه رسول الله ﷺ فرمائی : يو فقيه ګمراه کول شيطان ته ډير سخت دي په مقابل د زرو ( 1000 ) عابدانو کښې " ، **دا ځکه چه فقيه ته دهوکه نشی ورکوے او عابد ته دهوکه ورکولے شی .**

**نو په قرآن او احاديثو کښې او په اقوالو د علماؤ کښې د علم ډير زيات فضائل بيان شوي دي چه هغه يوه لويه موضوع ده ټول دلته نشو ذکر کولے د وجه د طوالت ( اوږدوالي ) ددې دورے نه ، خو يو څو آيتونه او احاديث مختصراً بيان شو .**

---

(1) [ سورة الزمر : ٩ ] .

(2) [ اخرجه الترمذي ، رقم : ٢٥٧٠ ، و ابن ماجه ، رقم : ٢١٩ ] .

(3) [ اخرجه ابن ماجة ، رقم : ٢١٨ ، وغيره ] .

**٣/ خبره: د علماء سوء په باره کې وعیدات**: نو دا وعیدات ورته ځکه ویلې شوي دي چه د دوي د علم سره عمل نشته ځکه کله چه د علم نه عمل فوت شي نو بیا دغه علم هیڅ فائده نه ورکوي ، نو دا بیا «**علمٌ لاینفع**» وګرځي چه د هغې نه رسول الله ﷺ پناه طلب کړیده : «**اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عِلْمٍ لَا يَنْفَعُ وَمِنْ قَلْبٍ لَا يَخْشَعُ وَمِنْ نَفْسٍ لَا تَشْبَعُ وَمِنْ دَعْوَةٍ لَا يُسْتَجَابُ لَهَا**». (1)

" اے الله ! په تا سره پناه غواړم د هغه علم نه چه نفع نه ورکوي ، او د هغه زړه نه چه نه یریږي ، او د هغه نفس نه چه نه مړیږي ، او د هغه دعاء نه چه نه قبلیږي ".

لکه الله تعالیٰ د علماء تورات په باره کې فرمائی : ﴿ مَثَلُ ٱلَّذِينَ حُمِّلُواْ ٱلتَّوْرَىٰةَ ثُمَّ لَمْ يَحْمِلُوهَا كَمَثَلِ ٱلْحِمَارِ يَحْمِلُ أَسْفَارًا ﴾ (2).

" مثال د هغه کسانو چه هغوي ته د تورات علم ورکړے شوے وو بیا هغوي په هغې باندې عمل ونه کړو نو مثال د دوي پشان د خر دے چه کتابونه پرې بار کړے "

نو په خر باندې چه کتابونه بار وي هغه د هغې نه نفع نشي حاصلولې ، دارنګه که په خر باندې د اوبو مشکیزه بار وی نو آیا دا د هغې نه اوبه څښلې شی ؟ نهٔ دا تر هغه پورے اوبه نشی څښلے چه تر څو بل چا ورته نوی ورکړی ، نو دلته الله تعالیٰ علماء سوء په باره کې سخت وعید ذکر کړو ځکه چه څومره د علماؤ فضیلت زیات دے نو دغه شان ئې وعید هم سخت دے .

بل ځائی کې الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ فَمَثَلُهُۥ كَمَثَلِ ٱلْكَلْبِ إِن تَحْمِلْ عَلَيْهِ يَلْهَثْ أَوْ تَتْرُكْهُ يَلْهَث ﴾ (3) یعنی مثال د دې پشان د سپي دے ،

(1) [ مسلم ، رقم : ٤٨٩٩ ] .

(2) [ سورة الجمعة : ٥ ] .

(3) [ سورة الأعراف: ١٧٦ ] .

دا په بنی اسرائيلو کې يو لوئ عالم وو بلعام بن باعوراء ، بعضی علماء وائی : چه ده ته اسم اعظم هم ياد وو ، بعضی مفسرين وائی : 12000 دولس زره شاګردان دده په درس کې به ناست وو د خپلې زمانې ډير لوئی عالم وو ، خو بنی اسرائيل ورته راغلل د موسیٰ عليه السلام په مقابله کې ، ورته ئی اووئيل : چه دې موسیٰ عليه السلام ته بد دعاء اوکړه ، اول ئې بد دعاء نۀ کوله خو چه کله ئی ورته ډير زيات مال او دولت ورکړو ، نو دۀ اراده د بد دعاء اوکړه ، نو الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ فَمَثَلُهُۥ كَمَثَلِ ٱلۡكَلۡبِ ﴾ . نو الله تعالیٰ دده شکل مسخ کړو ، او د سپی سره ئی مثال ورکړو د سپی سره ئې مثال ولې ورکړو ؟ تفسير کبير وائی : چه دده مثال ئی د سپی سره د يو څو وجوهو نه ورکړو : ١/ په سپی کې دا خوئی دے چه ددې د ژبې نه لاړې بهيږي ، او دا ډير بدحالت دے نو ځکه الله ورله ډيره مکروهه تشبيه ورکړه ، ٢/ په سپي کې يو خوئ دا دے : که ته ورته خوراک ورکوے نو بيا ستا دفاع کوي ، نو دغه شان چه عالم بد شي نو بيا چه دۀ ته د کوم ځائی نه رزق ميلاويږي ، که هغه ځائی ښۀ وي او که بد خو بس دا د هغې دفاع کوي ، ٣/ په سپی کې بدترين خوئ دا هم دے : چه سپې د چا دروازے مخې ته ناست وي او د دۀ مخې ته څوک تيريږي نو دا وريسې غاپي ، نو کله چه عالم بد شي نو د هغه هم دغه خوئ شي ، د ښۀ او د بد تميز نه کوي کله به يو پسې غاپي او کله بل پسې غاپي ، الله رب العالمين دې مونږ د داسې حالت نه وساتی .

نو دا عالم سوء شو د وجه د انتصار ( مدد ) د کفر نه ، ځکه دۀ د کفر امداد اوکړو نو ځکه ورته الله قبيح لقب ورکړو ، نو چه کوم سړے عالم وی او بيا استنصار د کفر ( يعنی کفر نه مدد غواړي ) کوی نو پوهه شه چه دته هم الله دغه مقام ورکړے دے .

بل ځائی کې الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِنَّ كَثِيرًا مِّنَ ٱلۡأَحۡبَارِ وَٱلرُّهۡبَانِ لَيَأۡكُلُونَ أَمۡوَٰلَ ٱلنَّاسِ بِٱلۡبَٰطِلِ وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ (1)

(1) [ سورة التوبة: ٣٤ ] .

" اے مؤمنانو ! یقینا ډیر د مولیانو او پیرانو نه ( د یهودو او نصاراؤ علماء او پیران یادوي ) خامخا خوري مالونه د خلکو په باطله طریقې سره او بندوي خلق د لارے د الله تعالیٰ نه " .
نو دوئ ته ئ علماء سوء اووئیل د دوه وجوهو نه : ۱/ دوي د خلقو مالونه خوري په باطلې طریقې سره ، ۲/ خلق د الله تعالیٰ د لارې نه منع کوي ، نو دا درې قبیح صفات شو ، ۱/ د کفر سره امداد کول : ددې سره سړے عالم سوء ګرځي ، ۲/ د خلقو مالونه په باطلو طریقو سره خوړل ، نو دې سره هم سړے عالم سوء ګرځي ، ۳/ خلق د الله تعالیٰ د لارې نه منع کوي.

خلق د الله د لارے نه پدې طریقه منع کوی چه د خلقو په ذهنونو کې شکوک او شبهات اچوی ، او د یهودو طریقه هم دا وه چه چا به په نبی باندې ایمان راؤ ړلو نو د یهودو او د نصاراؤ چه کوم علماء وو نو هغوی به دې خلقو ته شکوک او شبهات وراچول چه دا نبی ندے او دا خو ساحر دے دا کاهن دے او داسې نور شبهات نو هغه سړے به ئې د ایمان نه منع کړو ، نو که دغه شکوک او شبهات نن هم څوک چا ته وراچوی هغه هم بیا پدې کې داخل دے .

بل ځائی کې الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ ٱتَّخَذُوٓاْ أَحۡبَارَهُمۡ وَرُهۡبَٰنَهُمۡ أَرۡبَابٗا مِّن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ [1] یعنې یهودو او نصاراؤ خپل مولیان خدایان منلي دي "

عدی بن حاتم ﷺ د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو ، چه اے د الله رسوله ! مونږ خو خپل مولیان او پیران په خدائی توب نه وو نیولي ؟ نو رسول الله ﷺ ورته وفرمائیل : چه دې مولیانو به کوم شي حلال وګڼړلو نو تاسو به هم حلالولو ، او چه دې مولیانو به کوم شی حرام وګڼړلو نو تاسو به هم حرامولو ددې وجه نه ورته خدایان اووئیل شو ، نو کوم علماء چه د ځان نه تحریم او تحلیل کوي نو پدې باندې دا کافر کیږي ، او عالم سوء ګرځي .

ډیر علماء داسې شته دے چه هغوی د ځان نه تحلیل او تحریم کوی لکه د مصر یو غټ عالم دے « یوسف قرضاوی » چه دا د جامعه اظهر شیخ وو چه ډیرے ناشنا فتوے دۀ ورکړی

---

[1] [ سورة التوبة: ٣١ ] .

دي چه په سنیما کې د ښځو دپاره کار کول جائز دي ، په هسپتالونو کې او داسې نورے ډيرے فتوے ئې ورکړيدی حتی چه بعضی علماء وائی چه الله دا نۀ مړ کوی تردے چه محللات د الله حرام کړی او محرمات ئې حلال کړی دا ئې یو قسم مقصود گرځيدلے وو ، الله تعالیٰ مو د داسې حالت نه وساتی .

نو دوی هم تحليل او تحريم د ځان نه جوړولو چه پدې باندې سرے عالم سوء گرځی .

بل ځائی کې الله تعالیٰ فرمائی :

﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُوا بِمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُوا إِلَى الطَّاغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوا أَن يَكْفُرُوا بِهِ وَيُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَن يُضِلَّهُمْ ضَلَالًا بَعِيدًا ۝٦٠ ﴾ [1]

پدې آيت کې الله تعالیٰ د څه کسانو واقعه بيانوي چه هغوي دا گمان کوي چه مونږ ايمان راوړيدے په قرآن او د دې نه په مخکې کتابونو باندې ، خو اراده ئې دا وه چه فيصلې يوسي طاغوت ته ، دلته اوس عالم ته طاغوت وئيلې شوے دے ، چه دا کعب بن اشرف وو چه دا د يهودو لوئ عالم وو او دې به د الله د قانون نه غير په بل قانون باندې فيصلې کولے نو ځکه ورته الله تعالیٰ طاغوت اووئيل .

نو دا د عالم سوء علامه ده : چه سړے د الله قانون پريږدی او په بل قانون باندې فيصلے شروع کړی نو دا هم عالم سوء دے او پدغه آيت کې ورته الله طاغوت وئيلے دے .

دا رنگه بل ځائی کې الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتَابِ يُؤْمِنُونَ بِالْجِبْتِ وَالطَّاغُوتِ وَيَقُولُونَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا هَٰؤُلَاءِ أَهْدَىٰ مِنَ الَّذِينَ

---

[1] [ سورة النساء: ٦٠ ] .

ءَامَنُواْ سَبِيلًا ﴿٥١﴾ [1]

" آيا ته نۀ ګورے هغه کسانو ته چه ورکړے شویده هغوی ته څه حصه د کتاب نه چه ایمان ئې راوړے دے په په بتانو او طاغوت باندې او وائی په باره د هغه کسانو کې چه کفر ئې کړیدے دا ( جبت او طاغوت ) ډیر په هدایت دي د هغه کسانو نه چه مؤمنان دی په اعتبار د لارے سره ".

پدې آیت کې هم د کعب بن أشرف واقعه ذکر ده ، چه کعب بن اشرف مکې ته تلے وو او د کفارو سره ئې معاهده کوله د مشرکین مکه سره د نبی کریم ﷺ په عداوت او مخالفت کې نو هغوئ ورته اووئیل : چه مونږه په هدایت یو او که دا محمد ( ﷺ ) په هدایت دے ؟ ځکه چه دې مشرکانو ته دا پته نۀ لګیدله او دا کعب بن اشرف خو عالم وو ځکه ئې د دۀ نه تپوس کولو ، نو کعب بن اشرف ورته اووئیل : چه تاسو په ما باندې خپل دین پیش کړے چه ستاسو دین څۀ دے ، نو هغوی ورته اووئیل : چه زمونږ دین دا دے چه مونږه د بیت الله تعمیر کوو او حاجیانو ته اوبه ورکوو او د حاجیانو خدمت کوو او د میلمه ضیافت کوو صله رحمی کوو ، او دې محمد ( ﷺ ) مونږ سره قطعه صله رحمی کړے ده او مسجد حرم ئې پریخودے دے، نو دۀ ورته اووئیل : چه تاسو ډیر په هدایت یئ د دې محمد ( ﷺ ) نه او د هغه د ملګرو نه ، نو عالم چه کله د کفر په تابعدارئ کې حق ته باطل ووائی او باطل ته حق ووائی نو تۀ پوهه شه چه دا عالم سوء دے ، الله رب العالمین دې مونږه د داسی مراتبو نه وساتی.

دې وجه نه علامه غزالی رحمه الله په " إحیاء العلوم " کې د داسې قسمه خلقو ډیرې نخے ذکر کړیدي چه د هغې نه یو دا هم دے : چه دا هم عالم سوء دے چه د بادشاهانو دربارونو ته حاضریږی .

نو د بادشاهانو د دربارونو نه ځان ساتی، علماء کرامو ته خصوصاً مونږه دا وایو چه اے علماء کرامو ! تاسو په حقیقت کې د آینده زندګئ قائدین یئ تاسو به د بادشاهانو دربارونو

---

[1] [ سورة النساء: ٥١ ].

نه ځان ساتئ .

ددې وجه نه اکثر علماء کرام فرمائی : «**النظرُ إلى وجهِ السلطانِ إثمٌ**» " بادشاه مخ ته کتل ګناه ده " خو ددې نه مراد هغه بادشاهان دي چه اسلامي خليفه نوي ، ورنه اسلامي خليفه خو : «**السلطان المسلم ظل الله في الأرض**» .

خو البته ددې باوجود هم تاسو د سفيان ثوری رحمه الله دور ته لږ سوچ اوکړئ چه د هغه زمانې بادشاهان دا به بزرګان وو ځکه چه د سفيان ثوری رحمه الله دور د تابعينو دور وو د هغه زمانې بادشاه به هم تابعی وو نو دا به لوئی بزرګان وو د هغه زمانې ، ليکن بيا به هم دا علماء نهٔ ورتلل .

دا رنګه د امام ابو حنيفه رحمه الله په دور کې چه کوم بادشاهان وو نو هغوی ښهٔ خلق وو خو بيا به هم دوی نهٔ ورتلل .

ددې وجه نه علماؤ به يو بل ته نصيحت کولو ، لکه د يزيد بن ميسره رحمه الله په باره کې راځی چه يزيد بن ميسره رحمه الله ته بعضی علماء کرام ورغله او دا ئې ورته اووئيل : چه مونږ ته څه وصيت اوکړه ؟ نو يزيد بن ميسره رحمه الله ورته وفرمائيل : «**كان العلماءُ إذا عَلِموا عَمِلوا وإذا عَمِلوا شُغِلوا و إذا شغِلوا فقدوا وإذا فقدوا طلبوا و إذا طلبوا هربُوا**» .

" مخکنی علماء داسی وو چه کله به ئې علم وکړو نو بيا به ئې پرے عمل کولو او چه عمل به ئې شروع کړو نو بيا به مشغوله شو او چه کله به مشغوله شول نو بيا به ورک شو او چه کله به ورک شو نو بيا مطلوب شو ( دا مطلب ندے چه د وژلو دپاره به مطلوب شو ، بادشاهانو به وئيل چه اوس زمونږ سره ملاقات اوکړئ چه خپله اصلاح پرې اوکړو نو دوی به داسې مطلوب شو ) او چه کله به مطلوب شو نو بيا به وتختيدل د هغه ځائی نه " .

ځکه دوی به دا وئيل : چه که د بادشاه ځائی ته لاړو نو د هغوی په ځائی کې خو هر وخت ګناه وی او که زه ورسره کيناستم نو بيا به زه تباه شم .

مونږ اکثر دې خپلو ملګرو ته دا وايو : کله هم تاسو دې اميرانو سره کينئ نو د شريعت

يوه مسئله بيانوئ ، اوس چه زمونږ کوم اميران دي نو دا ښۀ خلق دي خو دوئ د قرآن او سنت سره مطابق کړه قرآن او سنت د دوی سره مۀ مطابق کوه ، او زمونږ په اکثرو علماؤ کې دا مسئله شته دے چه علماء کله کله د خپل علم په خودلو کې راشي او کله په ضد کې راشي نو پدې مختلف طريقو سره بيا دوی د امير سره قرآن او سنت مطابق کوی ، امير به يو کار کړے وی هغې لره به دلائل ګوری او وائی : چه آو جی " يوه جُزئيه شته " هغه به منسوخ وی خو دوی چه دا کار کوی ددې دپاره چه امير رانه خوشحاله شی چه يره جی دۀ ته هم هغه جزئيه ياده ده ، نو داسی کول ندی پکار بلکه چه کومه مسئله متفق عليه وی هغه ورته بيانوئ نو دوی به د کتاب سره مطابق کيږی او کتاب د دوی سره نشو مطابق کولے ، نو مشران زمونږ دا ډير ښۀ مشران دي خو کتاب سره مطابق دغه کار به نۀ کوے « ولا تُرَخِّصوا لَهُم » دوی ته به رخصت نه ورکوے په يوه مسئله کې دا د علم شان دے ، او که چرته دغه کار مونږ پريږدو نو بيا به مونږ علماء سوء شو ، الله دې نۀ کړی چه مونږ د علماء سوء نه وګرځو ، نو دې خپلو مشرانو ته صحيح مسئلے وخائی اګر که پدوی باندې بدے لګی ، بله دا چه د علماء الخير (يعنی صحيح علماء ) قدر کوئ که چرته په کوم يو ځائی پرے رد هم کوے نو د علم د وجې نه په هغوی باندې رد مۀ کوه لکه مثلا سياست واله علماء دي نو مونږ چه پدې باندې رد کوو نو د علم د وجې نه به پرې رد نۀ کوو بلکه داسې به وايو چه دغه سياسی علماء دغه جمهوری علماء بدترين علماء دي ځکه چه مونږ پدې علماؤ باندې رد کوو نو د وجه د جمهوريت نه پرې رد کوو د علم د وجه په چا باندې رد نۀ کوو .

ددې وجه نه بعضی وائی چه : « **سَبُّ الْعُلَمَاءِ كُفْرٌ** » علماؤ ته کنزل کول کفر دے ، نو علماؤ ته د علم د وجې نه کنزل کول کفر دے ، هاں که بله وجه وی نو بيا څه خبره نده .

علامه شامی وائی : که چرته په لاره باندې عالم تيريږی او يو کس ددې عالم نه په دې وجه باندې مخکې کيږي چه دا خو مولا دے مړه نو دا کفر دے ، ځکه چه دۀ قصداً توهين د علم ئې اوکړو ، دارنګه يو سړے علم ورسره نشته او راشي په يو اوچت ځائی باندې کينی او څه کسان ځان ته راجمع کړی او ورته وائی چه ما نه تپوسونه کوئ زه تاسو ته فتوے درکوم او

ټوقي ( استهزاء ) ئي کولے نو شرح العقائد والا وائی : «**تُكَفِّرُه**» مونږ دا سړے کافر کوو ځکه چه دي په مسند د افتاء پورے ټوقي او مسخرے اوکړے ، نو په علماؤ باندې د علم د وجه نه مونږ رد نهٔ کوو ، او چه کله مونږ په علماؤ باندې رد کوو نو بعضی د هغه بداعمالو د وجه نه به پرے رد کوو ، درانګه د علماؤ سره به محبت ساتو خو چه کوم حق پرست علماء دي ، لکه يو حديث مبارک کې راځی نبی کريم ﷺ فرمائی : «**يُصْبِحُ الرجلُ مؤمناً ويمسى كافراً**» " داسی وخت به راشی چه سحر به سړے مسلمان وی او ماښام کې به کافر وی " او دهٔ ته به دا پته هم نهٔ وی چه زه کافر يم نو دا به د خپلې ژبې د وجه نه کافر وی ، دا رنګه په احاديثو کې دا هم راځی چه حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه روايت دے دے د نبی کريم ﷺ نه تپوس کوی د غرباؤ په باره کې چه هغه اوږد روايت دے خو د هغې يوه حصه دا ده : چه رسول الله ﷺ فرمائی : « **بَدَأَ الْإِسْلَامُ غَرِيبًا وَسَيَعُودُ غَرِيبًا كَمَا بَدَأَ فَطُوبَى لِلْغُرَبَاءِ**»[1]

" اسلام په اول کې ناشنا وو او په آخر کې به هم ناشنا شی نو ناشنا خلقو ته مبارکی ده، نو عبدالله بن عمرو رضي الله عنه تپوس کوی : «**مَنْ الْغُرَبَاءُ يَا رَسُولَ اللَّهِ ؟ قَالَ : أُنَاسٌ صَالِحُونَ فِي أُنَاسِ سُوءٍ كَثِيرٍ مَنْ يَعْصِيهِمْ أَكْثَرُ مِمَّنْ يُطِيعُهُمْ** ».[2]

" دا غرباء څوک دي اے د الله رسوله ! نبی کريم ﷺ وفرمائيل : لږ کسان به وی او صالحان ( نيکان ) به وی او په ډيرو خلقو کې به وی او ډير خلق به بد وی او څوک چه د دوی نافرمانی کوي هغه هم ډير وي د هغه چا نه چه څوک ئي تابعداری کوی ".

او بيا وړيسې روسته فرمائی : « **علماء هم شر تحت أديم السماء** » علماء به ئي بدترين خلق وی لاندې د پوستکی د آسمان نه . الله رب العالمين دې مونږه د دغه بد صفت نه وساتی.

دا رنګه عبدالله بن المبارک رحمه الله فرمائی :

**وهل أفسد الدين الا الملوک ورهبان السوء وأحبارها**

---

[1] [ صحيح مسلم : ١ / ٣٥٠ ، رقم الحديث : ٢٠٨ .

[2] [ مسند احمد ، رقم : ٦٣٦٢ ] .

زمونږ دا دين برباد نۀ کړو مګر بادشاهانو برباد کړو او بدو پيرانو او علماؤ .
نو د درې کسانو د وجه نه دين خرابيږی او ورانيږی : ۱/ بادشاه ، ۲/ بدوپيرانو ، ۳/ د بدو علماؤ د وجه نه ، الله تعالیٰ دې مونږه پديکې نۀ راولی . آمين

**٤/ خبره: علم چه بې فائدې ګرځي او نقصان رسوي انسان ته :**

نو ددې دپاره ۳ درې وجه دي : **۱/ وجه** : علم بلا استاذ : يعنې بغير د استاذ نه ځان عالم کړي ، مفتي جوړ کړي کله د ځان نه شيخ جوړ کړي ، او دا ډير زيات نقصان کوي .
يو شاعر وائی :

من اخذ العلوم بغير شيخ يضلُ عن الصراط المستقيم

يعنې څوک چه بغير د استاذ نه علم حاصل کړي نو دا به ګمراه کيږي د لارې د حق نه .
او فارسئ کې وائی : هران کارے که بی استاذ باشد يقين می دا که بی بنياد باشد
يعنی هر هغه کار چه بغير د استاذ نه وی نو پدې باندې يقين اوکړه چه دا به بې بنياده وی .

**۲/ وجه** : **فتوی بلا علم** : فتویٰ ورکول بغير د علم نه ، نو چه د کومې مسئلے معلومات درته نوی نو بس جواب کې دا وايه چه ما ته پته نشته دے دا ډير ښۀ صفت دے داسې نه چه ته وائی چه نۀ خامخا به جواب ورکوم ځکه پدې باندې مونږه ته ځان بد ښکاری چه تانه دې څوک تپوس وکړی او ته ورته ووائې چه ماته پته نشته دے ، حالانکه امام مالک رحمه الله نه د ٤۰ مسائلو په باره کې تپوسونه اوشو د څلورو مسائلو جواب ئې ورکړو او په ۳٦ مسائلو کې اووئيل : «**لا ادري**» يعنې ماته پته نشته ، حالانکه امام مالک رحمه الله څومره لوئ عالم وو د دين اسلام امام تير شويدے خو بيا هم ورته وائی چه ماته پته نشته دے .
دغه شان امام ابو حنيفة رحمه الله د څلورو مسائلو په باره کې وئيلی دي چه ماته پته نشته، ددې وجه نه علماء کرام فرمائی :

**«من قال لا ادري بما لا يدري ... فقد اقتدى فى الفقه بالنعمانى»**

يعنی چا چه اووئيل چه ماته پته نشته په هغه څه کې چه دۀ ته پته نه وی نو دۀ په فقه

کې په امام صاحب پسې روان شو ، واقعي چه دا بیا په حقه باندې عالم دے ، او که په هره مسئله کې بغیر د علم نه فتوی ورکوی نو ته پوهه شه چه دا صحیح عالم ندے .

علامه ابن القیم رحمه الله فرمائی : «**من افتی بغیر علم فقد وقع في محرم کبیر**» یعنی چا چه بغیر د علم نه فتوی ورکړه نو دا په غټ حرام کې واقع شو ، نو ددې نه ځان ساتل پکار دي.

**۳/ وجه**: علم بلاعمله دے ، یعنی علم دې اوکړو استاذ دې هم شته فتوی په علم هم ورکوے خو لیکن په دغه علم دې خپله عمل نشته ، نو داسې علم هم سبب د بربادئ ګرځي نو په داسې علم باندې وعده د نجات نشته دے جنت پدې باندې نشته دے ، بعضې علماء کرام فرمائی : «**العلم بلاعمل عقیمٌ**» یعنی علم بغیر د عمل نه شنډ وي ، «**والعمل بلا علم سقیمٌ**» او عمل بغیر د علم نه بیماری وی .

**لطیفه** : یو دوه ورونه وو یو علم کولو او بل وئیل چه زه به عبادت کوم ، نو دې یو ورور ئې عبادت کولو چه کله ئې دا عالم ورور راغلو نو دې ورور ورته اووئیل : چه تا خو ټول عمر برباد کړو او ما ځومره ډیر عبادت اوکړو ، خو یوه ګناه رانه شوے ده ، هغه عالم ورور ورته اووئیل : چه څه ګناه ده ؟ نو دې عبادت والا ورته اووئیل : چه دا مږه مې مره کړے ده او پدې څادر پسې مې ترلې ده او مونځ کوم ، نو عالم ورته اووئیل : چه ټول عبادت د ځان لره خراب کړے ، نو کله چه سړے بې علمه وي نو هغه بیا داسې کارونه کوي .

او بیا آخر کې وائی : «**وکلاهما صراط مستقیم**» او چه کله دې دا دواړه یوځائی کړل نو بیا سړے صراط مستقیم ته رسیږي .

ددې وجه نه امام مالک رحمه الله فرمائی : «**من تفقه ولم یتصوف فقد تفسّق**» چا چه فقه حاصله کړه او تصوف ئې ونۀ کړو ( یعنی عمل ئې پرې ونۀ وکړو ) نو دا فاسق شو ، «**ومن تصوّف ولم یتفقه فقد تزندق**» او چا چه ځان نه صوفي جوړ کړو او علم ئې ندے حاصل کړے نو دا بیا زندیق شی ، «**ومن جمع بینهما فقد تحقق**» او څوک چه دا دواړه راجمع کړي نو دا بیا حق ته رسي ، نو علم سره د عمل نه دا ډیره لویه مرتبه ده .

ددې وجې نه دنیا په درې څیزونو باندې خائسته ده : «**الدنیا بستان وزینتها علم العالم وعدل السلطان ودیانة المقترفین**» دنیا په درې څیزونو باندې خائسته ده په علم د عالم باندې، او عدل د سلطان باندې ، او په دیانت د کسب ګرو باندې خائسته ده ، نو کله چه سړي کې دا درې څیزونه ختم شي نو بیا علم ته نقصان ورکوي خو اصل پکې دا ده چه په علم باندې سړې عمل پریږدي نو دا بیا ډیر غټ نقصان جوړیږي .

**٥/ خبره: سرچشمه د علم شرعي څه ده**:

نو مبدء د علم شرعي ، یو قرآن دے ، بل احادیث النبویه ﷺ دي ، او بل فقه ، دا درې څیزونه زمونږ د علم مبدء ده ، او ددې دوو رجع هم بیا قرآن کریم ته کیږي .

لکه فارسي کې یو شعر دے :

علم دین فقه هست تفسیر علم حدیث .... هر که خواهد غیر ازین ګردد خبیث

یعنی علم د دین فقه تفسیر او علم حدیث دي څوک چه ددې نه غیر وائی نو بیا د سړي نه خبیث جوړیږي ، نو پدې منهج کې چه کومې ابتدائی خبرې وے هغه ختمې شوے ، بفضل الله وکرمه .

**سوال**: څه وجه ده چه هم دا قرآن او احادیث په اول دور کې صحابه کرامو رضي الله عنهم ته موجود وو هغه یو امتیازي نسل وو ، اوس پدې قرآن او حدیث نبویه ﷺ باندې هغه شان نسل نه تیاریږي دین خو الله تعالیٰ عالمی دین رالیږلے دے ابدی دین دے دا خو د یو خاص نسل دپاره ندے راغلے او دا دین د نبی کریم ﷺ د بدن اطهر سره هم مختص ندے ددې وجه نه الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ تر هغه وخته پورے باقي پاتې کړو چه تر څو دین کمال ته ورسیدو او چه کله دین کمال ته ورسیدو نو الله تعالیٰ خپل نبی ( ﷺ ) واخستو نو ددې دا مطلب نشو چه الله تعالیٰ خپل دین ختم کړو ، دین خو ئې ندے ختم کړے نو د نبی کریم ﷺ د وجود اطهر سره د دین دا عالمی والے نه ختمیږی که چرته داسې وے نو بیا به نبی کریم ﷺ الله نهٔ اخستلو ، بلکه د قرآن مثال داسے دے لکه یو مُلک مشینډری جوړه

کړی بیا هغه مشینډری بل مُلک ته ولیږی نو چه کله دا مشینډری بل مُلک ته لیږی نو بیا ددې مشینډرئ سره دوه څیزونه نور هم لیږی : ١/ کتابچه ، ٢/ ورسره انجنیر ولیږی ، نو کله چه دغه څیزونه هغه مُلک ته لاړ شی نو بیا دغه څیز ددې کتابچه مطابق استعمالوی او انجنیر ورسره وی تر هغه وخته پورے چه تر کومه وخته پورے ورکشاپونه نوی تیار شوی نو چه کله پدې مُلک کې ورکشاپونه تیار شی نو بیا دغه انجنیر واپس لاړ شی ، که ستاسو فکر وی نو بیا نورو خلقو ته شاګردی حاصله شی او انجنیر واپس خپل مُلک ته لاړ شی او بیا تهٔ ددې کتابچه مطابق هغه څیز استعمالوے ، که تاسو خیال کړے وی چه یو سړے موټر واخلی او د هغه موټر په کتابچه کې ئې لیکلی وی چه پټرول به وراچوے ، نو تهٔ داسې اوکړے چه ووائی نهٔ دا خو زما خپل ګاړے دے زه پکې د پټرولو په ځائی اوبه اچوم نو څهٔ دې خیال دے چه دا ګاړے به روان شی ؟ نو د روانیدو په ځائی به ئې خراب کړے ، دارنګه یو موبائیل دے چه په هغې کې اوه هنسے راځی ته ووائی چه نهٔ مړه دا خو زما موبائیل دے زه پکې اته هنسے راولم د اته هنسو والا نمبر پکې ډائل کړے نو تا ته به څه راشی ( آپ کا مطلوبه نمبر درست نهیں ) نو دا به بالکل کار نکوی ، د هغه کتابچه نه خلاف ئې چه استعمالوے کار به درله نهٔ کوی ، نو دغه شان الله تعالیٰ د زړه دغه مشینډری جوړه کړه نو دې سره ئې یوه کتاب راولیږلو او بل ئې ورسره انجنیران راولیږل ، انجنیران د خپلے زمانے انبیاء کرام علیهم السلام دي چه کله به مدارس قائم شو نو بیا به انجنیر واپس لاړو ، نو اوس نبی کریم ﷺ آخری نبی دے او دهٔ ته چه کوم کتاب ورکړے شوے وو قرآن کریم پدیکې مونږه ته د کامیابۍ زندګي طریقه خودلے ده او زمونږه مثال ده مشینډري دے نو دغه کتاب قرآن کریم مونږه ته نبی کریم ﷺ په خائسته انداز باندې عملاً تشریح کړو نو اوس د هغه په تلو سره دغه طریقه کار نه ختمیږي ځکه چه دغه کتاب قرآن کریم او سنت هم هغه شان باقي پاتې دے نو دغه دواړه د اولني خلقو یعنی صحابه کرام او تابعین د هغوی دپاره هم مبدء د علم وه او زمونږ دپاره هم مبدء د علم ده نو په هغه وخت کې ئې یو داسې نسل تیار کړو چه د هغې ثانی نشته په دنیا کې او اوس هغه نسل نه تیاریږی دا ولې ؟

**جواب** : كومه مبدء چه هغوي استعمالوله نو په هغه مبدء كې مونږ فرق راوستې دے ، هغوي هم ددې قرآن او احاديثو نه علم حاصلولو خو فرق دا دے چه هغوي علم خالص وو خلط ملط پكې نه وو ، او زمونږ علم خالص ندې خلط پكې راغلې ، لكه د عائشې رضي الله عنها نه چه تپوس اوشو : «**يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ أَخْبِرِينِي بِخُلُقِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، قَالَتْ: كَانَ خُلُقُهُ الْقُرْآن**» . [1]

" يعنې د رسول الله ﷺ اخلاق څنګه وو ؟ نو جواب كې ورته اوونيل: چه د هغه اخلاق بعينه قرآن وو " ، نو هغوى خالص قرآن كريم استعمالولو د هغوى په اخلاقو او اطوارو كې ټول قرآن كريم وو .

**دارنګه** : كله چه رسول الله ﷺ د عمر فاروق رضي الله عنه په لاس كې د تورات پاڼړې وليدلې، نو رسول الله ﷺ غصه شو او مخ مبارك ئې د غصې د وجه سور شو او وې فرمائيل : «**فَإِنَّهُ لَوْ كَانَ مُوسَى حَيًّا بَيْنَ أَظْهُرِكُمْ مَا حَلَّ لَهُ إِلَّا أَنْ يَتَّبِعَنِي**» [2]

" قسم په الله كه موسى عليه السلام ژوندې وې نو د هغه دپاره به هم دا جائز نه وو ترڅو چه هغې زما تابعداري نه وه كړې " ، نو رسول الله ﷺ عمر فاروق رضي الله عنه ته غصه څكه اوكړه چه ستاسو دپاره دا چشمه او مبدء خالصه شى ، چه دغه خالصه مبدء تاسو استعمال كړئ ، او پديكې خلط ملط رانشي ، او زمونږ پدې مبدء كې خلط ( ګډوډوالې ) راغلې ، هغه څنګه ؟ هغه داسې : چه زمونږ پدې دور كې په تفاسيرو كې اسرائيلي روايات راجمع شو ، د قرآن كريم مختلف قسمه تفسيرونه اوكړے شو ، هر سړے د خپل خوښې تفسير كوى ، يو كس به ټائى او پتلون اچولے وى او هغه د قرآن كريم تفسير كوى ، بله دا چه د قرآن كريم په اهمو مقاصدو باندې نورے پردے راوستے شوے ، بله دا چه يو كس به مضمون شروع كړى " سائنس اور قرآن " د هغه به دا كوشش وى چه سائنسى تجرباتو سره قرآن

---

[1] [ مسند احمد ، رقم : ٢٣٤٦٠ ] .

[2] [ مسند احمد ، رقم : ١٤١٠٤ ] .

موافق کړی ، دا د قرآن کریم مقصد ندے چه سائنس سره ئې مطابق کړے ، قرآن کریم د تعمیر او د آبادئ دپاره راغلے دے .

د قرآن کریم ﷺ مثال داسې دے : لکه مثلا زید کور جوړوی د کور جوړولو دپاره ئې شګه راوړے ده ، خښته ته ئې ورله راوړے ده ، سیخ ( سَرِیه ) ئې ورته راوړے دے دا مختلف اشیاء ئې راجمع کړیدی ، اوس که زه ورشم او ورته ووایم : چه زید ماله لږه شګه راکړه په پیسو باندې نو دا ئې ماله نۀ راکوی او که زه یو دوکاندار له ورشم نو هغه ئې ماله په پیسو باندې راکوی او دا ئې نه راکوی ځکه چه دا خپل یو تعمیر جوړوی .

نو اسلام دا قرآن کریم دے دا یو تعمیر جوړوی چه هغه علم او د عمل دے ددې دپاره ندے راغلے چه تۀ ترے خپلے سائنسی مسئلے راواخلے ، بل زمیندار وی هغه به ترے د زمیندارئ مسئلے را واخلی ، بل د بلے محکمې واله وی هغه به ترې د هغې مسئلے راواخلی نو د قرآن کریم نه به هر یو سړے خپل خپل کتاب جوړوی ، نۀ داسې کار کول ندی پکار ، ځکه د سائنس تجربات خو بدلیږی رابدلیږی نو د سائنس یوه تجربه به بدله شی بیا به نعوذ بالله قرآن بدلوے ؟ ، بعضی خلق په قرآن کې فلسفی تحقیقات شروع کړي ، ټیک ده صحیح دی خو بیا په دۀ فلسفی رنګ اوخیژي ، لکه زمونږه فقه شوه په دیکې یو فقه د عقائدو ده بل فقه د احکامو ده په فقه د عقائدو باندې ، اوس د فلسفی رنګ چړاؤ شو که تاسو ورته خیال وي زمونږ دا فقه اوس ټوله خلط ملط شوه دا رانګه د علم کلام واله فقه خلط ملط شوه څنګه خلط ملط شوه ؟ هغه داسې چه د فلسفی مسئلے پکې راغلے تا ته به د عقائدو او د فلسفے پته نۀ لګی چه دا اوس فلسفه شوه او که عقائد شو ځکه چه هغه رنګ پرې چړاؤ شو نو زمونږ هغه صحیح او پاکه چینه دعقائدو د هغې سره په خوا کې ګډ وډی راغله نو دغه ګډ وډئ د وجه نه زمونږه په منبع او مبدء کې فرق راغلو نو صحابه کرامو ته چه کومه صفا چینه وه هغه اوس مونږ ته هغه شان صفا چینه نده پاتې شوے او مونږ هغه شان اخذ نۀ کوو که چرته زمونږ په هغه طریقے سره اخذ شوے وے نو بیا به مونږ ته په لاره کې د هغه شان رکاوټونه نه راځی او بیا به هغه شان نسل تیاریږی کوم چه په اول دور کې تیار شوے

وو ، نو دا يوه وجه شوه .

نو حاصل ددې دا شو چه قرآن كريم نه صحيح علم حاصلول لكه څنګه چه د قرآن حق دے او د عقائدو په باب كې د هرې عقيدے مأخذ قران كريم ګرځول داسې نۀ چه يوه عقيده كې مأخذ قرآن كريم وي او په بله عقيده كې مأخذ بيا بل څيزوي او يا دا بل چه فكر وي ، نو بيا به كامل نسل تيار شى .

**۲/ وجه** : د صحابه كرامو په دور كې قرآن كريم نازليدلو او هغوي د قرآن تلاوت كولو نو زمونږ تلاوت او د هغوي تلاوت كې فرق دے ، د صحابه كرامو د قرآن تلاوت او مطالعه ددې دپاره وه چه په قرآن كريم كې دوه قسمه زندګي ده ، انفرادي ، اجتماعي زندګي ، نو صحابه كرامو به دا كتل چه قرآن ماته د انفرادى زندګۍ كې څه امر كوي او په اجتماعي زندګۍ كې څه امر كوي ، او مونږه او تاسو چه د قرآن تفسير شروع كړو : نو زمونږ مقصود ادب چيړل وي ، صرف او نحو چيړل زمونږ مقصود وى ، نو مقصود د تفسير زمونږ غير وي او قرآن مونږ د قانون او آين په انداز كې نه لولو ، دارنګه قرآن مونږ د قانون په انداز كې نه ګورو بلكه مونږ قرآن كريم نعوذ بالله د ادبو يا د منطق او فلسفے په انداز كې ګورو يا د بلاغت په انداز كې ګورو نو دا قرآن كريم مونږ په بل انداز كې مطالعه كوو صحيح ده دغه علوم پكې شته بيانوئ يئ خو دغه خو مقصود ندې كنه ، نو د صحابه كرامو د قرآن كريم مطالعې انداز دغه وو چه دغه قرآن زما انفرادى زندګۍ په باره كې ما ته څه وائى دا زما اجتماعى زندګۍ په باره كې څه وائى دا زما د خالق او مخلوق په باره د تعلقاتو كې څه وائى دا زما د نور مخلوق سره په باره د تعلقاتو كې څه وائى او د هغې په باره كې به ئې خبره كوله د هغې په باره كې به ئې سوچ كولو د هغې په باره كې به ئې قرآن كريم مطالعه كولو ، اوس مثلا : ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱتَّقُواْ رَبَّكُمُ ٱلَّذِي خَلَقَكُم مِّن نَّفۡسٖ وَٰحِدَةٖ ﴾[1] نو اوس په يا أيها الناس كې به

---

1) [ سورة النساء: ١ ] .

مونږ شروع شو اول به نحو پکښې اوچيړو « يا » حرف ندا ده « يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ » بالفرض منادى ده نو مونږ اول دا خبرے پکښې اوکړو او صحابه کرامو به پکښې دا خبرے نۀ کولے د هغوی طريقه دا وه چه ( يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱتَّقُواْ ) تقوى څه شی دے چه زه د الله نه تقوى کوم څنګه تقوى اوکړم نو د الله نبی ته به راغلل ورته به ئې عرض اوکړو چه يا رسول الله تقویٰ څه شی دے ، نو د هغوی به مقصود بالذات په قرآن کريم کښې دا وو چه پدې کښې ماته الله کوم خطاب کوی، نو مونږ چه کومه منبع او مشرب او کومه چينه راحاصلو نو د هغې په راحاصلولو کښې مونږ خلط ملط راوستلو بيا مونږ د هغې د حاصلولو په انداز کښې خلط ملط راوستلو هغه طريقه هم صفا نده ، صحابه کرامو ته به دغه ادب حاصليدلو دا نۀ چه نۀ به حاصليدلو دغه د علم بلاغت نقطے به ورته حاصليدلے ، د صرف او نحوے نقطے به هغوی ته حاصليدلے دا نۀ چه نه به حاصليدلے خو دا به د هغوی مقصود بالذات نوو ، مونږه به اول صرف و نحوه زده کوو خو دا به مقصود بالذات نۀ وی زمونږ به مقصود بالذات قرآن کريم ازدکړه او عمل وی .

اوس دې خبرے ته لږ سوچ او فکر اوکړه چه مونږ نحو او صرف څو کاله وايو ، او بيا د قرآن کريم تفسير څو مرتبه وايو بس څلويښت ورځې ، دا رنګه د احاديثو دوره څو کاله کوو نو يو کال د احاديثو دوره کوو ، بله دا چه دې خبرے ته ښۀ متوجه شه : چه په مدارسو کښې د قرآن کريم تفسير کومو استاذانو له ورکوی په درس نظامی کښې نو که تاسو اوګورئ اکثر هغه استاذ له ئې ورکوی چه هغه په ټولو استاذانو کښې کمزوری علم واله وی دا لس لس سپاری چه تقسيموی نو اکثر ئې کمزورو علماؤ له ورکوی ، نو اوس تۀ ددې ځائې نه اندازه واخله چه مقصود بالذات زمونږ څۀ شی اوګرځيدلو ؟ نو پدې وجه باندې زمونږ نسل هغه شان نۀ تياريږی کوم چه په اول دور کښې وو ، حال دا چه قرآن کريم هم هغه انقلابی کتاب دے احاديث مطهره هم هغه انقلابی احاديث دي دغه فقه هم هغه د انقلاب واله فقه ده په کتاب الجهاد کښې هم هغه جزبه پرته ده په سړی کښې خامخا جزبه اچوي خو ليکن دا بيا هم په مونږ کښې ولے نه راځی ؟ ځکه چه زمونږ هغه طريقه خطا شويده هغه طريقه مونږ غلطه کړيده .

**۳/ وجه**: د صحابه كرامو به د علم سره پيوسته عمل وو ، يعني علم مع العمل به وو علم به ئې د عمل نه نۀ جدا كولو ، داسې نۀ وه چه اول به علم حاصل كړم بيا به روسته وربانديې عمل كوم داسې نوه بلكه علم راتلل او فوراً وربانديې عمل كول ، او زمونږ طريقه دا نده بلكه ددې په اُلټه ( عكس ) كار كوو ، د اسلام دوه اړخه دي ، ۱/ علم نظري ، ۲/ عملي ، نو دا دواړه به په يو وخت كې چلوے ، اسلام يو طرفته د عقيدے تعمير كوى خو بل طرف ته باعمله تحريک هم جوړوى دا نۀ چه علم به راشى او بيا عمل به وربانديې روسته راشى ، ددې دليل دادے چه الله تعالى فرمائى : ﴿ وَقُرْءَانًا فَرَقْنَهُ لِتَقْرَأَهُۥ عَلَى ٱلنَّاسِ عَلَىٰ مُكْثٍ وَنَزَّلْنَهُ تَنزِيلًا ﴾ [1] ، يعني قرآن مې نازل كړو جدا جدا ددې دپاره چه ته دا قرآن په خلقو ولولې په قلاره ( آرام آرام ) او لږ لږ مې نازل كړو ، ددې دپاره چه فوراً د علم سره عمل راشي، صحابه كرامو به په يو وخت كې د لسو 10 آيتونو نه زيات نه وئيل ، ددې دپاره چه هسې نۀ چه زما علم راشي او عمل پرې رانه شي ، او اوس زمانه كې هغه طريقه نشته علم په ډيرو مسائلو باندې راشي خو عمل په دوو باندې هم نه وي ، يعني علم بدون العمل شو ، هغوى علم ددې دپاره حاصلولو چه عمل پرے اوكړم ، او مونږ وايو چه بس اول علم حاصل كړه چه كله ښۀ لوئ عالم شوے بيا به پرے عمل كوے ، د صحابه كرامو رضوان الله تعالىٰ عليهم اجمعين علم حاصلول خو ورسره پيوست عمل كول وو ددې دليل دا دے : لكه د مونځ مسئله شوه نو دا ندى شوى چه د مونځ او روژے او داسې نورے مسئلے ئې پرے اول يادے كړے او بيا ئې روسته ورته د عمل دعوت وركړو چه اوس به پرے عمل كوئ نو د هغه وخت سره علم مع العمل وو كه ترميمات راغلى دى هغه هم روستو راغلى دى لكه مثلاً اول مونځ كيدو نو اول پكې د سلام جواب وركول هم وو يو به اووئيل : السلام عليكم بل به اووئيل وعليكم السلام، دارنګه اول په مونځ كې خبرے كول جائز وے بيا روسته منسوخ كړے شوے داسې نۀ چه صبر اوكړه اول دي د مونځ پوره احكام ازده شى او خبرے دې پكې بندے كړے شى دا وشى دا

---

[1] [ سورة الإسراء: ١٠٦ ] .

وشی بیا به روستو مونځ ادا کړے ، نۀ بلکه چه د مونځ حکم راغلے دے فوراً ورسره عمل شروع شوے دے او ترمیمات به پکښې په آرام آرام سره کیدل ددې وجه نه صحابه کرامو به هر وخت د ترمیم او د نسخې طرف ته توجه وه لکه نبی کریم ﷺ یو مرتبه د ماذیګر مونځ کولو نو نبی کریم ﷺ پکښې سهو ( خطاء ) شو د څلورو رکعاتو په ځائی باندې ئې دوه رکعاته وکړل نو یو صحابی وو هغې ته به ذی الیدین ویل کیدو نو هغه ذو الیدین د نبی کریم ﷺ نه تپوس کوی «**أقصرت الصلوٰة أم نسيت يارسول الله!**» یا رسول الله ﷺ مونځ کم کړے شو او که ستاسو نه هیر شو ؟ نو نبی کریم ﷺ د نورو صحابه کرامو نه تپوس کوی « **اما قال كما ذواليدين** » ذوالیدین چه څنګه اووئیل داسې خبره ده ، نو ټولو صحابه کرامو اووئیل : چه آو یارسول الله ، نو بیا ئې مونځ پوره کړو ، نو دیته سوچ اوکړه چه د هغوی په ذهن کې دغه خبره ولې پرته وه ، ځکه چه هغوی فوراً مونځ شروع کړے وو ، ددې وجه نه بعضی هغه احکامات الله تعالیٰ نه نازلول تر څو چه دوی ته قوت نۀ وو حاصل شوے ددې دپاره چه بیا پرے عمل کول فورا وی لکه مثلاً جهاد شو نو جهاد امر ئې ورته نه کولو ځکه که ورته ئې کړے وے نو بیا د الله دین داسی نه وو چه دا حکم ئې ورته لس کاله مخکې اوکړو او بیا چه کله لس کاله بعد مدینې منورے ته لاړ شی بیا به پرے عمل کوی ، نۀ بلکه تر هغه وخته پورے ئې ورته امر نۀ کولو نو چه کله به ئې ورته امر اوکړو بیا فوراً عمل کول وو چه بس اوس شابه عملی کوه ئې په هغې کې بیا تأخیر نۀ وو بس فوراً په هغې باندې عمل کول وو د صحابه کرامو په دور کې ، او هر چه زمونږ دور دے نو اوس دغه مسئله نشته دے زمونږ په دور کې خو اسلام کامل دے پکار دي چه په کومه مسئله باندې زمونږ علم راځی نو سمدست ورسره عمل کوو ، نو د اسلام دغه تحریک به هله راپورته کیږی چه کله علم راشی او سمدست ورسره عمل راشی ، مثلا اوس مختلف جماعتونه د اسلام د راوستو کوشش کوی لکه مبلغین حضرات دی دوی وائی چه مونږ به اسلام راولو د هغوئ د اسلام راوستلو طریقه دا ده چه اسلامی سوچ او فکر خلقو ته په ذهن کې واچوه اوس خو اسلامی سوچ په

نظری انداز کې ورکړے شو خو آیا په عملی انداز کې دغه سوچ نشته دے دغه مفقود دے نو داسی نشی راتلے ، دارنګه سیاست واله خپل یو انداز جوړ کړیدے چه عملی انداز پکې شته دے خو علمی انداز پکې نشته دے ، دغه شان بعضی خلقو ته چه ته اوائی : اسلامی نظام دې قائم شی نو دې به ورته وائی چه نوے او جدید فقه مدون شوے ده څه ، ته به وائی چه اسلامی نظام ددې وجه نه پاتې دے چه جدید فقه نشته ، نو جدید فقه د مخکې نه مدون کول ضروری ندی ، بلکه اول به اسلامی نظام قائم کړے چه کله ضرورت راشی نو بیا په هغه وخت کې اکثر علماء کرام کینوے مسئله به حل کړی نو زمونږ په ذهن کې دا خبره راغلے ده چه نظریت دې مخکې وی او عملیت دې روستو وی لکه مثلا که ته یو طالب العلم ته د جهاد دعوت ورکړے نو هغه به په جواب کې درته ووائی چه یره جی زه خو اوس طالبئ کې یم زه به اول علم د جهاد حاصلوم د عمل د جهاد نه زما غاړه خلاصه ده نو علمی انداز مقدم او عملی انداز روستو دے ، حالانکه د صحابه کرامو په دور کې ټول صحابه کرام طالبان وو او دوی به علم سره سره عمل کولو لکه اصحاب صفه چه د ټولو نه اولنی طالبان دی د هغوی په باره کې راځی : «**وکانوا یخرجون فی کل سریة بعثها رسول الله ﷺ**» نبی کریم ﷺ چه به کومه سریه لیږله نو دغه اصحاب صفه به په هغې کې وو نو دغه اصحاب صفه طالبان هم وو خو عملی کار به ئې هم کولو ، لیکن هغوی علم سره فوری عمل کولو او مونږ علم مقدم کړیدے او عمل مو روستو کړیدے ، نو علم او عمل دواړه په یو ځائی باندې روانول نو دا رواں دواں تحریک دے .

ددې وجه نه مونږ دا نظریاتی شرعی دوره هغه چا ته نه کوو چه کوم جهاد نه کوی پکار خو دا وه چه دا دوره مونږ هغه چاته کړے وے چه کوم جهاد نه کوی خو دا ورته ځکه نۀ کوو چه هغوی به ددینه صرف علمیت حاصل کړی او عملی انداز نه ورکوی ، ددې وجه نه یو روایت کې راځی : «**نهی رسول الله عن قیل وقال و کثرة السؤال**» نبی کریم ﷺ د ډیر قیل او قال نه منع کړیده او د ډیرو سوالونو نه ، چه د مخکې نه مسئله نه وی راپیښه شوے نو سوال به نۀ کوے ځکه چه بیا به علم راشی او عمل به ورسره نوی ، نو اسلام داسې دین

ندے چه علم دي وی او عمل دي نوی بلکه علم او عمل په یو ځائی باندې غواړی دا د صحابه کرامو طریقه وه ، نو دا زمونږ په منهج کې دغه فرق وو پدې وجه باندې هغه درے مذکوره طریقو سره مونږ نشو رسیدلے .

نو حاصل دا شو : چه اسلامي نسل د ترقئ دپاره اهم هدف هغه علم د قرآن او حدیث او ورسره فوراً عملي کول ، بس چه کومو خبرو علم ورته حاصل شی هغه عملي کړه نو کامل نسل به پیدا شی .

## د موجوده دور واله او د صحابه کرامو په عمل کې فرق

په منهج د عمل کې هم زمونږ فرق شته دے او هغه داسې چه د صحابه کرامو او زمونږ په عمل کې فرق دے نبی کریم ﷺ چه کله دنیا ته راغلو نو یو تهذیب ئې دنیا ته وروړاندے کړو ، آیا چه کوم تهذیب ئې دنیا ته ور وړاندے کړو نو په دغه وخت کې نور تهذیبونه نۀ وو ؟ آو وو ، په هغه وخت کې رومی تهذیب وو او یو ځان ته قانون ئې لرلو ، دغه شان یونانی ځان ته یو تهذیب موجود وو د یونان فلسفه او منطق ځان ته چلیدل ، دغه شان د عجمو ځان ته یو تهذیب وو ، نو دغه قسمه تهذیبونه ډیر زیات موجود وو دغه شان په مدینه منوره کې د عربو په خپل مابین کې خپل خپل تهذیب وو لکه د یهودو ځان ته یو تهذیب وو د عیسیانو ځان ته یو تهذیب وو ددې وجه نه نبی کریم ﷺ دغه تهذیبونه نۀ وو مختار کړی او نبی کریم ﷺ یو اسلامی تهذیب خلقو ته ور وړاندے کړو او دا تهذیب نبی کریم ﷺ ددې وجه نه وروړاندے کړو چه د انسانیت د کامیابئ نقطه په دغه اسلامی تهذیب کې پرته وه .

نن صبا زمونږ عملی منهج خراب شوے دے تهذیب اوس زمونږ هغه تهذیب ندے پاتې ځکه زمونږ په تهذیب کې خلط ملط دے لکه تۀ پدې خبره کې سوچ اوکړه چه مونږ یو طرف ته وایو چه مسلمانان یو او بل طرف ته چه اوګورے نو زمونږ حکومتی سستم او آئین د اسلام واله ندے ، بل طرف ته چه اوګورے زمونږ رسم او رواج کوم دے نو اصل کې په مونږ باندې د ځلورو پنځوو تهذیبونو سایه ( سورے ) پرته ده ، او د صحابه کرامو تهذیب یو تهذیب وو نو هغه ځکه کامیابئ ته رسیدل ، نن که مونږ دا وغواړو چه د یورپ سره په مادی

قوت باندې مقابله اوکړو نو نۀ ئې شو کولے ، که د مغربي قوتونو سره مونږ په مادی قوت سره جنګ کول غواړو نو نۀ ئې شو کولے ځکه چه هغوی داسې مقام ته رسیدلی دي چه مونږ دغه مقابله نشو کولے ، اوس زمونږ چلنج او د ماتې ورکولو دپاره دغه یو تهذیب پاتې دے چه مونږ دې هغه اسلامی تهذیب راواخلو او پدې اسلامی عملی تهذیب باندې الحمدلله ټول نظامونه په افغانستان کې چلنج کړل په افغانستان باندې د حملے کولو واحده وجه دا وه چه دنیا ته څومره نظامونه پیش شوی وو دغه ټول نظامونه د خلقو په نظر کې اوغورځیدل ، لکه کمیونزم ورته خپل نظام پیش کړے وو هغه مات شو ، بریټش نظام مات شو ، سیکولرزم مغربي جمهوریت هغه د خلقو په نظر کې اوغورځیدلو ځکه چه اسلام دنیا ته یو داسے آئینه پیش کړه چه خلق حیران شول چه اوهو دغه نظام مونږ له پکار دے خلق دغه نظام ته متوجه شو دا ځکه چه دا واحد فکر ئې راغستے وو زمونږ دلته ولې کار خراب دے ځکه چه مختلف فکرونه او تهذیبونه راجمع شویدی نو عملی لحاظ سره چه زمونږ تهذیب واحد اسلامی شی بیا به مونږ هله کامیابیږو ، خو اسلامی تهذیب او اسلامی نظام به مونږه د کوم حیثیت نه منو ؟ آیا ددې حیثیت نه چه یره مونږه موازنه وکړه د نورو تهذیبونو سره نو پس مونږه ته اسلام یو ښۀ او بهتر ښکاره شو نۀ ! ددې وجه نه نۀ ! بلکه اسلامي تهذیب او اسلامی نظام او قانون به ددې وجه نه منې چه دا د الله تعالیٰ نظام دے دغه منل دي ، او که نۀ ته موازنه اوکړے چه نه دا ددې نظام نه ښۀ دے او ددې بل نظام نه ښۀ دے او پدیکې خو ډیره ګټه ده رازه بس هم دا راواخله بیا به ستا نه خامخا خلط ملط راځی ولې به راځی؟ ځکه چه یوه نیمه خبره به داسې وی چه ته خو انسان یۍ د انسان ذهن کمزورے وی بیا به هغه ستا په طبیعت ښۀ رانشی نو هغه به ته بیا د بل نظام نه را واخلے نو دغه کې به بیا ستانه خلط ملط راځی ، او که تۀ چرته دا نظام ددې وجه نه منے چه د الله تعالیٰ نظام دے نو بیا ته چه په کومه خبره نه پوهیږے نو وائی به چه دغه الله تعالیٰ صحیح رالیږلے دے خو زه ورباندے نه پوهیږم نو زۀ ئې ولې پریږدم او زۀ ولې د بل تهذیب نه خبره را واخلم نو تهذیب اسلامی خپلول ضروری دي نو په عمل کې زمونږه دغه نقصان دے صحابه کرامو چه کله جاهلیت پریښودل او اسلام ته

راغلل نو دوئ د جاهليت سره مکمل تعلقات کټ کړل او د هغوی هغه الفاظ ئې هم پرېخودل بعضی الفاظ داسې وو لکه مثلا مدينې منورے ته به ئې يثرب وئيل نو هغه ئې پرېخودو داسې نور الفاظ لکه عتمه د ماسخوتن مونځ ته به هغوی عتمه وئيل هغه ئې ختم کړو دومره ئې تعلقات د جاهليت سره کټ کړل ، خو بيا هم انسانان وو کله کله به ترې يو خطا کار وشو نو فوراً به پرے خپيمانه شو ، او نن مونږ په عملی طور سره په جاهليت کې ډوب يو زمونږ په زمانه کې هم هغه شان جاهليت بيا پيدا شو لکه څنګه چه د نبی کريم ﷺ په زمانه کې وو ، لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ ٱلْجَٰهِلِيَّةِ ٱلْأُولَىٰ وَأَقِمْنَ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتِينَ ٱلزَّكَوٰةَ وَأَطِعْنَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥٓ إِنَّمَا يُرِيدُ ٱللَّهُ لِيُذْهِبَ عَنكُمُ ٱلرِّجْسَ أَهْلَ ٱلْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيرًا ﴿٣٣﴾ ﴾[1]

د ابن عباس رضي الله عنه نه تپوس اوکړے شو چه دا جاهليت اولی وو ولے څه بل جاهليت هم وو ؟ هغهٔ ورته وفرمائيل : «**ما رأيت الأولىٰ إلا وله الأخرىٰ**» ما اول ندے ليدلے مګر هغه دپاره بل وی ، نو جاهليت اول هغه او دغه جاهليت الاخری دے بلکه دغه جاهليت د هغه جاهليت نه خطرناک دے نو د جاهليت څلور ارکان دي بيا به ئې ان شاء الله په خپل ځائی په تفصيل سره وايو ، خو اوس ئې اجمالاً طريقې سره ذکر کوو ، چه دا ارکان چرته موجود شی هلته به دا جاهليت موجود وي .

**د جاهليت څلور ارکان دي** :

**١/ ظن الجاهلية** ، ظن الجاهلية دا دے : چه تهٔ دا ګمان شروع کړے چه دغه کسان دي اګر که په حقه دي خو دوئ فتح نشی موندلے دغه ظن الجاهليت دے .

**٢/ حكم الجاهلية** : چه د الله تعالیٰ د قانون نه علاوه په بل قانون باندې فيصلے شروع کړے لکه الله تعالیٰ چه فرمائی : ﴿ أَفَحُكْمَ ٱلْجَٰهِلِيَّةِ يَبْغُونَ ۚ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ ٱللَّهِ حُكْمًا لِّقَوْمٍ

[1] [ سورة الأحزاب : ٣٣ ] .

يُوقِنُونَ ﴿٥٠﴾ ﴾[1]

**٣/ تبرج الجاهلية** : يعنى د جاهليت په انداز كې د ښځو راوتل دي بهر ته لكه الله تعالىٰ فرمائى : ﴿ وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ ٱلْجَٰهِلِيَّةِ ٱلْأُولَىٰ ﴾[2]

**٤/ حمية الجاهلية** : يعنى په جاهليت باندې غيرت كول ، لكه الله تعالىٰ فرمائى :

﴿ إِذْ جَعَلَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ فِي قُلُوبِهِمُ ٱلْحَمِيَّةَ حَمِيَّةَ ٱلْجَٰهِلِيَّةِ فَأَنزَلَ ٱللَّهُ سَكِينَتَهُۥ عَلَىٰ رَسُولِهِۦ وَعَلَى ٱلْمُؤْمِنِينَ وَأَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ ٱلتَّقْوَىٰ وَكَانُوٓاْ أَحَقَّ بِهَا وَأَهْلَهَاۚ وَكَانَ ٱللَّهُ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمًا ﴿٢٦﴾ ﴾[3]

په جاهليت باندې غيرت كول دا وو چه په قوميت باندې راپاڅيدل په قوميت باندې جنګونه كول .

اوس تاسو اوګورئ چه زمونږ پدې دور كې دا څلور واړه اركان موجود دي او كنه ؟

**ظن الجاهلية** ، د خلقو ګمان څۀ دے د مجاهدينو په باره كې چه دغه ډله به كامياب نشى او دا نۀ كاميابيږى ، لكه يوه ورځ د بى بى سى راډيو نه ئې اووئيل : چه دا ناممكنه ده چه په افغانستان كې دې اسلامى امارت نافذ شى او بيا ئې دا اووئيل : چه دا څكه نشى قائميدلے چه ټيک ده طالبان به خپل كوششونه كوي او مقابله به كوى خو مونږ سره 32 ممالک دا خبره منى چه دغه نظام دې وى او دوى سره دا خبره نۀ منى ، نو څنګه به دوي خپل نظام راولي او ځان ته ئې مسلمانان هم وئيلي نو دا هغه ظن الجاهليت دے .

**بل حكم الجاهلية**، چه اصل كې به قانون د چا چليږي نو اوس دا وګوره چه دا شته او

---

1) [ سورة المائدة : ٥٠ ] .

2) [ سورة الأحزاب : ٣٣ ] .

3) [ سورة الفتح : ٢٦ ] .

کنه ؟ نو په ملک کې قانون د چا چلیږی کفری قانون چلیږي کنه نو دا حکم الجاهلیت شو .

**بل تبرج الجاهلية**، زنانه بازارونو ته راوتي دي او که ندی راوتے ؟ ښځې په بازارونو کې ګرځی او سنګار ئې کړے وی دې دپاره چه مائلات شی خلق ځان ته مائله کوی لکه څرنګه چه په حدیث کې راځی نو په هغه انداز کې ګرځی ، نو دا تبرج الجاهلیت شو .

**بل حمية الجاهلية** ، په قوم باندې خلق راپاڅیږي او که نهٔ ؟ نو د قومیت دپاره خلق راپاڅیږی او د اسلام مقابله کوی لکه پدې موجوده دور کې ددې ډیر مثالونه دي ، نو دا څلور واړه ارکان د جاهلیت موجود دی او چه کله دا ارکان د جاهلیت موجود شی نو جاهلیت ورسره موجودیږی پشان د جاهلية الأولى نو دغه جاهلیت نن هم موجود دے ، خو اوس زمونږه د جاهلیت سره عملی مقاطعه او عملی قطعه موالات نشته دے عملی قطعه موالات به ورسره کول غواړی چه مونږ د جاهلیت یو عمل هم نه کوو د هغوی چه څومره رسومات او رواجونه او قوانین دي چه د هغې نه مونږه مکمل بائکاټ وکړو نو بیا به زمونږ منهج عملی قائمیږی ، نو دغه منهج العلم والعمل وو چه زمونږ علم او عمل یو برابر مطابق شی په یو وخت کې شی دا نه چه علم دې مخکې وی او عمل به بیا چرته بل وقت کې وی ، دا نهٔ بلکه دواړه دې په یو وقت کې وی او د دواړو مبدأ دې خالص قرآن او احادیث نبویه او فقه دې وګرځی او د دواړو طریقه دې هم هغه طریقه وګرځی کومه طریقه چه صحابه کرامو رضوان الله تعالیٰ علیهم اجمعین ګرځولے وه هغه طریقه دې وګرځیږی په علمی انداز کې او په عملی انداز کې دې تهذیب اسلامی وګرځی او دغه اسلامی تهذیب دے ددې وجه نه اسلامی تهذیب وی چه دا د الله تعالیٰ قانون دے بس د بلې وجه نه نهٔ او دغه اسلامی تهذیب دے بیا داسې وی چه په هغه کې ستا مکمل د جاهلیت سره قطعی موالات وي هله به تحریک اسلامی کامیاب کیږی او هله به ته د کامیابئ طرف ته روانیږی او هم هغه شانتے نظام به الله د زمکې په مخ قائموی څنګه چه اول قائم کړے وو .

نبی کریم ﷺ فرمائی : زما د امت مثال پشان د باران د څاڅکو دے چه دا پکې نه

معلوميږی چه اول بهتر دے که اخر بهتر دے ، شاه ولي الله رحمه الله فرمائی چه د امت په اول کې به هم بهترین خلق پیدا کړی او په اخره کې به هم بهترینه طائفه راپاسوی کیدے شی چه الله پدې اخر کې داسې ډله راپاڅوی چه الله تعالیٰ به د هغوئ په لاس هغه شان نظام قائم کړي الله دې مونږ په هغوئ کې بطور سبب استعمال کړی .

و بالله التوفيق .

❋❋❋❋

## منهج العلم والعمل ( دويمه حصه )

منهج العلم والعمل ، يعنى د علم او عمل والا لاره ، دين اسلام د علم او عمل مجموعه ده، او دا علم او عمل په يو وخت كې غواړي ، په دې علم او عمل كې جدائى نه غواړي ، ددې علم او عمل دپاره چه دوي كومه منبع ( چشمه ) مقرر كړے ده ، هم دغه چشمه غواړي او خالصه ئې غواړي په هغې كې خلط ملط نه غواړي ، د هغې په مفهوماتو باندې بل شكل نه غواړي، كه په هغې باندې بل نقش راغـے نو بيا دغه مفهوم تاته هغه فائده نه دركوي چه د كومې فائدې دپاره دا راغلے دے لكه په مخكې درس كې د هغې وجوهات ذكر كړې شوو ، چه كوم نسل چې دوي په قرنِ ( پيړئ ) اول كې تيار كړے وو هغه اوسنې قرن كې ولې نه تياريږي ، د هغې دپاره مونږ وجه ذكر كړے وه چه هغه لاره كې زمونږ فرق دے هغه منبع كې زمونږ فرق راغلے دے كومه منبع ( چشمه) چه صحابه كرامو رضي الله عنهم اجمعين وه ، هغه منبع زمونږ هم ده خو ليكن هغه منبع هغوي ته خالصه وه او مونږ چه دغه منبع حاصلوو نو په دې باندې مختلف شكلونه راغلي دي، مختلف نقشونه پرې راغلي دي ، چرته پرې د فلسفې نقش پروت دے ، هلته زمونږ ذهن فلسفينو طرف ته ځى ، او زمونږ سوچ او فكر هغه اصلي مقصد طرف ته نۀ ځي او چرته كې سائنسي نقش پروت دے نو هلته كې بيا زمونږ ذهن سائنس طرف ته ځي او اصلي مقصد د عقيدے او د عمل تعمير طرف ته زمونږ ذهن نۀ ځي، او چرته په هغې باندې اسرائيلي واقعات دي په هغه اسرائيلي واقعاتو كې زمونږ ذهن لاړ شي، او عجيبې عجيبې قصې ترينه مونږ بيا راخلو ، نو كه چرته قرآن كريم پدې مقصد باندې مطالعه كړے شي ، او پدې مقصد باندې د هغې درس او تدريس اوكړے شي نو چه په هغې باندې د عمل او عقيدے تعمير اوشي نو دا قرآن كريم هم هغه شان نسل تياروي كوم نسل ئې چه په اوله پيړئ كې تيار كړے وو ، خو قرآن كريم څوک پدې حيثيت باندې وائى چه دا د قيصو كتاب دے ، څوک ئې پدې حيثيت باندې وائى چه زه پدې سائنسي تجربات معلوم كړم يا په بل اعتبار سره ئې وائى ، دغه رنګه علم كلام وائى ، د عقائدو علم وائى ، خو

هغه د عقائدو علم د إلـٰهياتو د فلسفې د فلسفيانو چه كوم يوناني فلسفه ده ، د هغې د إلـٰهياتو مطابق به ئې وائي ، بيا دغه إلـٰهياتو مطابق چه كله علم كلام ويلې كيږي ، نو په دغه علم كلام كې به بيا هغه اثر نه وي چه كوم اثر په هغې كې وو ، هغوي د الله د ذات او صفاتو معرفت په دې كې مقصود دے ، او د آخرت معرفت پدې كې مقصود دے په علم عقائد او علم كلام كې ، خو ليكن چه كله ستا په علم كلام كې فلسفي رنګ چراؤ شو نو بيا به ستا ذهن كې فلسفي او هغه صورتونه په ذهن كې راځي ته به بيا په دې كې لګيا ئې چه ياره هيولیٰ څنګه باطليږي ، صورت جسمي داڅه شے دے ، بس پدې سوچونو كې به بيا لګيا يې او هغه اصلي مقصد به تا نه فوت كيږي ، نو ددې وجې نه مونږ دا خبره كوو چه دغه منبع او مبدء صفاء كول پكار دي .

اوس دغه منبع به مونږ څنګه صفا كوو ، نو بعضې د اسلام دشمنان خلق خو مونږ سره د اسلحې جنګ كوي ، او بعضې خلق مونږ سره پدې منبع كې د خلط ملط راوستلو كوشش كوي ، او په تير شوي درس كې مونږه ذكر كړی وو چه دا قرآن كريم مختلفې طريقې اختياريږي په مختلف شكلونو كې اګر چه هغوي نه كاميابيږي چه حقيقت ددې بدل كړي الفاظ ددې بدل كړي ځكه الله تعالیٰ د دې د حفاظت وعده كړے ده، الله تعالیٰ فرمائی :

﴿ إِنَّا نَحۡنُ نَزَّلۡنَا ٱلذِّكۡرَ وَإِنَّا لَهُۥ لَحَٰفِظُونَ ﴾ [1] " يقيناً مونږ نازلونكي يو ددې قرآن او مونږ به ددې حفاظت كونكي يو " ، د بنی اسرائيلو پشان ئې داسې ندي ويلي : ﴿ بِمَا ٱسۡتُحۡفِظُواْ مِن كِتَٰبِ ٱللَّهِ ﴾ [2] " يعنی ددې حفاظت به دوي ته سپارلې شي " ، بلكه مونږ ته ئې داسې وئيلي دي چه ما نازل كړے دے او زه به ئې حفاظت كوم ، نو د الفاظو په اعتبار سره پكې څوک تبديلي نشې راوستلې ، خو ليكن په كومه لاره چه تاته دا قرآن او اسلام

---

[1] [ سورة الحجر: ٩ ] .

[2] [ سورة المائدة: ٤٤ ] .

رارسيدلي دے او په کومې طريقې سره ئې چه ته زده کوے نو په دغه کيفيت او لاره کې تاته خلط ملط راولي ، نو دغه خلط ملط چه راولي دغې ته ويلې کيږي فکري جګړه او فکري مقابله ، او دغه فکري مقابله د اسلحې د مقابلې نه ګرانه ده او سخته هم ده ، ځکه دوي ستا په علم کې مختلفې طريقې راولي ، قرآن کريم درته په داسې انداز کې وړاندې کوي چه دا يو تحقيقي کتاب دے بس صرف تحقيقات کوه او چه تا يو تحقيق اوکړو نو تهٔ محقق شوے، نو ستا د علم او عمل ترمينځ فرق راولي ، زمونږ د مدارسو نه ئې دار العلوم جوړ کړل چه صرف علم پکې ياديږي ، خو ليکن پکار دا وه چه دار العلوم والاعمال وے ، نو دا خبره مونږ ته بده ښکارى چه پدې مدرسه کې علم حاصليږي سره د عمل نه ، لکه په مدرسه کې د کتاب الجهاد د قدوري نه واخله تر د صحيح البخاري پورے کتاب الجهاد موجود دے ، خو د دې کتاب الجهاد علمي شکل پدې مدارسو کې شته دے خو عملي شکل په مدارسو کې نشته ، او که ته عملي شکل ورکوے نو اول خو دې حکومت نهٔ پريږدى فوراً دې ګرفتاره وى ، او بيا د مدرسې عمله دې هم نهٔ پريږدي او ستا نه خفه کيږي هم ، دارنګه کتاب الحدود واخله ، نو دا مونږ ته راښائى چه حد به څنګه جاري کيږي ، د شرابو حد څه شے دے ، حد د سرقې څه شے دے ، حد د زنا ، وغيره دا ټول حدود علمي شکل کې موجود دي ، خو عملي شکل کې دا نه دي موجود ، د عملي شکل ددې ورکولو په باره کې د چا سوچ هم نشته دے ، د فقه نه هم يو تحقيقي کتاب جوړ شو ، چه ماته د حدودو عجيب عجيب مسائل خو معلوم دي خو ليکن عملي شکل نشته ، صحابه کرامو ته چه مثلاً دا آيت نازل شو چه : ﴿ ٱلزَّانِيَةُ وَٱلزَّانِى فَٱجْلِدُواْ كُلَّ وَٰحِدٍ مِّنْهُمَا مِاْئَةَ جَلْدَةٍ ﴾ [1] د هغې نه پس دا خبره نه وه چه قرآن به ټول نازليږي نو بيا به مونږ حد جاري کوو ، داسې نده خو بس چه دا آيت نازل شو نو فوراً عملي شو ، چه په دار العلوم کې کتاب الحدود زده شو پکار ده چه د دې حدود دپاره يوه محکمه جوړه شي ، خو نن دا دار العلوم والعمل داسې شو لکه سيکولرزم چه څنګه دے ، لکه ددې په باره کې به روسته ان

---

[1] [ سورة النور : ٢ ] .

شاء الله معلومات راشي بيا به د هغې نه بحث کوو ، سيکولرزم وائى : « **ماکان لله کان لله وما کان للقيصر کان للقيصر** » " څه چه د الله دپاره دي هغه د الله دپاره دي ، او څه چه د بادشاه دپاره هغه د بادشاه دپاره دي " ، يعنې د بادشاه په سياست کې د الله کار نشته ، او د الله په مسجد کې د بادشاه کار نشته ، نن هغه نظريه په حقيقت کې په مونږ کې رادننه شوه ، نو مونږ وايو چه د مدرسې دې سره کار نشته چه مدرسې واله دې راپاڅی او اسلامي احکامات دې جاري کړي او اسلامي نظام او خلافت دې قائم کړی ، درانګه د مدرسې دې سره کار نشته چه جهاد دِ اوکړی ، بس د مدرسې صرف جهاد ښودلو سره کار دے ، د ملا سړي دا کار ندې چه دا دې جهاد اوکړي ، بس ملا به صرف ښودل کوي ، دارنګه د مدرسې کار صرف خودل دي چه حدود ديته ويلې کيږي ، د مدرسې دا کار ندے چه هغه به حد جاري کوي ، يا به هغه د حد جاري کولو دپاره هغه کوشش کوي ، او يا به د هغې دپاره جنګ کوي چه حدود ولې نشته ، نو دا لاړې مونږ د يو بل نه جدا کړے ، نو دا نقصان چه مونږ ته څوک راپيدا کوي ديته فکري جګړه ويلې کيږي، نو دا فکري جګړه د عسکری جګړے نه خطرناکه ده ، **ولې ددې څه وجوهات دي ؟**

**١/ وجه** : عسکری جګړه ښکاره وی ، او فکری جګړه پټه وی ، ځکه کله چه په يو ملک باندې عسکری حمله اوشی نو د هغه ملک سړي بډاګان ، زنانه ، او ماشومان ددې خبرې نه خبر شي چه په مونږ باندې عسکری حمله شوے ده ، نو هغوی د هغه عسکري حملې په مقابله کې ودريږي پدې حيثيت چه زمونږ خاوره غصب کيږي ، زمونږ زمکه غصب کيږي ، او چه کله فکري جنګ شروع شي نو هغه پټ جنګ وي ، د هغې پته چاته نه لګيږي ، دا پته هم چاته نه لګيږي چه پدې ملک باندې يو جنګ روان دے ، نو دا فکري جنګ خفيه روان وي، ددينه صرف يو څو ماهرين کسان خبر شي ، او هغه ماهرين دنيا ته خبر ورکړي ، چه اے خلقو په تاسو باندې فکري جنګ روان دے خو ليکن دغه اکثر خلق د هغه خبره هم نهٔ مني، دوي بيا هله پوهه شي چه کله خبره مکمله اُلټه شی ، مثلاً : په مخ د زمکه باندې چه

عسكري جنګونه چه څومره شوي دي ، هغه على الاعلان دي ، لکه اوس تقريباً په تمام اسلامي ملکونو باندې فکري جنګ روان دے ، په ډيرو امورو کې فکري جنګ دے ، ۱ ـ سياسي سطح باندې مونږ سره فکري جنګ روان دے ، اسلامي سياست د منځه لاړو او د هغې په مقابله کې مونږ ته مغربي سياست راوړاندې شو ، ليکن مغربي سياست باندې چه مونږ ډير اعلانونه خلقو ته اوکړو چه په تاسو باندې فکري جنګ شروع دے نو خلق ئې درسره نۀ منې ځکه چاته پته نه لګيږي ، تردې پورے چه خلق دې نظريې ته راغلل چه کومې خبرې دوي اسلامي ګنړي نام نهاد اسلامي ګنړي هغه په حقيقت کې اسلامي نه وے ، او د هغوي سوچ دا دے چه دا کوم موجوده نظام زمونږ دے ، نو دا په حقيقت کې اسلامي نظام دے ، نو دا په سياسي سطح باندې مونږ سره جنګ شروع دے، دغه شان په فوجی او عسکری سطح باندې تا سره فکری جنګ شروع وی ستا د فوج چه کوم مشران وي ستا د فوج چه کومه نظريه وي نو هغه نظريه ئې مکمل بدليږي ، د هغوي چه کوم احساس وي هغه د هغوي نه اوباسلے شي ، دغه شان ددې سره تعليمي جنګ له تاسره روان دے ، ستا چه کوم تعليم وو هغه اغستلے شي ، ستا چه کوم معنوي علم وو هغه ختمولے شي ، په هغې کې تاته قسما قسم طريقې راؤباسي ، او په هغې کې د علم او عمل ترمينځه جدا والې راولې نو معنوي علم دې هم خراب شو او مادي علم درلره هم خرابوي ، ځکه ستا چه کوم مادي تعليم دے نو هغه دې هم د هغوي د ذهن مطابق راليږي ، فکري جنګ درسره په هغې کې هم کوي ، لکه مثلاً : تاسو په کتابونو کې ګورئ چه کومو خلقو زمونږه ملکونو ته مغربي تعليم راوړے دے نو هغه څوک وو ؟ نو هغه خو په حقيقت کې د علماء ديوبند سره په مقابله کې ولاړ وو څوک پکې د ملائکو وجود نه منکر وو ، څوک پکې منکر حديث وو او دې مغربي خلقو ورته بيا مختلف القابات ورکړی وو چاته به ئې « سر » لقب ورکړو ، او چاته قائد وغيره نو دا د کومې درجې واله خلق وو ، نو پوشيده جنګ او خفيه جنګ روان دے ، او دا خفيه جنګ درسره کوي ، دارنګه د عصري تعليم په کتابونو کې لکه مصطفى کمال اتاترک په دنيا کې د ټولو نه خطرناک سړے چه تير شوے دے د يهودو د "پری مسن" غټ مشر چه تير شوے

دے هغه مصطفی کمال اتاترک وو ، په ترکي کې خلافت عثمانيه دده په لاس باندې ختم کړے شو ، او جمهوريت مغربي ئې په دې ملک کې رائج کړو د مصطفیٰ کمال اتاترک په لاس باندې ، نو هم دغه مصطفی کمال اتاترک مونږ ته په کتابونو کې په کوم انداز کې راوړاندې کوي ، ديته يو غټ مقام ورکوي ، فکري لحاظ سره زمونږ په ذهن کې د قيادت چه کوم سوچ دے هغه قيادت فکري لحاظ سره ستانه ختموي ، ستا په ذهن کې د داسې خلقو قيادت راوړاندې کوي چه هغه خلق د مغرب قائدين پاتې شوي وي ، او هغه د غربي فکر نشر کونکي پاتې شوي وي ، نو داسې خلق تاته مشران جوړوي ، نو دا تاسره فکري جنګ شروع دے ، د تعليم په طرز او طريقه کې تاسره چل کوي تانه خپل منهج العلم والعمل خو پاتې شو، او ددې منهج په ځائې ئې خپل تعليم درته جوړ کړو او هغه درباندې عملي کوي او تا خپل علم عمل ته نۀ پريږدي چه ته ئې ملک کې رائج کړې ، او اوس خو چه هغه خپل تعليم درکوي نو په هغې کې هم دهوکه درکوي ، د دوي تعليم مثلاً : 10 کاله دے په لس 10 کالو کې دوي چه کوم ځائې ته رسي ، هغه زمونږه تعليم کې په شپاړس 16 کاله کې رسي نو دغه چه اوکړي نو بيا ورپسې کله نورو ملکونو ته ځي نو کوم عمر ته ورسيږي ، دې وجه نه شيخ اسامه بن لادن رحمه الله هغه داسې يو جدول جوړ کړے وو ، چه هغه داسې يو مثلث نشان جوړ کړے وو پدې کې هغه يو درې 3 کرخې راکاږي ، دا وائې انسان چه کله پيدا شي ، نو د دۀ ماشوم والې شروع کيږي د صِفَّر نه تر 5 کالو پورے ، بيا د 5 کالو نه واخله تر 15 سال پورې پديکې هم دا يو قسم ماشوم وی ځکه چه پوره پوهه ورته نوی حاصل ، او بيا د 15 نه تر 30 پورے دا شرعي نوجواني ده ، او د ۳۰ نه واخله تر 60 پورې شرعي عمر دے ، اوس چه يو ماشوم تعليم کوي نو تر متړک پورے ددې عمر 16 کاله شي ، ددې نه بعد چه دا شپاړلسم 16 کلاس پورې رسي نو دده عمر تقريباً 22 سال ته رسيدلے وي ، د هغې نه پس بيا دا ډګري کوي چه کله ددۀ ډګري ختميږي نو دده عمر 30 سال شو ، نو دده شرعي جواني لاړه ختمه شوه نو کوم کارونه چه په جوانئ کې کيږي هغه خو داسې ختمه شوه ، او الله تعالیٰ د ابراهيم عليه

السلام په باره کې فرمائی کله چه ده بوتان مات کړل : ﴿ قَالُوا۟ سَمِعْنَا فَتًى يَذْكُرُهُمْ يُقَالُ لَهُۥٓ إِبْرَٰهِيمُ ﴾[1] " وائی دوي چه اوریدلی دی مونږ چه یو ځوان ددې بوتانو په باره کې وائی ... " ، دارنګه د اصحاب کهف په باره کې الله فرمائی : ﴿ إِنَّهُمْ فِتْيَةٌ ءَامَنُوا۟ بِرَبِّهِمْ وَزِدْنَٰهُمْ هُدًى ﴾[2] یعنی دا نوجوانان وو چه د ظالم بادشاه په خلاف اودریدل ، نو چه یو سړے د دین یا دنیا دپاره کار کولې شي نو دا په ځوانئ کې کولې شي ، او د 30 سال نه بعد دا د یو کار هم نه وي نو زندګی ئې تباه شی ، او د دوي تعلیم تقریباً 22 یا 25 کاله کې ختم شی او بیا په یوه غټه عهده باندې ناست وی هغه د یهودی واقعه خو به تاسو ته یاده وي چه په انډونشیا کې تقریباً کړے هغه د 22 کالو وو او څومره لوئی أفسر وو ، نو دا ډیر لوئ فرق دے او دا فرق ځکه راغلې دے چه زمونږ چه کوم اصلي منهج د علم او عمل وو نو هغه دوي زمونږ نه اغستې دے ، اوس مونږ په مادي طریقې باندې د یورپ سره جنګ نشو کولې ، نو اوس د کامیابئ دپاره دا طریقه ده چه اصلی مادي ته مونږ واپس لاړ شو چه هغه منهج العلم والعمل دے چه کوم په اول دور کې وو هغه خالص قرآن او سنت او فقه مبارکه وه نو دې منهج ته به واپس کیدل غواړي او ورسره فوراً به عملی هم وي داسې نه چه عملی به بیا چرته روستو کوو ، نۀ فوراً به وی نو بیا به مونږه پوره پوره کامیاب یو او د هر چا مقابله به کولے شو .

**دويمه خبره** : چه د عسکري جګړے هدف هم فوج وي نو یو طرف ته هم عسکر وي او بل طرف ته هم عسکر وي ، او د فکري جګړے هدف هغه عوام وي ، نو عسکري جنګ په نسبت د فکري جنګ ډیر آسان وي ، لکه مثلاً : د عسکري جګړے یو طرف ته جهاز دے نو د هغې توړ (ختمونکې ) مونږ سره شته چه راکټ دے ، دارنګه یو طرف ته ټینک دے نو د هغې توړ مونږ سره مین ( بم ) دے یعنی د هغې توړ شته دے ، او هر چه فکری جنګ دے،

[1] [ سورة الأنبياء : ٦٠ ] .

[2] [ سورة الكهف: ١٣ ] .

مثلاً : يو طرف ته ميډيا ده نو د هغې تورې مونږ سره نشته ، يو طرف ته ماهرين كسان دي ، نو بل طرف ته عام كسان دي ، وغيره ، نو فكري جنګ كې چه هغوي كوم څيز استعمالوي نو هغه مونږ سره نشته ، او ددې وجه هم داده : چه زمونږ عملي كار نشته ، نو فكري جنګ خطرناک دے د عسكري جنګ نه ، نو د فكري جنګ هدف منهج العلم والعمل باندې وي .

**دريمه خبره** : په عسكري جنګ كې حمله په زمكه باندې وي او په آبادئ باندې وي ، او هر چه فكري جنګ دے نو هغه ستا په عقيده باندې وي ، اخلاقو او فرهنګ باندې وي ، مثلاً: يو ملک كافر قبضه كړي لكه افغانستان اول برطانيې قبضه كړو ، بيا روسانو ، بيا انګريزانو خو يو وقت به راشي ان شاءالله چه د دوي نه به دا واپس آزاد شي ، خو ليكن په فكري جنګ كې درنه عقيده واخلي ، اسلامي اخلاق او اسلامي پرهنګ او رسم رواج درنه واخلي ، نو دا څيزونه واپس اغستل بيا ډير ګران دي ، او چه كله درنه دا څيزونه واخلي نو دغه سړے بيا د دوست او د دشمن فرق نه كوي او دغه سړے بيا د زمكې د قبضه كيدو فرق او پرواه نه كوي او خپل دشمن دشمن نه ګڼړی ، نو چه كله درنه دغه څيزونه واخلي نو كه تا سره هر څومره اسلحه وي نو وی دې كنه هغه بيا څوک نه راوچتوی ځكه د ده نه هغه اصلي څيزونه تلي دي دا خو بيا وائي چه اوس خو ما باندې صحيح عقيده مسلط شوه او اوس آزادي ميلاؤ شوه ، نو پدې وجه باندې فكري جنګ د عسكري جنګ نه ګران او خطرناک دے .

**څلورمه خبره**: په عسكري جنګ كې چه كوم څيزونه وران شي نو د هغې جوړول آسان دي ، او هر چه فكري جنګ كې كوم شي وران شي نو د هغې تعمير بيا ډير ګران وي ، مثلاً : په عسكري جنګ كې ستا پول ، روډ ، آبادي وغيره وران شي ، نو دغه روسته جوړول آسان دي ، ځكه چه ترقي ډيره زياته روانه ده ، مخكې دغه پول ، روډ تا په كال كې جوړ كړے وو ، نو اوس به ئې ته هغه په ٦ مياشتو كې جوړ كړے ، او د هغې نه به ئې په خائسته ډيزائن كې جوړ كړے، خو كه په فكري جنګ كې ستا عقيده ، اخلاق ، فرهنګ واغستل شو نو بيا ددې تعمير انتهائی مشكل كار دے ، لكه روس ، برطانيه او امريكه چه په كومو ملكونو باندې پاتې شوي وو ، ازبكستان د روس نه آزاد شو خو اوس هم پكې اسلامی نظام نشته دے اګر

که د آبادئ په لحاظ سره ښهٔ جوړ دے ازربائی جان ، دارنګه زمونږ او ستاسو ملکونه د برطانيې نه آزاد شوي دي او د هغه نه د آبادئ په لحاظ سره ښه تعميرات شوي دي ، خو اسلامی نظام پکې اوس هم نشته دے ځکه چه هغه نظريه ئې ترے اخستې ده فکری تعمير پکې نشته دے ځکه د هغوی اوس هم مونږه سره فکری جنګ روان دے ، نو اوس به مونږ د هغوي سره صرف مادی جنګ نه وی بلکه مادی او فکری دواړه به کوو ، نو د اسلام ټوله ډانچه دا به صرف په کتابونو کې نشي پريخودلي بلکه دا به ميدانی او عملی کولے شی ، ددې وجې نه سيد قطب رحمه الله په " ظلال القرآن " کې فرمائی : «**ومن الجهل أن يتفقه احد وهو قاعد يتعامل مع الاوراق البارزة**» " يعنې دا دجهل خبره ده چه د يو سړي نه دے فقيه هم جوړ شي او هغه دې ناست هم وي او يخې پانړې دې اړوی راړوی نو دا خو د دين اسلام مزاج ندے".

او امام مالک رحمه الله فرمائی : «**لايصلح اخر هذه الامة إلا بما صلحَ به الاوَّل**» " اصلاح نه کيږي اخر ددې امت مګر په هغه څه چه اول ددې امت پرې شوے وه " ، **او هغه وو علم مع العلم ، نو هغوي علم او ورسره فوراً عمل کول وو نو ځکه کامياب شو .**

وبالله التوفيق

❋❋❋❋❋❋

## 2 / مـــوضـــــوع:
## صفاء المنهج أهمُّ من تبرءةِ الأشخاص
## شخصيت پرستي ، او حق پرستي ( اوله حصه )

**نحمده ونصلى على رسوله الكريم اما بعد :**

د اسلام مزاج څه دے چه آيا مونږ دې په يو خاص شخص پسې روان شو او دهغهٔ تابعدارى به کوو ، او کنه مونږه حق پرست شو او حق پسې روان شو دا موضوع ددې په باره کې ده .

په دې موضوع کې يو څو مباحث دي : ١/ د شخصيت پرستئ تعريف ، ٢/ شخصيت پرستي په انسان کې د راتلو مبدء ، ٣/ د شخصيت پرستئ حکم په شريعت کې څه دے ؟ ٤/ د شخصيت پرستئ نقصانات ، او دا د راه حق او انقلاب په لاره کې څومره رکاوټ جوړيږي.

**١/ د شخصيت پرستئ تعريف**:په آسانو الفاظو کې ددې تعريف دا دے : د يو سړي په حق او باطل دواړو کې تابعداري کول ، او دې کې تنظيم پرستي ، جماعت پرستي هم شامله ده.

**٢/ خبره: د شخصيت پرستی په انسان کې د راتلو مبدء** :

اصل کې انسان چه الله تعالیٰ دنيا ته راليږلې دے نو نوم ئې ورکړيدے په خليفه سره، دهٔ ته ئې خليفه وئيلې دے ، لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ إِنِّي جَاعِلٌ فِي ٱلْأَرْضِ خَلِيفَةً ﴾ (1)

" کله چه اووئيلې رب ستا ملائکو ته چه يقيناً زه پيدا کونکې يم په زمکه کې يو خليفه لره " يعنی زه په زمکه کې خليفه پيدا کوم ، نو پدې ځائې کې مقصد د زندګئ دا خلافت دے، علماء کرام فرمائی : « **انی جاعل في الارض خليفة ای خليفة في تنفيذ الاحكام** »

(1) [ سورة البقرة: ٣٠ ] .

يعنى دا به خليفه وي په تنفيذ د احكاماتو کې ، د الله تعالىٰ احكامات به نافذ کوي، نو چه مقصد خلافت شو نو ملائڪو تپوس اوکړو : ﴿ قَالُوٓاْ أَتَجۡعَلُ فِيهَا مَن يُفۡسِدُ فِيهَا وَيَسۡفِكُ ٱلدِّمَآءَ ﴾[1]

" اووئيلو ملائڪو آيا تهٔ ګرځوې په پدې زمكه کې هغه څوک چه فساد کوي پدې زمكه کې او تويه وي به وينى .. " .

**سوال** : چه دې ملائڪو ته علم غيب نه وو نو دا خبره ئې څنګه اوکړه ؟

**جواب** : دا ئې ځکه اوکړه چه مخکې پدې زمكه کې جنات تير شوي وو ، او جناتو په زمكه کې ډير فسادات کړي وو نو دې وجه نه ملائڪو دا خبره اوکړه .

٢/ يا دوي دا خبره ځکه اوکړه چه دوي ته بعضې خصوصيات د انسان بيان شو چه پديڪې نفس دے ، او د نفس خصوصيات دوي معلوم کړل چه دوي به دا کارونه کوي .

٣/ خليفه لفظ نه ورته معلومه شوه چه خليفه به فيصله کوي او فيصله خو هله راځى چه جګړه اوشى نو دوي به جګړې کوي او د يو بل وينې به تويه وي .

نو بيا به ملائڪو وئيل چه : ﴿ وَنَحۡنُ نُسَبِّحُ بِحَمۡدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ ﴾[2] " يا الله مونږ ستا تسبيح او تقديس بيانوو " نو لهذا بلې نوعې ته ضرورت څه پاتې شو ، نو الله تعالىٰ ورته په جواب کې ووئيل : ﴿ قَالَ إِنِّيٓ أَعۡلَمُ مَا لَا تَعۡلَمُونَ ﴾[3] ، " زه ښهٔ پوهيږم په هغه څهٔ چه تاسو پرې نه پوهيږئ " ، او نڪته د تخليق پدې ځائې کې هغه خلافت دے ، يعني په زمكه کې د تنفيذ د احكاماتو دپاره يو خليفه مقرر وم .

نو انسان په حيثيت د خلافت راغلي دے ، او ددې خليفه دپاره دوه واسطې دي :

---

1) [ سورة البقرة: ٣٠ ] .

2) [ سورة البقرة: ٣٠ ] .

3) [ سورة البقرة: ٣٠ ] .

١/ د چا د طرف نه چه راغلې وي د هغه سره واسطه .

٢/ په چا باندې خليفه مقرر شويدے د هغې سره واسطه وي ، نو دده په ذهن کښې دوه مادې پکار دي :

**اوله ماده** : هغه د تأثر ده ، يعنې د منلو او قبلولو ماده ، او پده کښې به تکبر ، طغيان او سرکشي نه وي .

**دويمه ماده** : په بل باندې د منلو ماده ، چه په بل چا باندې خبره اومنې ، اوس پديکښې د هرې يوے مادې به درې درې شاخونه وي ، ځکه د ده په ذهن کښې اوس د منلو ماده پريوته يو د الله تعالیٰ منل دي هغه خو پکار دی او ضروری دي خو د بل چا منل هم پديکښې موجود دی هسې نه چه دهٔ هغه هم داسې اومنی ځنګه چه د الله تعالیٰ منل دی ، او بل دا چه کله کله داسی شی چه د بل چا بيخی نهٔ منی ، او کله اعتدال يعنی درميانه انداز کښې وی ، کله به داسې وي چه پدې ماده کښې ډير زيات والې راشي د بل چا په باره کښې د الله تعالیٰ په باره کښې نه .

**١/ شاخ** : نو کله به داسې وي چه پديکښې ډير افراط ( زياتی ) اوشي ، او ديته شخصيت پرستي وائی.

**٢/ شاخ** : او کله به داسې شي چه د بل چا بيخي نه منی ، ديته عصيان وائی .

**٣/ شاخ** : او کله به داسې وي چه په درميانه انداز کښې وي ، او ديته اطاعت وائی ، دا په حق کښې منی او په باطل کښې ئې نه منی .

او چه په بل چا باندې ئې منی نو پديکښې هم درې شاخونه دي :

**١/ شاخ** : کله به داسې وي چه انسان به جابره وی يعنی خپل حکم به په هر چا باندې منی، ديته جَبرْ او ظلم وائی ، نو دا خو نقصان دے .

**٢/ شاخ** : چه بالکل په بل چا باندې آواز نه کوی ، ديته اهمال وائی يعنی يو سړے مهمل پريخودل ، نو دا هم نقصان دے .

**٣/ شاخ** : چه ددې دواړو مادو په مينځ مينځ کښې وی ديته امر بالمعروف او نهی عن المنکر

وائی او ددې تفصیل به روسته راشي ، ان شاء الله تعالیٰ .

نو دا دری درې مادې په هر یو کې پرتې دي ، او په انسان کې دا دوه مادې چه منلو او په بل چا باندې منل خامخا وي ، اوس پدې شپږو مادو کې چه انسان د هر چا سره هر څه منل، يعنی افراط کول دا شخصيت پرستي ده ، او په بل چا باندې منلو کې دا ماده چه انسان جابره شی نو دا هم نقصان دې څکه پديکې دا نقصان دے چه په آخره کې انسان بيا د أُلوهيت دعوه اوکړي ، لکه فرعون چه په هر چا باندې هر څه منل نو په آخره کې دعوه د الوهيت اوکړه ، چا د فرعون نه تپوس اوکړو چه : «**من فرعنک**» " تا نه دا فرعون چا جوړ کړو ؟ نو هغه په جواب کې اووئيل : «**لا اجد من يمنعُنی من الظلم**» يعنی څوک مې نه موندل چه زه ئې د ظلم نه منع کړې وے " پس ما به چه څه ويل هغه به ما په خلقو منل نو آخر کې مې دغه دعویٰ وکړه .

او ددې په مينځ کې امر بالمعروف او نهي عن المنکر دے او دا ډير بهتر کار دے ، او هر چه اهمال کول دي نو پدې سره ذهني آزادي پيدا کيږي په انسان کې ، نو په کوم پلار کې چه اهمال ماده وي نو د هغه بچي به ډير لوفران وي او ډير آزاد خيال به ئې وي او آخر کې ترينه بيا بل څه جوړ شی ، وغيره ، نو زمونږ موضوع پدې ځائی کې هغه د شخصيت پرستئ ده خو دا ئی د راتلو مبدء شوه .

**۳/ خبره: د شخصيت پرستئ په شريعت کې څه حکم دې** : نو شخصيت پرستی په اسلام کې ډير مذموم صفت دے ، او شخصيت پرستي چه په چا کې راشي ، نو دا د بل انسان نه متأثره شي ، دا بيا تميز نه کوي بس مطلق خبره منل وي ، لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ٱتَّبِعُواْ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ قَالُواْ بَلْ نَتَّبِعُ مَآ أَلْفَيْنَا عَلَيْهِ ءَابَآءَنَآۗ أَوَلَوْ كَانَ ءَابَآؤُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ شَيْـًٔا وَلَا يَهْتَدُونَ ﴿١٧٠﴾ ﴾ [1] " او کله چه اووئيلې شي دې مشرکانو ته چه

[1] [ سورة البقرة: ١٧٠ ] .

تابعداري اوکړئ د هغه څه چه نازل کړي دي الله تعالیٰ ، نو وائی دوي بلکه مونږ تابعداري کوو د هغه څه چه موندلي دی مونږ په هغې باندې پلاران خپل ، ( بعضی خلق دغه آيت د تقليد په باره کې پیش کوی چه تقليد نشته ځکه چه الله تعالیٰ پدې آيت کې فرمائی ، نو مونږ وايو چه ګوره د الله بنده دومره خو اغماضی مه کوه ( سترګې مهٔ پټوه ) روستو ورپسې فرمائی : ﴿ أَوَلَوْ كَانَ ءَابَآؤُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ شَيْـًٔا وَلَا يَهْتَدُونَ ﴾

د دوی پلارانو کې خو نه هدايت وو او نه عقل ، او هر چه مونږه په ائمه پسې روان يو نو مونږه پوهه يو چه هغوی سره علم هم وو او په هدايت باندې هم روان وو نو ددې وجه نه مونږه په هغوی پسې روان يو) .

( الله وائی ) اګر که پلاران د دوي نه پوهيدل په هيڅ شي ، او نه په هدايت وو " نو کفار ټول شخصيت پرست وو ، دوي خالص په شخصيت پرستئ پسې روان وو ، نو پدې آيت کې امتيازي نکته د شخصيت پرستئ هغه دا ده :﴿ أَوَلَوْ كَانَ ءَابَآؤُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ شَيْـًٔا وَلَا يَهْتَدُونَ ﴾ ، نو دا کافر ددې باوجود چه ښه پوهيږي چه د دوی په پلارانو کې نه عقل شته او نه هدايت خو بيا هم ورپسې روان دي نو دا شخصيت پرستي شوه ، نو کفار هميشه شخصيت پرست پاتې شوي دي ددې وجه نه چه نبی کريم ﷺ چه کله هم دويته دعوت ورکړيدے نو په شخصيت پرستئ کې ورته د اول نه نفی کړيده ، لکه الله تعالیٰ فرمائی : چه دا کفار وائی : ﴿ فَقَالُوٓا۟ أَبَشَرًا مِّنَّا وَٰحِدًا نَّتَّبِعُهُۥٓ إِنَّآ إِذًا لَّفِى ضَلَٰلٍ وَسُعُرٍ ﴿٢٤﴾ ﴾ [1] " يعنی زمونږ پشان يو سړے دے او مونږ به د هغه تابعداري کوو ... " نو دې کفارو ته د اطاعت او شخصيت پرستئ په مينځ کې فرق نه وو معلوم ، نو په شخصيت پرستئ کې چه ته د چا تابعداري کوې نو هغه به خامخا ستا نه په شخصيت کې پورته وي ، نو دې کفارو چه سوال کولو : « أَبَشَرًا مِّنَّا

---

[1] [ سورة القمر: ٢٤ ] .

وَٰحِدًا نَّتَّبِعُهُۥ » يعنى زمونږ او دده شخصيت يو دے هيڅ قسم فرق پکښ نشته دے ، نو مونږ بيا دده تابعداري څنګه اوکړو ؟ نو الله تعالىٰ ورته په جواب کښ وائی : ﴿ قُلْ إِنَّمَآ أَنَا۠ بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ ﴾ [1] ، ته ورته اووايه چه يقيناً زه ستاسو پشان بشر يم ، خو فرق دا دے : ﴿ يُوحَىٰٓ إِلَيَّ ﴾ چه ماته وحي کيږي ، او تاسو ته وحي نه کيږي ، زما سره حق دے د دې حق د وجې نه زما تابعداري اوکړئ ، زما د شخصيت دوجې نه زما تابعداري مهٔ کوئ ، بلکه زما امتيازى حيثيت شته دے چه هغه وحى ده او تاسو سره او ستاسو پلارانو سره هغه نشته دے ځکه ما سره عقل او هدايت دواړه دي ، ځکه وحى کښ دواړه موجود دي ، او تاسو سره نۀ عقل شته او نه هدايت خو چونکے دوى تابعدارى نه په عقل پورے وه او نه په هدايت پورے نو دې کافرانو به هميشه په شخصيت د پيغمبر عليه الصلاة السلام باندې اعتراض کولو لکه بل ځائی کښ الله تعالىٰ فرمائی : ﴿ وَقَالُوا۟ مَالِ هَٰذَا ٱلرَّسُولِ يَأْكُلُ ٱلطَّعَامَ وَيَمْشِى فِى ٱلْأَسْوَاقِ ﴾[2]، دې مشرکانو به ويل چه دا څنګه پيغمبر دې چه خوراک هم کوي او په بازارونو کښ هم ګرځي ، او مونږ هم داسې کوو، نو زمونږ او دهٔ په مينځ کښ څه فرق دے ، ځکه ئی تابعداري نه کوو ، نو د دوی مطلب دا دے : چه پيغمبر عليه الصلاة والسلام دې زمونږ نه په انسايت کښ اوچتوالى اوکړي نو بيا به ئی مونږ تابعداري اوکړو ، نو دوي د شخصيت تفوق طلب کولو او الله خو په شخصيت دعوت نه ورکولو ځکه که چرې د شخصيت دعوت وي نو بيا به دغه دين يو شخصى دين وو ، او د پيغمبر عليه الصلاة والسلام په وفات سره به بيا د دغه دين اختتام راتلو ، او الله تعالىٰ خو داسې نه کول بلکه دا دين به تر قيامت پورے باقي وي ، او داسې نور امثال په قرآن کريم کښ ډير زيات دي .

نو دې کفارو شخصيت پرستي کوله ددې وجه نه د حق په لاره کښ دويته حاجب او پرده

---

[1] [ سورة الكهف: ۱۱۰ ] .

[2] [ سورة الفرقان : ۷ ] .

اوګرځیدله ، او د دې وجه نه د صحیح دین نه محروم پاتې شول .

او هر چه مونږ خپل امیر ملا محمد عمر رحمه الله یا دارنګه بل امیر پسې یو نو مونږه د هغه اتباع کوو د شریعت په رنړا کې ، الله دې نکړی که چرته دوی مونږه ته د شریعت په خلاف حکم وکړی نو بیا مونږه د هغهٔ دغه حکم نهٔ منو .

**خلاصه** : چه څومره شخصیت پرستي ده نو هغه په اسلام کې ممنوع ده ، او هغه د انقلاب نبوی په لاره کې رکاوټ دے ، نو نبی کریم ﷺ هم د شخصیت پرستئ خلاف وو .

صحابه کرام رضي الله عنهم هم د شخصیت پرستئ خلاف وو تر هغه پورے به ئی د بل خبره په دین کې نه منله تر څو چې به ورته د رسول الله ﷺ حدیث بیان شوې نه وو .

د تابعینو رحمهم الله په وخت کې هم د شخصیت پرستئ نفي کوله ، لکه امام ابو حنیفه رحمه الله او امام ابو یوسف رحمه الله چه د هغه سره په علم کې برابر وو ځکه هغه هم مجتهد وو نو هغه ته وائی : چه ته به زما تقلید نه کوې ، ځکه چه د هغه علم اوچتې درجې ته رسیدلې وو ، امام ابو حنیفه رحمه الله پخپله فرمائی : که چرې زما خبره د صحیح احادیثو سره مخالفه شوه نو په دیوال ئی اوغورځوئ ، بل ځائی کې فرمائی : «**اذا صح الحديث فهو مذهبي**» دا ځکه وائی چه کوم حضرات مقلدین دي چه په دوئ کې شخصیت پرستی رانشی چه زما تابعداری د شخصیت پرستئ د وجه نه مه کوئ بلکه د حق پرستئ د وجه نه ئې وکړئ .

ددې وجه نه د فقه په کتابونو کې کله کله د امام ابو حنیفه رحمه الله په قول فتوی نه وي ورکړے بلکه د صاحبینو رحمهما الله په قول ئی فتوی ورکړې وي ، کله ئی د امام زفر رحمه الله په قول فتوی ورکړی وی .

او که څوک مونږ ته اوائی : چه ستاسو دا تقلید خو شخصیت پرستی ده کنه لکه روستو اعتراضاتو کې به بیا وایو ، نو دغه سوال بې بنیاده دے ، دیته ته نهٔ ګورے چه مونږه کله په یو قول باندې فتوی ورکوو کله په بل قول باندې دا خو شخصیت پرستی نشوه ، او هر چه د حنفی مذهب تقلید دے نو دا خو ددې وجه نه مونږه وایو هسې نه چه په خواهشاتو کې رانه شو چه کله د یو مذهب نه آسانه مسئله راواخله او کله د بل مذهب نه آسانه مسئله راواخله ځکه

که چرته دغه دين انساني ذهن ته مفوض او پاتې شی نو بيا خو به ډيره ګرانه شی .

دغه شان د محدثينو رحمهم الله په دور کې هم د شخصيت پرستۍ نه نفي کړے ده ، لکه امام بخاري رحمه الله د امام مسلم رحمه الله استاذ دے ، خو دغه امام مسلم رحمه الله د امام بخاري رحمه الله تابعداري په حق کې کوي ، او چه کله د امام مسلم د شرائطو خلاف خبره راشي نو هغه ئی بيا هم نه منی ، ددې وجه نه چه چرته په دين کې نقصان رانشی ورنه امام بخاري رحمه الله څه باطلې خبرے ندي کړي خو هغه ته داسی ښکاري څکه وائی ، لکه حديث د معنعن شو يعنی هغه حديث چه هغه کې په عن سره روايت شوے وی نو امام بخاري رحمه الله وائی : چه دوی په يوه زمانه کې پاتې کيدلو سره کار نه کيږي بلکه دده ملاقات د هغه سره شرط دے ، او امام مسلم رحمه الله وائی : چه که چرته دا معلومه وے چه ملاقات ئې ندے کړے يعنی يو په کوفه کې دے او بل په بصره کې نو بيا خو دده په نزد هم ندے مقبول او که چرته يوه زمانه کې وی او د ملاقات پته ئې نۀ لګی نو بيا هم د ده روايت په « عن » سره مقبول دے ، دلته د امام مسلم رحمه الله په ذهن کې دا خبره راغلې ده چه که د امام بخاري رحمه الله پشان شرط شی چه ملاقات به شوی وی نو دا خو ډير سخت شرط دے پدې سره خو به ډير احاديث پاتې شی او ضائع به شی نو ددې ضائع کيدو د وجه نه دلته بيا امام مسلم رحمه الله علمی جزبه کې راغلے دے ، او امام بخاري رحمه الله په باره کې ئې څه الفاظ استعمال کړی دي چه هغه مونږه نشو وئيلے څکه هغوی غټ خلق وو يو بل سره به علم او عمل کې برابر وو ، خو زمونږ مقصد د امام بخاري رحمه الله تحقير او سپکاوې کول نه دي ، او نه زمونږ د بې ادبۍ سره کار شته ، زمونږ صرف د دې خبرے سره کار دے چه ګوره د خپل استاذ خبره ئې ده خو دۀ وانخستله چه هسې نۀ چه په دين کې څه نقصان راشی نو د هغه شخصيت ته ئې ونۀ کتل، نو شخصيت پرستی په دوئ کې نوه ، درانګه د عبدالله بن المبارک رحمه الله واقعه شوه .

نو حاصل دا شو : چه د چا تابعداري کوے نو صرف د حق د وجه نه ئې کوه د هغه د شخصيت د وجه نه ئې مۀ کوه ، او داسې نور ډير مثالونه دي چه د طوالت (اوږدوالی) د وجه نه هغه مونږ نشو ذکر کولے .

## ٤/ خبره: د شخصيت پرستۍ نقصانات:

د شخصيت پرستۍ ډير متعدد نقصانات دي خو بعض د هغې نه مونږ رانقل کوو دپاره د فائدې :

**١/ نقصان** دا دے : چه د سړي نه بهتره نظريه سلب کوي او لړې کوي ، لکه حديث کې راځي : «**لا طَاعَةَ لِمَخْلُوقٍ فِي مَعْصِيَةِ الْخَالِقِ**» . [1] نو دا د شخصيت پرستۍ په رد باندې غټ دليل دے ، او کله چه سړے شخصيت پرست شي نو بيا معصيت د خالق ته نه ګوري بس طاعت د مخلوق کوي ، که هغه ورته بيا ښۀ وائی او که بد خو بس دائی منی .

**٢/ نقصان** : **انحصار الدين في الفرد الواحد** : يعنی انحصار د دين راولي په فرد واحد کې ، نو چه کله ته د چا شخصيت پرست شوې نو ته به دين په هغه کې منحصر ګڼړی نو که هغه هر څه وائی نو تۀ به وائی چه دا دين دے ، دارنګه هغه چه کوم طرف ته ځی نو بس ته وائی چه هلته دين دے او هغه لاره حقه ده ځکه دۀ دين منحصر کړے دے په يو فرد کې دغه انحصار په سياسی پارټی کې شته ، دارنګه کله کله په طلباؤ او جهادی ګروپونو کې هم راځی، لکه په افغانستان کې د روس خلاف جهاد وو ښه بهترين جهاد شوے وو او په هغه وقت کې د جهادی ګرپونو تقريبا 7 مشران وو او هر چا د خپل مشر په قيادت کې جهاد کولو خو روستو بيا په دې مشرانو کې بعضې داسی شول چه ددې خپل جهادی تحريک خلاف شول لکه استاذ سياف ، ګل بدين حکمتيار ، ربانی ، مجددی ، وغيره يعنی روستو بد عمل کې داخل شو نو کوم خلق چه دوی پسې د دوی د شخصيت د وجه نه روان وو نو هغوی هم پدې بد کار کې ورسره داخل شول ځکه هغوی دين پدې خپل مشر کې منحصر کړے وو نو هغوی پسې روان شو ، او چا چه د خپل مشر تابعداری د هغه د حقانيت د وجه نه کوله لکه د امير المؤمنين ملا محمد عمر رحمه الله تابعداري ئې کوله د هغه د حقانيت د وجه نه نو هغه نن هم الحمد لله په هغه خپل جهادی تحريک کې دي او دا دے تر اوسه پورے جهاد روان دے او روان به وی

---

[1] [ معجم الكبير للطبراني ، رقم : ١٤٧٩٥ ] .

ان شاء الله .

**۳/ نقصان** : شرک هم په شخصيت پرستئ سره راځي ، که دا شرک جلي وي او که شرک خفي وي ، شرک جلي پدې اعتبار سره راځي چه کله سړې شخصيت پرست شی نو دا بيا د هغه د ذات تابعدار شي لکه عيسايان چه دوي شخصيت پرست شو نو ځکه دوي په عيسیٰ عليه السلام باندې چه کوم کتاب نازل شوې وو د هغې تابعداري نه کوي بلکه د هغه په ذاتی تفوق پسې روان دي ، نو کله وائی دا إله دے ، کله وائی : ابن الله دے ، کله وائی ثالث ثلٰثه دے ، نو دا درې واړه خبرې دوي ځکه کوي چه دوي کې شخصيت پرستی راغله حالانکه عيسیٰ عليه السلام چه دوی ته کومه نظريه راوړے وه هغه ئې نه قبلوله ، دغه شان پدې موجوده دور کې لګ نظر واچوه : چه دا کوم خلق قبر پرست دي ، او قبرونو ته سجدې لګوي نو دا خلق ددې قبر والا په ذات پسې روان دي که چرته دوي د هغه په نظريې پسې روان شو نو څه پديڪې شهيدان دي ، دوي به جهاد ته ځي ، څه پدې قبرونو کې بزرګان دي ، نو دوي کې به د الله نه يره راشي ، خو دا خلق شخصيت پرست دي د هغه په ذات پسې روان دي نو ځکه ورته په قبرونو سجدې لګوي ، او حالانکه دغه خلق پخپله ددې نظريې خلاف وو .

دا رنګه شرک خفي هم ددې وجه نه په انسان کې راځي ، شرک خفي رياء ته وائی نو چه تهٔ د کوم سړي شخصيت پرست شوې نو بيا به ته د هغه تملق کوې يعنی چمچه ګيري به کوے، او ځان به ورته ډير ښه او بزرګ بزرګ کوے او دغه شان چه د کومو بتانو عبادت شويدے نو دا د شخصيت پرستئ د وجه نه لکه قوم د نوح عليه السلام اوګوره ، الله تعالیٰ د نوح عليه السلام حکايت او بد دعاء نقل کوي : ﴿ وَقَالُواْ لَا تَذَرُنَّ ءَالِهَتَكُمۡ وَلَا تَذَرُنَّ وَدّٗا وَلَا سُوَاعٗا وَلَا يَغُوثَ وَيَعُوقَ وَنَسۡرٗا ﴾ [1] نو دا پنځه انسانان په اصل کې اولياء وو نيکان صالحين خلق وو، خو دوي د هغې د نظريې تابعداري ونهٔ کړه بلکه د شخصيت تابعداري ئې اوکړه ، شيطان

---

[1] [ سورة نوح : ۲۳ ] .

وسوسه ور واچوله نو اول ئې د دوی تصویران جوړ کړل او بیا ورته سجدے شروع کړے نو ځکه مشرکان شو.

ددې وجې نه تصویران د ځان سره ساتل دا حرام دي، علامه شاه اسماعیل شهید رحمه الله فرمائي: چه د عامو خلقو تصویران ساتل دا ګناه ده، او د بزرګانو تصویران ساتل دا شرک دے، حالانکه په حقیقت کې خو شرک ندے خو دومره ګناه ده چه شرک ته دې نزدے کوی ځکه که دوي نه دا تصویران په زمکه پریوځي نو ډیر زیات په قدر سره به ئې راوچتوي او حال دا چه دا تصویران حرام دي.

نو ګورئ مجاهدین رونړو ډیر احتیاط کوئ چه د ضرورت نه علاوه تصویران ونهٔ اوباسئ

٤/ **نقصان**: کله کله د شخصیت پرستئ نه فرق د انعدام د مراتبو اوشي، ځکه اسلام هر څیز ته خپله مرتبه ورکړیده، الله خپله مرتبه ده، د نبی خپله مرتبه ده، د صحابی خپله مرتبه ده، دا ټول اولیاء چه راجمع شی نو د یو صحابی مرتبې ته نشی رسیدلے، نو کله چه سړې شخصیت پرست شي نو بیا هغه ته د ټولو نه اوچته مرتبه ورکوي، لکه د بعضې خلقو عقیده ده: مقام النبوة فی برزخ فوق الرسول و دون الولي، دوي وائي: مقام د نبوت په مینځ مینځ کې دے د رسول نه پورته دے او د ولي نه لاندې دے، نو د نبی او رسول مرتبه ئې لاندې کړه د ولي نه ځکه چه هغوي په شخصیت پرستی کې داخل شوي دي، ددې وجه نه فارسبان وائي:

«اګر فرق مراتب نه کردیده زندیق شوے» که چرته فرق د مراتبو دې اونهٔ کړو نو زندیق به درنه جوړ شي، نو دا د شخصیت پرستئ نقصان دے، دارنګه شیعه ګان، چه دوي علی بن ابی طالب رضي الله عنه ته کومه مرتبه ورکړیده نو د هغه د شخصیت د تابعدارئ د وجه نه، او کوم ضعیف ضعیف دلائل ورلره وائي، کله داسې وائي: چه علی رضي الله عنه په ټولو کې بهتر ځکه دے چه نبی ﷺ فرمائي: «**فاطمة قلبي**» یعنی فاطمه زما زړه دے، او «**الرجال قوامون على النساء**» او علی رضي الله عنه د فاطمې رضي الله عنها خاوند دې نو داسې شوه چه علی رضي الله عنه د نبی ﷺ په زړه حاکم دے، دارنګه د حسین رضي الله عنه په باره کې. والعیاذ بالله، دوی خو ټول

دين د ځان نه جوړ کړيدے او ضعيف ضعيف روايات ئې جوړ کړيدي د وجه د شخصيت پرستئ نه .

**٥/ نقصان** د شخصيت پرستئ دا دے : چه دا په عبادت د عبادو کې سرے اخته کوي ، يعنی د بندګانو عبادت به کوې ، او اسلام وائی چه نۀ ، لکه صحابه کرامو به خلقو ته ويل «**لنخرج العباد من عبادة العباد الی عبادة رب العباد**» .

**٦/ نقصان** : د حق تميز په افرادو باندې شي ، بلکه د اسلام نظريه داده : «**نعرف الرجال بالحق ولا نعرف الحق بالرجال**» يعنی مونږ به سړی په حق باندې پيژنو حق به په سړو باندې نه پيژنو ، داسې به نه وائی : چه دا خبره څکه حقه ده چه فلانی شيخ کړيده ، نۀ بلکه داسې به وائی : چه دا فلانی شيخ څکه په حقه دے چه ده دا حقه خبره کړيده ، نو اسلام دا وائی چه د حق تميز په افرادو باندې مه کوه ، بلکه د افرادو تميز به په حق باندې کوې ، د علی ﷺ نه چا تپوس اوکړو چه اهل حق به زه څنګه پيژنم ؟ نو هغه ورته اووئيل : «**اعرف الحق تعرف اهله**» يعنی حق اوپيژنه نو اهل حق به پخپله اوپيژنې .

**٧/ نقصان د شخصيت پرستئ** : غلط او باطل تأويلونه کول دي ، نو کله چه ته د کوم سړی شخصيت پرست شوې نو هغه به يوه غلطه خبره اوکړي ته به د هغه باطل تأويل کوې .

ورنه تاسو سوچ وکړئ چه دغه سياسی خلق چه کوم دي کچرته دوی غلطه خبره هم وکړی نو د دوی چه کوم متبعين دي هغوی ورته غلط نه وائی بلکه هغوی پکې تأويلات وکړی او بيا وائی چه پديکې حکمتونه دي او مونږه د دوی په خبرو نۀ پوهيږو ، ما يوه ورځ د خپل استاذ محترم سره ددې سياسی مولیانو په باره کې بحث وکړو نو استاذ محترم راته هم دغه خبره اوکړه چه پدې باندې مونږه نۀ پوهيږو ، ما ورته اووئيل استاذ محترم ! په درسی کتابونو کې ګران کتاب کوم يو دے ؟ نو استاذ محترم راته وفرمايل : چه قاضی مبارک ، نو ما ورته په جواب کې اووئيل : چه استاذ محترم تاسو ته ښۀ معلومه ده چه قاضی مبارک زه خپلو شاګردانو ته درس کوم ورته ئې وايم او الحمد لله زه پرې ښۀ پوهيږم ، او ما خو دا کتاب

ستاسو نه وئيلي دے تاسو پرې زما نه ښهٔ پوهيږئ نو دې قاضی مولا طلباؤ او علماؤ ته دا كتاب ليكلے دے او ګران هم دے او مونږ پدې ګران كتاب باندې ښهٔ پوهيږو او فلانې سياسی مولا عوامو ته بيان كوی هغوی پرې پوهيږی او مونږ پرې نهٔ پوهيږو دا لا څنګه خبره ده آيا دوی د قاضی مبارک نه ګرانے خبرے كوی او كه نه ؟ نو په اسلام كې شخصيت پرستی نشته كه چرته پكې شخصيت پرستی وے نو بيا خو به دا دين د شخص تابع وے .

فتدبر أيها القارئ ! و قِس على هذا .

**خلاصه** : د شخصيت پرستئ ډير نقصانات دي دا يو څو ترينه مونږ په مختصر انداز سره ذكر كړي دپاره ددې چه مونږ او تاسو ځان د شخصيت پرستئ نه وساتو ، الله دې مونږ او تاسو ددې مرض نه محفوظ وساتي .

وبالله التوفيق .

❊❊❊❊❊❊❊

## د شخصيت پرستۍ موضوع ( دويمه حصه )

د شخصيت پرستۍ بحث شروع وو ، نو شخصيت پرستي په دين کې څه حيثيت نه لري نو د يو شخص پسې داسې تابعداري کول چه د حق او باطل نه نظر ښکته کړې او په هغه پسې روان وي نو دا قبيح صفت دے ځان ترينه ساتل پکار دي ، لکه الله تعالیٰ فرمائی :

﴿ أَفَمَن يَمْشِي مُكِبًّا عَلَىٰ وَجْهِهِۦٓ أَهْدَىٰٓ أَمَّن يَمْشِي سَوِيًّا عَلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴾ [1] آيا هغه سړې چه سر ئې ښکته کړے وي او روان وي ، نو دا په هدايت دې او که هغه سړې چه برابر روان وي په سيده لاره ، نو دا خو معلومه خبره ده چه په صراط مستقيم روان وي نو صحيح ده ، نو د شخصيت پرستۍ وجود په اسلام کې نشته ، او باقي پاتې شوه تعظيم او ادب نو دا په خپل ځائی باندے دے .

تر دې پورے ادب شته دے چه تهٔ د يو مشر ، يا د استاذ ، يا د يو بزرګ لاس خکل کړے لکه امام مسلم او بخاري ته وائی ، چه دا ئې استاذ هم دے چه ما ته اجازه راکړه چه «**أُقبل يديک ورجليک**» نو هغه ورته د لاس اجازه ورکړه او د خپو اجازه ئې ورته ورنهٔ کړه ، زمونږ ددې موضوع په وضاحت کولو کې دا مطلب ندے چه تهٔ د چا ادب مهٔ کوه ادب کوه خو ادب په خپل ځائی دے ، او د حق اتباع په خپل ځائی باندې ، او که چرته يو کس غلطه خبره وکړی نو دلته تا ته دوه ادبونه رامخې ته شو يو شخصی ادب دے او بل د دين ادب دے نو ته به خامخا د دين ادب پوره کوے .

بل د شخصيت پرستۍ سره ړوند تقليد شروع شي ، يو خو تقليد دے علی سبيل البصيرت لکه مونږه او تاسو چه د أئمه کرامو تقليد کوو ، او يو اندها ( ړوند ) تقليد ، نو دا ړوند تقليد دا بالکل د شخصيت پرستۍ بنياد دے ، او بل داسې تقليد شروع شي چه د هيڅ چا نه هم دليل نه غواړي ، ځکه **تقليد** ديته وائی : «**تسليم قول الغير بلا دليل**» د يو سړي خبره منل بغير د

---

[1] [ سورة الملك : ٢٢ ] .

دليل نه ، خو ددې دا مقصد ندے چه نه به د هغه سره دليل وي او نۀ تا سره ، بلکه صاحب د مسلم الثبوت وائی : «**ومستنده قول مجتهده لاظنه ولاظنه**» هغه دلته د مجتهد او مقلد تر منځه علاقه بيانوي ، چه د مقلد دپاره به دليل څه شئ وی «**قول مجتهده**» قول د مجتهد نه مراد تحقيق د مجتهد دے «**لا ظنه و لا ظنه**» نه د مجتهد گمان معتبر دے چه بس چه د هغه په گمان کې يوه خبره راشی نو په هغه به عمل وی نۀ تر څو چه دې مجتهد ته يقين نوی راغلے پدې خپله مسئله کې د دلائلو په رنړا کې ، او نه ظن او گمان د مقلد معتبر دے چه دا زما گمان دے او يا وائی چه دا به زما د مجتهد گمان او مسلک وی پدې به فيصله کوو نه پدې به فيصله نه کوی ، بلکه دۀ ته به تحقيق سره دا معلومه وي چه دغه قول زما د مجتهد دے او مجتهد ته به په تحقيق سره دليل معلوم وي نو دۀ دپاره دليل ضروری دے ، او لاندې مقلد دپاره دليل ضروری ندے لکه اوس مونږه د امام ابو حنيفه تقليد کوو خو دليل ترې نه غواړو ځکه مونږه ته پته ده چه دليل ورسره شته دے ، لکه علماؤ ته ددې دليل پته وي او عامی ته ددې ضرورت هم نشته دے چه هغه ته دې دليل بيان شی خو دومره معلومات به ورته وی چه دا د قرآن او حديث نه صريح خلاف نده ، يو خو داسی وی چه هغه ښکاره د قرآن او حديث نه خلاف وی نو هغه خو به تۀ نۀ منې ځکه که ته دا اومنې نو دا منل خو بيا اندها تقليد شو .

او هر چه ددې أئمه کرامو نه علاوه نور کوم علماء دي نو مونږه به بيا د هغوی نه دليل غواړو بې دليله به د دوی خبره نۀ منو ، بې دليله مطلب دا چه د قرآن او حديث نه خلاف وی لکه نن صبا دا جمهوري نظام دے نو دا يو باطل او کفری نظام دے نو اوس کله کله به يو کس يا څه اشخاص راځي ته کړي چه يره فلانې مفتی صاحب پدې نه پوهيدو چه دا کفری نظام دے ، نو ته به ورته وائی چه مونږه ته پدې شرعی دليل پيش کړه مونږه د فلانی مفتی مقلدين نه يو مونږه د امام ابو حنيفه رحمه الله مقلدين يو ، نو دوی سره به بيا شرعی دليل نوی هسې تا ويلې ما ويلې تأويلات به درته پيش کوی ، اګر که مونږه د دوی ددې تأويلاتو د وجه نه ددې تکفير نه کوو خو اتباع ئې هم نۀ کوو ځکه دليل نشته دے .

**بله عقيده زمونږ د عقائدو نه** : چه «**لامعصوم بعد الانبياء**» د انبياء عليهم السلام نه بعد بل معصوم نشته ، نو دا عقيده زمونږه نظرى عقيده هم ده او عملي نظريه هم ده ، نو اوس د شخصيت پرستئ د وجه نه زمونږ نظرى عقيده خو شته خو عملي نظريه زمونږ سلب شويده، مثلاً : يو لوئ مفتى دے هغه وائى : چه جهاد نشته او پديكښې يو عام كس راشي او وائى : چه جهاد فرض عين دے ، نو خلق ورته وائى چه فلانې مفتى صاحب وائى چه جهاد نشته ، نو دا عام انسان كه ورته ووائى چه فلانې مفتى صاحب په خطاء دے ، نو ټول خلق به پرې راجمع شي چه دا انسان فلاني مفتى ته خطاء وائى ، حالانكه د مجتهد په باره كښې راځي چه : « **المجتهد قد يخطئ وقد يصيب** » مجتهد كله خطاء كيږي او كله حق ته رسيږي ، نو دا نه خطاء كيدو عقيده خو به صرف د انبياء عليهم السلام په باره كښې ساتې ، او د هغوي نه ماسوا هر سړے خطاء كيدے شي ، نو انبياء كرام عليهم السلام معصوم دي ، او صحابه كرام محفوظ دي ، محفوظ دا معنى : چه كله به هم ترينه خطاء اوشوه نو هغوي فوراً الله ته راګرځيدل ، نو ددې نه بعد مونږ د چا معصوميت نه منو ، خو كه چرته يو سړے شخصيت پرست شي نو هغه بيا دا خبره منى چه فلانې مفتى صاحب ، او فلانې عالم ، فلانې امام صاحب نشى خطاء كيدلې اګر كه هغه د قرآن او حديث نه خلاف روان وى ، نو مونږ به د شخصيت پرستئ نه مكمل ځان ساتو ، مونږ به اطاعت كوو په حق كښې او چه كله باطل ووينو نو د هغې نه به ځان هم بچ كوو او نهي عن المنكر به هم كوو .

**سوال** : نبي كريم ﷺ د خپل ځان تابعدارئ ته دعوت وركړے ، لكه الله تعالىٰ فرمائى:

﴿ قُلۡ إِن كُنتُمۡ تُحِبُّونَ ٱللَّهَ فَٱتَّبِعُونِي ﴾ (1)

**جواب** : پيغمبر عليه الصلاة والسلام كه خپل شخصيت طرف ته دعوت وركړے هم وى، نو د هغه شخصيت بعينه نظريه ګرځيدلے ده ، لكه د پيغمبر عليه الصلاة والسلام د اخلاقو

---

(1) [ سورة آل عمران: ٣١ ] .

په باره کې د عائشې رضي الله عنها نه تپوس اوشو : چه «**كيف كان خلق رسول الله صلى الله عليه وسلم** ؟ نو عائشې رضي الله عنها ورته په جواب کې اوفرمائيل : «**كان خلقه القرآن**» يعنی د نبی کريم ﷺ اخلاق بعينه قرآن وو ، نو داسې سوال کول بالکل غلط دے .

**سوال** : چه د أئموؤ تقليد کول دا هم شخصيت پرستي ده ، او بيا خصوصي تقليد کول نو دا خو بعينه شخصيت پرستي ده ؟

**جواب** : دا شخصيت پرستي نده ، دغه أئمه ؤ کرامو رحمهم الله مونږ ته قرآن او حديث په آيئنه کې معلوم خلق دي او د علماؤ پدې باندې اتفاق دے چه دغه أئمه د قران او د حديث نه منحرف خلق نوو بلکه هغوی د قرآن او د حديث موافق خلق وو ، او مونږ د دوي د ذات تقليد نه کوو ، بلکه د دوي په حق پسې روانيدو د وجې نه مونږ تقليد کوو . آيا ته نۀ ګورے چه کله فتویٰ د يو امام په قول وی او کله د بل چا په قول ، لکه اسلام د امير اطاعت ضروری کړے دے نو دا د هغۀ د ذات د وجې نه نده بلکه هغه به په سنت او حق پسې روان وی او ته به د هغه دی حقانيت پسې روان وے .

دا د شخصيت پرستئ بحث وو .

* * * * * *

## اوس د شخصت پرستۍ مقابله به په څه سره کوو ؟

نو د شخصيت پرستۍ مقابله به په صفاء المنهج سره کوو ، يعنی ته به خپل منهج او لاره صفاء ساتې نو ته به د خپل منهج دپاره کم از کم دومره علم حاصلوې چه ته په کومه لاره روان ئی چه تاته د هغې لارې پته اولګيږي ، دارنګه تاته د خپل منهج پته اولګي چه دا منهج زما صفاء دے او که نۀ ، که مونږ خپل منهج ته په قرآن او سنت سره اوګورو نو دا منهج بالکل صفاء دے ، نبی کريم ﷺ د آخري زماني په باره کې فرمائی :« **بَدَأَ الْإِسْلَامُ غَرِيبًا وَسَيَعُودُ كَمَا بَدَأَ غَرِيبًا فَطُوبَى لِلْغُرَبَاءِ** ».[1]

نو اسلام په اول کې ناشنا وو او په آخر کې به هم ناشنا شی ، د غريب معنی په عربۍ کې ناشنا سره راځی بيا وائی ناشنا خلقو لره خوشحالي ده ، اوس دا اوګوره چه اسلام په اول کې څنګه ناشنا وو :

نو اسلام په اول کې داسې ناشنا وو چه نبی کريم ﷺ اسلام ته به دعوت ورکولو : «**قولوا لاإله الا الله تفلحوا** » " د الله نه غير بل معبود نشته دے " نو د هغوي ذهن دا خبره نه تسليموله ، هغوي ته دا خبره ناشنا ښکاره شوه ، نو دا دين هغوي ته ناشنا شو ، نو جواب کې وائی : ﴿ مَّا سَمِعْنَا بِهَٰذَا فِيٓ ءَابَآئِنَا ٱلْأَوَّلِينَ ﴾[2]

" يعنی مونږ د پلارانو او نيکونو نه دا خبرې نۀ وې اوريدلې " ، چه دا ټول بتان دې ختم شی او صرف د يو الله تعالیٰ عبادت به کوو دا خو ناشنا خبره ده ، دارنګه نبی کريم ﷺ به ورته ويل : چه رحمان ذات را اوبلئ ، نو دوي به جواب کې وئيل : «**لا نعرف إلا رحمان اليمامة** » يعنی مونږ صرف د يمامې رحمان پيژنو چه دا د مسيلمة الكذاب نوم وو نو د لا إله إلا الله دعوت هغوي ته ناشنا ښکاره شو .

---

[1] [ رواه مسلم ، رقم : ٢٠٨ ، وغيرهم ] .

[2] [ سورة المؤمنون: ٢٤ ] .

او اسلام به په آخر «**وسيعود كما بدأ غريبا**» نو دا به څنګه ناشنا شي ؟

نو په آخره کې ئې ناشنا والې دا دے : لکه نن صبا اکثر خلق دا وائی کنه چه يره اسلام کې به مړی کيږي او وينی به تويه کيږي ، يره داسی دين خو زه نۀ منم حالانکه ته به ورته وائی چه ګوره دا خو قصاصاً وژل کيږي په ارتدادًا يا زنديقا او يا دا خو حربی کافر دے د داسې خلقو په وژولو کې خو امن دے نو دا به وائی چه دا لا کوم دين دے چه وينې به پکې تويه کيږي ، دغه شان : که غلا دې اوکړه نو لاس به ترې کټ کيږي ، نو دا وائی : چه دا خو زه نه منم دا لا کوم دين دې چه د انسان نه پکې لاس کټ کيږي ، نو په آخر کې په اعتبار د احکامو سره ناشنا شو ، نو په اوله کې هم ناشنا وو او په آخره کې به هم ناشنا شی .

«**فطوبیٰ للغربآء**» نو مبارکی دې وی ناشنا خلقو ته ځکه چه دوی پدې دور کې حاملين د اسلام دی ، لکه نن صبا کې چه څوک هم د اسلامی نظام آواز اوچتوی نو هغه ناشنا دي ، ځکه چه په معاشره کې يو سړے مشهوريږی نو هغه د دوه وجو نه يو ډيروالې د مال او بل لوئی عالم نو ته اوس اوګوره چه دغه حاملين د اسلام او مجاهدين نۀ خو دوی مالداره دي او نه داسې غټ غټ علماء دي ، علماء پکې شته داسی نه چه علماء نشته خو مشهور ندی يوره ورځ ماته خپل استاذ خبره کوله چه دا کوم خلق چه راوچت شوی دي او نفاذ شريعت راولی نو دا خو ټيک ده خو ديکې خو داسې غټ غټ او مشهور علماء نشته ، نو ما ورته اووئيل : چه صحيح خبره ده خو نبی کريم ﷺ ندی وئيلی چه « فطوبیٰ للغرباء » دا خو ناشنا خلقو ته زيرے ورکړے دے ځکه که چرے دغه ناشنا خلق را اونه وځی نو هغه اشنا خو اول نه مشهور خلق دي هغوی خو کار نه کوي او نه قربانی ته تيار دي ، نو دا آخره زمانه ده کنه هم دغه ئې علامه ده ، نو خبره دا شوه چه خلق ئې هم ډير نه پيژنی خو څومره لوئی تحريک ئې روان کړيدے او څومره لوئی لوئی قربانياني ورکوی د دين دپاره ، دغه شان امام مهدی به هم په اوله کې ناشنا وی .

عبدالله بن عمر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه تپوس کوي : «**من الغربآء ؟**» دا غرباء څوک

دي ؟ ، نو رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل : « **هُمْ قَوْمٌ صَالِحُونَ قَلِيلٌ فِي نَاسِ سَوْءٍ كَثِيرٍ، مَنْ يَعْصِيهِمْ أَكْثَرُ مِمَّنْ يُطِيعُهُمْ** » [1]

" دا به يو قوم وی او صالحه به وي خو لږ به وي ، په ډيرو بدو خلقو کې او څوک چه نافرمانی کوي هغه به ډير وي د هغه چا نه چه هغه ئی تابعداري کوي ".

اوس ته يوه تله کيږده او بيا پرې ځان وتله چه هم قوم صالحون قليل صالحين به لږ وی او نور خلق به ډير وی او ددې صالحينو تابعدار به هم کم وی او نافرمان به ډير وی ، بيا ته د مجاهدينو طبقه اوګوره دغه مجاهدين کم دي که زيات ؟ نو دا خو معلومه خبره ده چه کم دي ، او بيا د دوی تابعدار اوګوره چه هغه څومره دي نو تابعدار ئې هم کم دي ، بيا ددې مجاهدينو او د نورو خلقو اعمال موازنه کړه من يعصيهم ، نور خلق په کومو اعمالو کې دی نو ډير خلق د لادېميکالے او جمهوری نظام پسې روان دي او قسماقسم فحاشو پسې روان دي ، او صالحون او مجاهدين اوګوره چه څومره صفا روان دي ځکه اکثره زندګی د دوی په غرونو کې تيريږی او هلته دغه شان ګناهونه نوی او هر وقت دوی د اسلامی نظام په نفاذ کې کوششونه کوي ، نو بس تاته به اوس ځان معلوم وی چه ته په کومو خلقو کې يې .

**بله پيشن ګوئی** : رسول الله ﷺ فرمائی : « **لَا تَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِي يُقَاتِلُونَ عَلَى الْحَقِّ ظَاهِرِينَ عَلَى مَنْ نَاوَأَهُمْ حَتَّى يُقَاتِلَ آخِرُهُمُ الْمَسِيحَ الدَّجَّالَ** » [2] " هميشه به وي يوه ډله زما د امت نه چه قتال به کوي په حق باندې او غلبه به کوي په هر هغه چا باندې چه څوک هم د دوي په مقابله کې راځي ... " ، **ظاهرين على من ناواهم** : نو معنی هر هغه څوک ، نو دا عام شو چه د ده مخالفين به په هر شکل کې وي ، کله به په شکل د کافر کې وي ، کله به په شکل د برائی نام مؤمن کې وي ، کله به په شکل د عالم سوء کې وي .

**فائده** : په حديث د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما کې يو څو نکتې دي ، ١/ دلته

---

[1] [ المعجم الكبير للطبراني ، رقم : ١٤٥٧ ] .

[2] [ سنن أبي داؤد ، رقم : ٢١٥٥ ] .

صفت د غريب معلوم شو ، چه په هغې کې يو قلت دے ، ۲/ چه صالحين به وي ، ۳/ د تابعدارانو قلت، ٤/ د نافرمانو اکثريت .

دغه شان په دويم حديث کې هم يو څو نکتې دي : ۱/ صفت د قتال ترې معلوم شو ، ۲/هميشوالې ترې معلوم شو ، ۳/ دشمن به په هر شکل کې راځي ، ٤/ چه طائفه به وي يعنی لګ خلق به وي ډير به نه وي ، ٥/ د پيغمبر عليه الصلاة والسلام د دور نه به را روان وي .

**۲/ تکاليف برداشت کول** : حديث کې راځی چه خباب ابن الارت ﷺ د رسول الله ﷺ خواته تشريف راوړو ، او رسول الله ﷺ ته ئې د مشکلاتو تذکره اوکړه ، نو نبی کريم ﷺ لږ شان توبيخ (رټنه ) ورکړو نو رسول الله ﷺ ورته اووفرمائيل : چه ستاسو نه په مخکنو خلقو باندې څومره زيات تکاليف تير شوي دي ، «**فيجاء احد فيحفر له**» يو کس به راوستلې شو او د هغه دپاره به يوه کنده اوکنستلې شوه نو په هغه کنده کې به خخ کړے شو، «**فيأتى بمنشار فيوضع على رأسه**» بيا به ئې آره راوړله او د هغه په سر باندې به ئې کيخودله او په هغې باندې به ئې دوه ټوکړې کړو ، او داسې ګومنزې به ئې ورته راوړې چه د اوسپنې به وې او په هغې باندې به ئې ترينه غوښې لرې کولې .[1]

ددې حديث نه دا معلومه شوه چه په لاره د دعوت کې تکاليف راتلل ، په لاره د جهاد کې تکاليف راتلل دا علامه د حق ده ، بعضې خلق دا خبره کوي چه دا پدې خلقو عذاب دے، وغيره وغيره خبرې کوي نو دا قسمه ټولې خبرې غلطې دي ، چه سلفو صالحينو باندې کوم تکاليف راغلي وو او دغه شان به په تا باندې راځی نو ته پوهه شه چه ته په حق باندې ئې ، او که هغه شان تکاليف په تا باندې نه راتلل نو ته پوهه شه چه بيا ته په حقه باندې نه ئې .

**۱/ بل د حق کيدلو** دليل به تا سره دا وي : چه اولنی مخالفت به تاسره د کور نه جوړيږي، لکه څرنګه چه صحابه کرامو رضي الله عنهم ته د کورونو نه جوړ شوي وو .

---

[1] [ رواه البخاري ، رقم : ۳۳٤۳ ، وغيرهم ] .

**۲/ بله علامه** د حقانيت به دا وي : چه د جاهليت سره به مقاطعه کول وي ، په دنيا کې دوه نظامونه چليږي ، دريم پکې نشته ، يو د اسلام نظام ، دويم د جاهليت نظام ، نو د اسلام نه غير چه په هر شکل کې وي نو هغه جاهليت نظام دے ، لکه حسن بصري رحمه الله ددې آيت په تفسير کې وائی : ﴿ أَفَحُكْمَ ٱلْجَٰهِلِيَّةِ يَبْغُونَ ..... ﴾ [1] «**من حكم بغير الله فقد حكم بالجاهلية**» چا چه د الله د حکم نه بغير په بل څه فيصله اوکړه نو ده په جاهليت فيصله اوکړه ، د علی رضي الله عنه نه چا تپوس اوکړو چه زه به حق څنګه پيژنم ؟ نو هغه ورته په جواب کې اووئيل : چه د باطل غشي ته ګوره چه کوم طرف ته ځي ، نو چه کوم طرف ته تلو نو ته پوهه شه چه دغه حق دے، اوس اوګوره کنه کوم خلق چه ددې جاهليت نظام د لاندې وقت تيروی هغوی په آرام سره زندګی تيروی او چا چه ورسره عملی مقاطعه کړے ده نو هغوی باندې غشی وريږی ، نو بله علامه د حقاينت داشوه چه د جاهليت سره به مقاطعه کوې او ديته ملت ابراهمی وائی ، لکه ابراهيم عليه السلام خپل پلار ته دعوت ورکوي خو په دعوت کې مداهنت نه کوي بلکه ورته وائی : ﴿ إِنِّيٓ أَرَىٰكَ وَقَوۡمَكَ فِي ضَلَٰلٖ مُّبِينٖ ﴾ [2]

" پلاره تا وينم او ستا قوم هم وينم چه په ګمراهئ ښکاره کې ئی " ،

دارنګه د ابراهيم عليه السلام په ژوند کې الله زمونږ دپاره اسوه حسنه ايخودې ده ، لکه الله تعالىٰ فرمائی : ﴿ قَدۡ كَانَتۡ لَكُمۡ أُسۡوَةٌ حَسَنَةٞ فِيٓ إِبۡرَٰهِيمَ وَٱلَّذِينَ مَعَهُۥٓ ﴾ [3] "يقينًا ستاسو دپاره طريقه خائسته ده په ابراهيم عليه السلام کې او هغه کسانو کې چه د هغه سره وو".

اسوه حسنه داسې ده : ﴿ إِذۡ قَالُواْ لِقَوۡمِهِمۡ إِنَّا بُرَءَٰٓؤُاْ مِنكُمۡ وَمِمَّا تَعۡبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ [4]

---

1) [ سورة المائدة : ٥٠ ] .

2) [ سورة الأنعام: ٧٤ ] .

3) [ سورة الممتحنة: ٤ ] .

4) [ سورة الممتحنة : ٤ ] .

کله ئی چه خپل قوم ته اووئیل : مونږ ستاسو نه بری یو او د هغه بوتانو نه چه تاسو ورته د الله نه بغیر عبادت کوئ ، « كفرنا بكم » یعنی مونږ ستاسو پدې عقیدې کفر کوو ، بیا وائی : ﴿ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ ٱلْعَدَٰوَةُ وَٱلْبَغْضَآءُ أَبَدًا حَتَّىٰ تُؤْمِنُوا۟ بِٱللَّهِ وَحْدَهُۥٓ ﴾ [1] ، "او زمونږ او ستاسو ترمینځ به دشمنی وي او بغض به وي ترڅو چه تاسو په الله باندې یواځې ایمان راوړئ ".

نو د کفر سره عداوت او دشمنی کول ، د جاهلیت نظام سره دشمنی کول دا د منهج د صفائی علامه ده .

دا رنګه د لا إله إلا الله صحیح دعوت کول : پیغمبر علیه الصلاة والسلام چه دنیا ته راغې نو د لا إله الا الله دعوت ئی ورکړو، پدیکې یو حکمت دا دے : چه د نبی کریم ﷺ په زمانه کې کعبه شریفه کې 360 بوتان وو ، او رسول الله ﷺ په خلقو کې صادق او امین ګڼړل کیدو ، او ددې 360 بتانو والاؤ په خپل منیځ کې هیڅ اختلاف نوو چه ته ددې بت عبادت کوے زما د بت عبادت ولې نه کوے داسې اختلافات د دوی په خپل مابین کې نهٔ وو ، نو که بالفرض نبی کریم ﷺ خپل رب ددې 360 بوتانو سره یوځائی کړے وے او دا 361 جوړ شوي وې ، نو بیا هم ورسره مشرکانو اختلاف نه کولو ، خو نبی کریم ﷺ د جاهلیت سره مکمل قطعه کوي ، لاإله معنی ستاسو بوتان نه منم الا الله یو الله به منم ، نو مکمل مقاطعه زمونږ د ایمان د اول جزء نه شروع شي چه لاإله الا الله دے ، نو د لاإله الا الله دعوت کول دا په اصل کې په صفاء المنهج باندې بناء دے او دغه د صفاء المنهج دعوت دے ، نو ددې نه پته لګی چه دا کوم خلق چه راوچت شوي دی او نفاذ شریعت دعوت او کوششونه کوي دا په حقه دي ، او اکثریت پرستی کې به بیا پوره تفصیل کوو او هلته به بیا د دوی یو سوال هم ذکر کوو چه سواد اعظم اتباع پکار ده ، نو ددې جواب به بیا هلته په تفصیل سره کوو چه ددې سواد اعظم نه څه مراد دي ، ددې نه یو کس هم مراد کیدې شی چه په حق باندې ولاړ وي او ددې به بیا پوره حوالے ذکر کوو ، او بل چه مضبوط په حق

[1] [ سورة الممتحنة : ٤ ] .

باندې ودریدل دا هم سواد اعظم دے ، نو ددې تفصیل به روسته کوو ان شاء الله تعالیٰ.

نو د شخصیت پرستئ ماده د ځان نه اوباسل پکار دي ، او ددې د اوباسلو یوه طریقه دا هم ده چه د یو سړی د ذات د وجه نه د هغه ډیر صفتونه مه کوه او خاص کر چه کوم ژوندے وي ځکه چه د هغه څه پته نهٔ لګی .

وبالله التوفيق .

* * * * *

## 3 / موضوع « مصلحت پسندي» ( اوله حصه )

نحمده ونصلي على رسوله الكريم ، امابعد :

مخکې دوه موضوعات د الله په فضل او کرم سره ذکر کړے شو اوس يوه بله موضوع شروع کوو خو د هغې نه مخکې يوه مقدمه :

زمونږ فريضه داده : چه خپل منهج اوپيژنو او خپل دين اوپيژنو او بيا په هغه دين باندې روان شو ، او بيا هغه دين معيار اوګرځوو دپاره د پيژندلو د رِجالُ ، که څوک چرته په هغه معيار باندې برابر شي ، نو هغه سړے به مونږ په حق ګنړو ، او که څوک د هغه معيار نه اخواديخوا شي نو دغه انسان به مونږ په حق نهٔ ګنړو ، دارنګه مونږ به معرفت د حق په رجالُ باندې نه کوو مثلاً : داسې به نه وايو چه دا خبره ځکه حقه ده چه دا خبره فلانی صاحب کړيده ، د انبياء عليهم السلام نه بعد مونږ معرفت د حق په رجالُ سره نه بلکه معرفت د رجالُ به په حق سره کوو ، انبياء کرام عليهم السلام خو داسې ذوات دي چه هغه مقدس ذوات دي معصوم ذوات دي نو پدې وجه باندې مونږ د هغوئ په باره کې خو څه نشو وئيلې، او د الله او نبي کريم ﷺ نه بعد به هر څوک خبره په دليل سره کوي او امام صاحب نه بعد زمونږ د مسلک مطابق چه غواړو نو مونږ بيا دليل د هر چا نه غواړو ، لکه دا خبره تا مخکې ياده کړه .

اوس موضوع : «**من صفآء المنهج تسليم الاحكامِ الالهية بلا استصلاح**» د منهج صفائى داده چه د الله احکامات به منى بغير د مصلحت نه ، يعنى د الله دين تهٔ منى ددې وجه نه چه ته داسې اوائى : چه دا د الله دين دے ځکه ئې منم ، ډير خلق داسې دي چه هغوي دين ته د مائله کولو دپاره دعوت کې خوبيانے د اسلام ذکر کوي ، مثلاً : دا وائى چه اسلامي نظام نافذ کړه ځکه چه اسلام دا وائى : چه مزدور ته مزدوري د هغه د خوَلې د اوچيدلو نه مخکې ورکړه، اسلام د عزت په باره کې داسې وائى ، او ددې په خلاف جمهوريت داسې وائى ، ددې په مقابله کې برټش ( برطانوى ) دا ذکر کوى يعنى د هغې خاميانې ذکر کوى نو لهذا تهٔ اسلام نافذ کړه ، نو پدې خوبيانو سره يو سړے قائله کوي چه بس تهٔ اسلامي نظام نافذ کړه ، ليکن خو د

دين او اسلام مزاج دا ندي ، او مونږ چه خپل حکومت ته وايو چه اسلامي نظام راوله نو دا مونږ منو چه پديکې خوبياني ډيرے زياتې دي ، خو مونږ پدې طريقې سره دعوت نۀ ورکوو ، مونږ وايو چه نظام د الله اومنه ددې وجه نه چه دا د الله نظام دے ، او مونږ دعوت د لا إلٰه إلا الله چلوو .

دارنګه نبی کريم ﷺ چه کله دنيا ته رامبعوث (راغې) شو نو هغې اول دعوت د لا إلٰه إلا الله نه شروع کړو ، نو په بل رنګ کې اسلامی نظام پيش کول دا د اسلام د مزاج سره نۀ خائی ډير خلق داسی وی چه هغوی وائی چه زمونږه مطالبه د اسلام ده ځکه چه زمونږه دغه قوم چه څومره غورځيدلے او پاسمانده شوے نو ددې اوچتوالی به په اسلام سره راځی نو دوی دغه قومی دعوت مقدم کړو په اسلام باندې او اسلامی نظام روستو کړی نو بيا اکثر وقتونو کې په دوی باندې هغه قومی مصلحتونه غالب شی او بيا په اسلامی نظام باندې فيصلې نشی کولےځکه بيا به وائی چه پدې فلانی څيز کې د قوم مصلحت دے او بيا قوم خفه کيږی او قوم کې اختلاف راځی ځکه چه دوی اول قومی دعوت ورکړے وو ، نبی کريم ﷺ ځکه د اول نه د لا إلٰه إلا الله دعوت چلولے وو د قوميت دعوت ئې ونۀ چلولو حالانکه دۀ که چرته د قوميت دعوت ئې اول چلولے وے نو د انسانی اندازے مطابق به بيا د هغه ملګري زيات وے ځکه چار چاپيره روم او فارس په هغه وقت کې مضبوط طاقتونه وو نو نبی کريم ﷺ به دوی ته وئيلے وے چه مونږه څه کمزورے قوم يو راځئ چه يو ترقی يافته قوم ځان نه جوړ کړو نو که چرته دغه لالچ ئې ورکړے وے نو ګوره عرب ډير قوم پرست خلق وو نو ټول به نبی کريم ﷺ سره ولاړ وے او چه خه په ترقئ روان شوے وے نو بيا ورته نبی کريم ﷺ وئيلے وے چه راځئ چه اوس اسلامی نظام راولو نو سمه ترقی به وکو خو نبی کريم ﷺ دغه کار ونۀ کړو ځکه چه نبی کريم ﷺ پدې پوهه وو چه طاغوت که په هر شکل وی نو هغه طاغوت دے که طاغوت د فارس په شکل کې وی او که رومی شکل کې دے نو که چرته زه د فارس او رومی طاغوت نه ځان آزاد کړم نو د عربی طاغوت کې به راګير شم او بيا به پدې خلقو کې د قوميت نعره مقدم شی نو بيا به په هر څه کې د قوميت لحاظ اول کوے او روستو

به بيا اسلام وی ، نو ددې وجې نه نبی کریم ﷺ دوی ته اولاً قومی نعره اوچته نهٔ کړه بلکه اول ئې ورته اووئيل : **قولوا لا إله إلا الله تفلحوا** ، يعنی د کاميابئ سرچشمه ورته اول لا إلٰه إلا الله کيخوده ، درانګه نبی کريم ﷺ دغه شان هم کولے شو چه اولاً ئې ورته د سرمائی مهم شروع کړے وے چه راځئ دا خلق ټول غريبان دی نو سرمايه دارانه نظام جوړ کړه او ددې دپاره ورته قسما قسم طريقې جوړے کړه او چه کله ښهٔ مالداره شو نو بيا به ورته اسلامی نظام ورورواندے کړے نو ممکن وه چه پدې طريقه ورته ټول خلق راجمعه شوي وے ځکه چه دوی به اکثره دغه خبره کوله چه پکار خو دا ده چه دې پيغمبر دپاره دې خزانې وي ځکه ورته الله تعالیٰ په جواب کې وفرمائيل : چه ته ورته ووايه اے پيغمبره ! ﴿ قُل لَّآ أَقُولُ لَكُمۡ عِندِى خَزَآئِنُ ٱللَّهِ ﴾[1] نو نبی کريم ﷺ دغه طريقه اختيار نهٔ کړه ځکه چه په دين اسلام کې بيا لالچ راتلو نو نبی کريم ﷺ بنياد او سرچشمه د اول نه لا إلٰه إلا الله کيخودله ، هاں چه اول اسلام راوړی بيا روستو ورته ته مالونه ورکړے او که عهدې ورکوے لکه نبی کريم ﷺ داسې کړی وو ، ځکه اول تخليه ده او بيا تحليه ده اول ګندګی صفا کول دي .

ځکه نبی کريم ﷺ دا نهٔ خوښوله چه په دين اسلام کې دې څهٔ نقصان راشي ، ددې وجه نه د دين اسلام درې واړه منزلونو بنياد نبی کريم ﷺ په لا إلٰه إلا الله سره کيخودلو :

١/ بنياد چه سرچشمه د اسلام ده د هغې بنياد ئې په لا إلٰه إلا الله باندې کيخودلو .

٢/ دويم منزل دې چه په سفر باندې روان دے د هغې بنياد ئې هم په لا إلٰه إلا الله باندې کيخودلو .

٣/ آخري مقصود او نتيجې بنياد ئې هم په لا إلٰه إلا الله باندې کيخودلو ، پدې درې واړو منزلونو کې نبی کريم ﷺ بل خلط او ملط ورسره رانهٔ وستلو ، نو زمونږ طريقه به هم دغه شان وي ، نو د ځان نه مصلحتونه جوړول ندي پکار بلکه د مصلحت پسندې ويستل پکار

[1] [ سورة الأنعام : ٥٠ ] .

دي .

نو پدې موضوع کې اولنئ خبره زمونږ داده : چه دا مصلحت پسندي په دې دور کې ولې راغله ددې څۀ وجه ده ؟

نو ددې بنيادی وجه دا ده چه يو سياست دان وو هغه دا فلسفه جوړه کړے وه چه د هغه نوم دے ميکياولی دا د هغۀ فلسفه ده او ديته فلسفه ميکياوليت وائی ، نو دا يو سياست دان وو چه په **1469** کې دا په اټلي ( Etle ) کې پيدا شو ، څۀ موده دۀ په سياست کې تيره کړه ، بيا د سياست نه جدا شو، او دا بيا په **1527** کې هلاک شو، ده يو کتاب اوليکلو د سياست دانانو دپاره او د هغه نوم ئی کيخودلو « ليډر » پدې کتاب کې دۀ ناشنا خبرې کړيدي ، او سياست دانان دغه خبرې د سياست منبع ګرځوي ، خو دا هغه خبرې وې چه يورپ او د مغرب سياست دانانو به په زړه کې پټې ساتلې خو دې سړی هغه خبرې راظاهرے کړے پدې کتاب کې ، دا خومره مصلحتونه چه نن صبا خلق کوي نو دا دۀ پدې کتاب باندې کوي .

دۀ د کتاب يوه **مختصره** خبره ځان سره يادول پکار دي ، يوه خبره دا کوي : چه په عوامو باندې هميشه دپاره بدګمانه اوسيدل ، حالانکه دا خبره دده د اسلام نه خلاف ده چه په مسلمانانو باندې تۀ بدګمانه شې ، ځکه قرآن کې الله فرمائی : ﴿ إِنَّ بَعۡضَ ٱلظَّنِّ إِثۡمٞ ﴾ [1] " يعنی بعضی د ظن نه دا ګناه ده " او حديث کې هم دغه شان راځی : « **ظنوا بالمؤمنين خيراً مالم تروا شرهم** » " په مؤمنانو باندې د خير ګمان کول ترڅو پورې چه دې ترينه شر نۀ وی ليدلې " ، خو دا وائی چه عوامو باندې هميشه بدګمانه کيدل ، دا دۀ عقيده ده .

٢/ خبره دې دا کوي : چه د حکمران دپاره بخل او کنجوسي انتهائی ضروري دي ، حالانکه نبي کريم ﷺ زمونږ د امت حکمران وو او د هغه په باره کې حديث کې راځي چه « **كان رسول الله صلى الله عليه وسلم اجود الناس** » [2]

---

[1] [ سورة الحجرات: ١٢ ] .

[2] [ مصنف ابن أبي شيبة : ١٠ / ٣٣٩ ] .

" چه نبي كريم ﷺ انتهائی سخي انسان وو " ، او دا وائی چه د حكمران دپاره بخل او كنجوسي انتهائی ضروري دي .

٣/ د حكمران دپاره خباثت انتهائی ضروري دے ، يعنی حكمران به غټ خبيث انسان وي

٤/ چه حكمران دي ځان لره محكې داسې اهداف كيدي چه د هغه اهدافو حاصلولو ظاهری كوشش به كوي خو پوره حاصله وی به نه لكه نن صبا مثال كې مسئله د پختونستان شوه يا د كشمير مسئله شوه نو دا به نۀ حاصلوے ځكه كه دا حاصله كړی نو بيا خو تۀ اوزګار شوے ځان به اوزګار نۀ پريدے .

٥/ چه حكمران به هميشه دپاره په ځان كې منافقت ساتی ، ځكه چه منافقت د حكومت د بقا دپاره انتهائی ضروري دے ، حالانكه نبي كريم ﷺ فرمائی چه : « **المؤمن غرٌّ كريمٌ** »[1] " يعنی مؤمن به سيده ساده انسان وي " ، خو دا دې برعكس وائی .

٦/ چه په حكمران كې به وعده خلافي پرته وي ، چه كله هم دده يوه معاهده دده د مصلحت سره مخالفه شي نو هغه معاهده به دا خامخا ماتوي ، حالانكه اسلام د معاهدې د باقي ساتلو دپاره ځومره زيات تأكيد كوي د منافقت په علاماتو كې راوستے ده چه ځوک د وعدے خلاف كوی .

٧/ چه حكمران به هره طريقه استعمالوي د خپل مقصد حاصلولو دپاره ، كه هغه ښۀ وي او كه بده وي .

٨/ چه حكمران به بعضې خلق داسې ساتي چه كله هم عوام د حكمران نه خفه كيږي نو دا به هغه خلق د عوامو مخې ته راولي او ځان به بچ كوی د عوامو نه .

**خلاصه** : دا شوه چه مقاصد په ذرائع باندې اثر انداز وي ، كه مقصد دې ښۀ وو كه هر قسمه ذريعه وي نو هغه به ښۀ وي ، او كه مقصد دې ښۀ نۀ وو ، نو كه هر قسمه ذريعه وي هغه دې خطاء ده ، او ذرائع د هغوي مطابق بدليږي رابدليږي ، مثلاً : كه يو سړے د حج د

[1] [ سنن أبي داؤد ، رقم : ٤١٥٨ ، والترمذي ، رقم : ١٨٨٧ ] .

روپو دپاره د زناء اډه کولاؤ کړي نو دوي وائی چه خير دے دا خو مقصد پدې حاصليږي او مقصد ئې ښه مقصد دے او هر چه زنا ده دا يوه ذريعه ده دا که هر څنګه وي نو وی دې کنه نو د دوي نظريه داشوه چه مصلحت کوه په هر څۀ کې ، بس مقصد ته د رسيدلو دپاره چه تا کومه لاره هم اختياره کړه نو هغه به صحيح وي پدې وخت کې د ټولو سياستدانانو دغه نظريه ده .

او بيا پديکې بعضی مولیان دومره په خطاء باندې روان شوي دي چه د حد نه سوا ، لکه يو عالم دے د الجزائر عبدالخالق رحماني نو دا د ډيرو ګنده نظرياتو حامل مولا دے ، او دۀ بيا عجيب عجيب کتابونه ليکلي دي او هم دغه د نکاؤلی د نظريې تائيد ئې کړيدے د دې وجه نه ، او دۀ بيا دا فتویٰ ورکړه چه کله د الجزائر نه فرانس اووتلو نو خلقو دا مطالبه وکړه چه شراب خانې دې بندې کړې شي ، نو اولنې هغه کس چه حکومت ته ئې دا فتوی ورکړه چه کوم خلق دا مطالبه کوي چه شراب خانې دې بندې کړې شي دا خلق بې وقوفه دي ځکه چه پدې باندې د ملک معيشت اثر انداز دے ، او که دا فوراً بندې کړې شي نو د ملک معيشت خرابيږي ، نو هغه دا عبدالخالق رحمانی وو .

نو ددې وجه نه په سياست دانو او په بعضی مليانو ، قومونو او حکومتونو کې د مصلحت پسندئ سوچ راپيدا شو ، نو دا ددې خبرې يو تمهيد شو .

اوس د مصلحت پسندئ بحث ته راځو : نو يو څو خبرې پيژندل لازمي دي ، ١/ تعريف د مصلحت پسندئ ، ٢/ د مصلحت پسندئ په شريعت کې څۀ حيثيت دے ، ٣/ د مصلحت پسندئ تقسيم دوه اقسامو ته ، او دواړه قسمه حرام دي ، ٤/ يو قسم مصلحت او د هغې جائزه، چه په هغې کې يو سوال او د هغې جواب ، دا به ذکر کړې شي ، بفضل الله وتوفيقه ، ان شاء الله تعالیٰ .

خو اولاً دا خبره يادول پکار دي : چه مصلحت پسندی او استحسان دا دواړه يوه معنی لري ، خو د استحسان اصل کې درې معانې دي :

**اوله معنی** د استحسان چه دوه دليلونه دي يو دليل پکې زيات قوي دے ، او يو پکې

برابر دے ، نو زيات قوي دليل طرف ته رجع كول ديته استحسان وائی.

**دويمه معنی**: كوم يو څيز يو مسلمان ښهٔ اوګڼړي ، ۳/ مجتهد په دليل كې داسې يو عجيب پيچيدګی پېښې راولي چه تعبير ترينه نهٔ كيږي ، نو پديښې اولنې معنئ د استحسان دا صحيح ده ، او دا روسته دواړه غلط دي ، ځکه چه كوم څيز يو مسلمان يا يو مجتهد ښه اوګڼړی ، مجتهد هم په خپل ګمان باندې فيصله نشی كولے ځکه مونږه وئيلي وو چه د مجتهد كار قياس دے او دا قياس ئې په څلورمه درجه كې ولې راوړے ځکه دا به مستنبط وی د اولنی دريؤ نه يا د قرآن نه يا د سنت نه يا د اجماع نه .

**دريمه معنی**: چه مجهتد په دليل كې داسی پيچيدګی پيدا كړي ځکه چه د كوم څيز تعبير نهٔ كيږی نو په هغه به عمل څنګه كيږي نو آخری دوه صحيح ندي .

او احناف حضرات چه كوم استحسان يادوی نو هغه دا اولنې قسمه استحسان دے ، ځکه امام كرخي رحمه الله په خپل كتاب كې داسې تعريف كوي د استحسان چه : «**اخذ القياس الخفي بمقابلة القياس الجلي بدليل اقوی منه**» چه اخستل د قياس خفی دے په مقابله د قياس جلی كې د وجه د هغه دليل نه چه دا ددې بل دليل نه قوي وی او بيا مخكې دا هم ذكر شو چه استحسان مونږه پدې معنی سره اخلو او كه پدې نورو معنو سره شی نودا بيا باطل دے ، نو استحسان پدې معنی سره صحيح دے او پدې نورو معاني سره اغستل غلط او باطل دے ، نو احناف استحسان پدې معنی سره اخلی او كه پدې نورو معنو سره چه شی نو بيا باطل دے او بيا مونږه د خپلے معنی دپاره د قرآن كريم نه دليل پيش كوو او هر چه د آخری دوه دي نو دغه عملی كول دا غلط كار دے بعضی خلق ددې دپاره دليل پيش كوی چه «**ما رئاهُ المسلمون حسناً فهو عند الله حسنٌ**» دغه حديث پيش كوی نو اول خو دغه حديث مرفوع ندے موقوف دے په ابن مسعود رضي الله عنه باندې ، او دويم دا چه دغه حديث د اجماع په باره كې راغلے دے چه مسلمانان په يو كار راجمع شول نو هغه اجماع به معتبر وی او اجماع مجتهدين حضرات كوی او د قرآن او سنت نه ئې مستنبط كوی داسی نه چه دا اجماع به معتبره وی بيا خو به

دين د عقل تابع شي او د عقل مطابق به هر څوک فيصلے کوی چه بس ماته دغه حکم ښهٔ ښکاری زه به عمل کوم او بل به بل څه وائی نو دين د عقل د تابعداری نه د بچ کولو لپاره علماء کرام د استحسان دغه اولنی تعريف خوښ کړو او آخری دوه تعريفونه ئې ندی خوښ کړی.

او امام شافعی رحمه الله په کتاب الام کې وائی : « **من استحسن فقد شرَّعَ** » " چا چه استحسان اوکړو نو په تحقيق سره هغه د ځان نه شريعت جوړ کړو ".

نو د هغه مطلب دا دے : چه دا استحسان آخري معاني چه کومې مونږ بيان کړی دا ترينه مراد دي نه اوله معنی ، دارنګه علامه ابو الحسن آمدي په خپل کتاب " اصول الاحكام " کې ليکلي دي چه : د استحسان دغه اولنئ معنی مراد کول د دغې نه علاوه دا نورې دوه معاني نو دا نهٔ د احنافو په نيز معتبر دی ، او نهٔ د شوافعو په نيز ، او کومو خلقو چه امام مالک رحمه الله ته داسې نسبت کړے دے چه هغه داسې قسمه مصلحت پسندي غوره کوي ، نو دا قسمه نسبت کول امام مالک رحمه الله ته غلط دي .

نو دا کوم استحسان چه نن صبا شروع شوے دے چه د اسلامي نصوصو په مقابله کې مصلحت پسندی اغستل نو په اسلام کې د دې هيڅ قسمه وجود نشته ، او د مفاسدو او مصالحو مدار دا په شريعت باندې کيخودل پکار دي ، ځکه چه بيا به هر سړے د خپل مقصد دپاره هر قسم ذرائع استعمالوي ، لکه امام ابن تيميه رحمه الله نه چا تپوس اوکړو : چه دلته يو بزرګ سړے دې ، او دلته پدې ښار کې غلط خلق دي دهٔ ورته ډير دعوت ورکړو خو دا خلق نه منع کيږي ، نو دهٔ يو داسې قسمه طريقه اختيار کړه : چه يو محفل ئې مقرر کړو چه په هغې کې ډولونه او ګانے بجانے وغيره کارونه کيږي ، نو چه کله دا خلق دې مجلس ته راجمع شی او څهٔ وخت ډول وغيره اووهل شی نو بيا دا سړي ورته دعوت ورکړی او دا خلق پدې طريقه اصلاح کيږي آيا دا طريقه صحيح ده او که نهٔ ؟

نو علامه ابن تيميه رحمه الله په " مجموعة الفتاوی " کې بيا جواب ورکړې چه دا طريقه صحيح نهٔ ده ، ځکه دا طريقه چه دا صوفي کوي نو دا حرامه ده ، او که چرې دا صوفی دا

طريقه په نيت د تقرب الى الله كوي نو بيا دا كار انسان كفر ته رسوي . نو ابن تيميه رحمه الله پدغه مصلحت پسندئ باندې رد اوكړو.

**بيا مصلحت دوي په درې قسمه تقسيموي** : ۱/ هغه مصلحت دے چه قرآن او حديث هم معتبر كړے وي ، لكه د الله تعالیٰ په امور تكوينيه كې هم مصلحتونه پراته دي ، او د الله تعالیٰ په تشريعي امورو كې هم مصلحتونه پراته دي ، تكويني امور : لكه زمكه ، آسمانونه ، غرونه وغيره نو پدې هر څيز كې مصلحت شته ، لكه هغه شعر كې راځي : « **وفي كل شئ له آية ... تدلُّ على انه واحد** » نو په هر يو څيز كې يوه نخه د عبرت شته د هغه مصالحو نه چه مونږ ګورو چه دومره منظم نظام دے نو مونږ ته پته لګيږي چه الله تعالیٰ يو ذات دے شريک ورسره نشته ، لكه فارسئ كې هم يو شعر دے چه :

برګ در رفتان سب درنظر هوشيار　　　هر ورق دفتر ست معرفت كِرد ګار

نو دا ټول مصلحتونه دي په تكويني نظام كې ، او په تشريعي نظام كې په هر يو كار كې د الله جل جلاله يو حكمت او يو مصلحت دے ، بغير د حكمت نه د الله جل جلاله يو كار هم نشته ، كه مونځ دے نو پديكې ځانله حكمت دے ، كه روژه ده ، كه حج دے وغيره ، خو ليكن دا خبره يادول پكار دي : چه د فقه علماء كرام او ټول علماء كرام دا فرمائي : د علم الاسرار په علم كې امام شاه ولی الله دهلوي رحمه الله د علومو د هر يو شی حكمت او سِر بيانوي ، په " حجة الله البالغة " كې عجيب عجيب اسرار بيانوی ، دا وائی : چه د هر يو حكم دپاره يو علت وي او يو حكمت او مصلحت وي ، او په علت سره يو حكم ثابتيږي هم او نفی كيږي هم كه علت موجود وي نو حكم هم موجود وي، او كه علت موجود نۀ وي نو حكم هم موجود نۀ وي ، مثلاً : د ماسپخين مونځ دے ، نو كه د ماسپخين وخت موجود وو نو مونځ به كيږي او كه وخت ندې موجود نو مونځ پرې ندے فرض ، ځكه چه وخت د ماسپخين ندې راغلې نو مونځ څرنګه بيا كوي ، خو په حكمت او مصلحت كې دا خبره نشته ، چه كه حكمت او مصلحت وي نو حكم به هم وي ، او كه حكمت او مصلحت نه وي نو بيا دا لازم

نده چه حکم به هم نۀ وي ، کله به مصلحت نه وي خو حکم به موجود وي، مثلاً : په حج کې په اولنو درې چکرو کې د بيت الله نه رمل کول دي ، يعنی منډه وهل ، او دا درې واړه پهلواني ځکه کيږي چه کله نبي کريم ﷺ او صحابه کرام حج ته راغلل نو د مکې مشرکانو ويل چه دا کسان خو د يثرب بيمارو وهلي دي او کمزوري شوی دي ، نو نبي کريم ﷺ امر اوکړو چه رمل اوکړئ ، نو اوس خو کافران نشته خو هغه د رمل حکم اوس هم موجود دے ، داسې په سفر کې د مشقت مثال شو ، داسې د صوم روژې مثال شو په سفر کې ، نو کله بعضی مصلحتونه داسې دي نۀ ئې معتبر کړيدي او نه ئې غورځولې دي ، او بعضی مصلحتونه داسې هم دي چه شريعت د هغې په باره کې هيڅ هم نه وائی ، نو ديته مصالح مُرْسَلَه وائی ، نن ټوله مسئله په مصالح مرسله باندې روانه ده چه شريعت ددې په باره کې هيڅ هم ندي وئيلې ، مثال لکه نن صبا زه مصلحت راوباسم او يو کار کوم لکه د بعضی خلق دغه مصلحت بيانوی او پارلمان ته ځی او وټونو ته ودريږی چه زه اسلامی نظام راولم نو دغه مصالح شريعت ندی معتبر کړی بلکه دلته د دۀ سره مصلحت نشته دے ځکه دغه کفری نظام دې پدې باندې شريعت صفا صفا ردونه کړی دی خو بهر حال دوی ئې بيانوی کار دلته خراب دے .

خو اکثريت خلق دغه مصالح مرسله راخلي او بيا په هغې باندې عمل کوي ، چونکه شريعت د هغې بالکل څۀ بحث ندې کړے ، ددې وجه نه ابن تيميه رحمه الله په مجموعة الفتاوی کې پدې مصالحو مرسله باندې ډير بحث کړے دے چه علماؤ لره پکار دي چه پدې باندې ډير بحث اوکړي چه خلق منع کړي چه هر سړے مصالح مرسله ايجاد کوي او په هغې باندې عمل کوي او د الله تعالیٰ حکم پريږدي ، نو دا خبره چه د خلقو د ذهنونو نه اوځی علماؤ لره پکار دي چه په خپلو کتابونو کې او خلقو ته په وعظونو کې دا خبره اوکړي چه مصالح مرسله دا ندي معتبر په شريعت کې .

**بیا بل تقسم په مصلحت کې کوي په درې قسمه سره** : ۱/ مصلحت حاجیه ، ۲/ مصلحت تقسیمیه ، ۳/ مصلحت ضروریه .

نو دې اولنو دوه قسمه مصلحتونو ته ضرورت نشته ، خو دا دریم قسم مصلحت ضروریه نو دا معتبر دے ، خو علامه ابو عاصم المقدیسي په خپل کتاب " القول النفيس في تحذير من خديعة ابليس " پدیکې لیکلي دي : چه دې مصلحت ضروریه ته هم ضرورت نشته ، خو مونږه چه په کومه مصلحت پسندئ باندې رد کوو هغه دا دے چه یو کس مصلحت اخستل دی په مقابله د شریعت کې یو شرعی نص او حکم پریخودل او خپل ذهن باندې په یو مصلحت عمل کوی پدې باندې رد شروع دے ، هاں یو د اضطرار حالت دے ، د هغې نه به روستو بحث کوو ځکه هغه ځانته مسئله ده .

اوس انسان چه مصلحت پسندی کوي د یو څو څیزونو دپاره ئې کوي : ۱/ دین ، ۲/ عزت، ۳/ نفس ٤/ نسب ، ٥/ مال ، مثلاً : بعضې خلق وائی چه زه جهاد نهٔ کوم ځکه چه مصلحت پرې خرابیږي، یا بعضې خلق داسې وائی : چه مونږ جهاد نه کوو ځکه چه مدرسې به ورانې شي دین ته به نقصان ورسیږي .

دارنګه څوک وائی چه زه د نفس یا د مال بچاؤ دپاره مصلحت کوم یا د عزت دپاره چه که فلانې کار ما اوکړو نو عزت به مې خراب شی ، نو مونږه چه اوس ګورو چه کوم شریعت چه الله تعالیٰ نازل کړے دے چه دغه شریعت د داسې قسمه مصلحتونو خیال ساتلې دے او کنه ، او دې دپاره په شریعت کې څه معتبر مصالح شته کنه او کنه مونږه به یو خارج نه مصلحت اخلو نو مونږه به اوګورو مثال بطور په شریعت کې دین دے نو د دین د تحفظ دپاره مونږه ته مصلحت کړے چه : «**من بدل دينه فاقتلوه**» نو شریعت د دین تحفظ دپاره مصلحت بیان کړے دے نو ستا مصلحت ته ضرورت نشته ، دا رنګه ته وائی چه زه د عزت دپاره مصلحت کوم ، نو شریعت اوګوره چه ددې دپاره ئې مصلحت کړے دے او که نه ؟ نو شریعت چه اوګورے هغه کې هم دا شته «**من قتل دون عرضه فهو شهيد**» " څوک چه د خپل عزت

په دفاع کې قتل شو نو دا شهيد دے " نو ستا د عزت دفاع شريعت کوي .
دارنګه ته وائې چه زه د نفس دپاره مصلحت کوم ، نو اسلام هم ددې انتظام کړے دے ستا مصلحت ته ضرورت نشته لکه فرمائی : ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ ٱلْقِصَاصُ فِي ٱلْقَتْلَى .... الاية ﴾ [1] نو ته د ځان نه مصلحت مهٔ کوه اسلام ستا د نفس مصلحت کوي .
دارنګه د نسب مصلحت هم اسلام کړے دے : ﴿ ٱلزَّانِيَةُ وَٱلزَّانِي فَٱجْلِدُوا۟ كُلَّ وَٰحِدٍ مِّنْهُمَا مِا۟ئَةَ جَلْدَةٍ ﴾ [2] ، نو ستا نسب په زنا باندې خرابيږي ځکه زنا چه شروع شي نو بيا د انسان د نسب پته نهٔ لګيږي چه زه د چا زوئ يم ، دارنګه د مال دپاره مصلحت کوے ، نو شريعت هم ددې مصلحت کړے دے : ﴿ وَٱلسَّارِقُ وَٱلسَّارِقَةُ فَٱقْطَعُوٓا۟ أَيْدِيَهُمَا جَزَآءًۢ بِمَا كَسَبَا نَكَٰلًا مِّنَ ٱللَّهِ ﴾ [3]، نو که ته د شريعت نه بهر مصلحت معتبر کوے نو ته دغه مصلحتونو ته اوګوره چه شريعت ستا خيال نهٔ ساتي ؟ خا مخا ئې ساتی او ته خامخا د شرعيت نه بهر اوځې.
نن چه کوم مصلحت دغه خلق په کور کې کينولی دي چه اسلامی فکر دپاره دعوت نه ورکوی هغه حقيقی يعنی د اسلامی نظام راوستلو فکر صرف دې مصلحت چه زه دې بچ شم ځکه که ته مصلحت د قرآن بې عزتئ دپاره وائې چه يره د قرآن کريم بې عزتی به وشی نو قرآن بی عزتی وشوه کنه ، او که پيغمبر عزت دپاره وائې نو د هغې بې عزتی وشوه کنه ، دارنګه د جماعت بې عزتی وشوه نو چه ددې ټولو ځيزونو بې عزتی وشوه نو اوس ددينه بعد صرف يو مصلحت دے چه صرف ته بچ شی نو دغه مصلحت او دغه کار دې غلط دے .
اوس کوم خلق چه دا وائې چه زهٔ پارلمان ته تلی يم ددې دپاره چه دين راولم نو دا په حقيقت کې دين ناقص ګنړل دي ځکه ستا مقصد دادے چه اسلام سره خپل منزل مقصود خو شته

---

1) [ سورة البقرة: ١٧٨] .

2) [ سورة النور: ٢ ] .

3) [ سورة المائدة: ٣٨ ] .

دے خو منزل مقصود ته د رسيدلو دپاره ذريعه او لاره نشته ، ځکه بلې طريقې ته روان شوې، نو د ټولو نه غټې مصلحت هغه دين دے ، او بيا مصلحت در مصلحت هغه توحيد دے نو چه د مصلحت دپاره شرک کوے نو د مصلحتونو سرچشمه او منبع خو داده چه د الله تعالیٰ توحيد اختيار کړه نو ته به مصلحت ته ورسيږې ، ځکه توحيد د دنيا او د آخرت دپاره مصلحت دے لکه رسول الله ﷺ فرمائی : **« امرت ان اقاتل الناس حتى يقولوا لاإله الا الله»** ''ماته امر شوے دے چه زه د خلقو سره قتال اوکړم تر دې پورے چه لاإله الا الله اووائی '' ، **«فإن قالوا ها عصموا منى دماءهم واموالهم »**[1] '' كه چرته دوي دا كلمه اووئيله نو زما نه د دوي وينې محفوظ شوے او مالونه ئې هم محفوظ شول '' .

نو توحيد سرچشمه او منبع د حكمتونو او مصلحتونو ده ، نو توحيد اختيار كړه دا لوئ مصلحت دے د هغه شركونو نه چه ته ئې كوے ، دارنګه توحيد په آخرت كې خومره فائده وركوي ، **« من قال لا إله الا الله دخل الجنة »** '' چا چه لاإله الا الله اووئلو نو جنت ته به داخل شي '' ددې نه به روستو بحث كوو ان شاء الله ، نو د ټولو مصلحتونو نه دپاسه لوئ مصلحت هغه توحيد دے ، نو د دين دا مصلحت واخله ، خو په حقيقت كې دا د شيطان دهوكه ده چه خلقو ته ئې دا د مصلحتونو خبره راويستلې ده، ددې وجه نه ابو عاصم مقديسى پدې باندې چه كوم كتاب ليكلې دے نو هغه ورته نوم وركړيدے : '' القول النفيس في التحذير من خديعة ابليس '' نو د شيطان د دهوكې نه ځان ساتل پكار دي ځكه د شيطان ډيرې ناشنا ناشنا دهوكې دي ، دا هم د شيطان دهوكه ده چه مقاصد په ذرائع باندې اثر انداز كول ، او دا د ميكياولى فلسفه ده ، نن دې فلسفه او مصلحت په مسلمانانو كې دغه سوچ راوستے دے او زيات تائيد ئې بيا عبدالخالق رحمانى كړے دے .

بيا په مصلحت كې يو معتبر مصلحت شته ، علامه آمدى رحمه الله په '' اصول الاحكام '' كې دا خبره ليكلې ده : چه مصلحت معتبر دے خو په مصلحت كې درې شرطونه دي :

---

[1] [ رواه البخاري ، رقم : ٢٤ ، وغيرهم ] .

۱/قطعي به وي د خپل ذهن نه به دي نهٔ وي جوړ کړے ، نو بیا په شریعت کښې دا مصلحت معتبر دے .

۲/ مصلحت کلي به وي جزئ به نه وي ، یو فرد پورې به خاص مصحلت نه وي .

۳/ دغه مصلحت به دشرعي حکم سره معارض نه وي ، نو بیا به دا قسم مصلحت معتبر وي.

او په فقه کښې چه کوم مصحلت ذکر کیږي نو هغه دا قسم مصلحت مراد دے ، لکه کله کله په فتاوو کښې دا خبره راشي ، چه دپاره د جلب المصالح دا کار اوشو ، دپاره د درء المفاسد دا کار اوشو، نو هلته د مصالحو نه دا قسم مصلحت مراد دے ، او هر چه دا مخکښې کوم مصلحتونه تحریر کړے شو نو دغه ترینه په فقه کښې ندې مراد .

هاں روستو یوه مسئله راځی هغه به بیا وایو چه یو کس بَلِیَتَیْن کښې راګیر شی یعنی د دوه مصیبتونو کښې راګیر شی او دواړه منهی وی نو بیا پکښې په ادنیٰ باندې عمل وکړه ځکه چه په یو خو به عمل خامخا کوے نو هلته بیا مصلحت شته او هغه بیا شریعت هم معتبر کړے دے او ددې ډیر مثالونه دي .

د مصالحو په باب کښې په ډیر زیات احتیاط کول پکار دي ځکه ډیر خلق د مصالحو دپاره په غلطو طریقو باندې روان شوي دي نو د هغې نه ځان ساتل پکار دي .

****

## د مصلحت پسندئ موضوع ( دويمه حصه )

مخکي حصه کي چه کومه خبره ذکر شوه چه په هغي کي د يو قسم مصلحت تذکره اوشوه چه دا قسم مصلحت اغستل معتبر دي چه په هغي کي دا دري شرطونه وي :

١/ قطعى به وي د خپل ذهن نه به نۀ وي .

٢/ مصلحت به کلي وي جزئ به نۀ وي .

٣/ دغه مصحلت به د شرعي حکم سره معارض نۀ وي ، نو دا قسمه مصلحت به معتبر وی .

نو اوس دا مصلحت به په کوم ځائی کي اغستلي شے ، نو دا قسم مصلحت به په هر ځائی کي نشي اغستلي ، ځکه دا مصلحت د مباح په مرتبه کي دے ، لکه قرآن کريم کي ډير دلائل موجود دي چه د مصلحت پسندئ نه پکي منع راغلي ده ، لکه من جمله د هغي نه يو څو د الله په توفيق سره ذکر وو :

١/ هغه مواضع چه په قرآن او حديث کي په هغي کي مصلحت متروک شوے دے

﴿ لَّيْسَ ٱلْبِرَّ أَن تُوَلُّوا۟ وُجُوهَكُمْ قِبَلَ ٱلْمَشْرِقِ وَٱلْمَغْرِبِ وَلَـٰكِنَّ ٱلْبِرَّ مَنْ ءَامَنَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْـَٔاخِرِ وَٱلْمَلَـٰٓئِكَةِ وَٱلْكِتَـٰبِ وَٱلنَّبِيِّـۧنَ ﴾[1]

دلته « لَّيْسَ ٱلْبِرَّ أَن تُوَلُّوا۟ وُجُوهَكُمْ » نبي کريم ﷺ چه کله مکی نه مديني منورے ته لاړو نو شپاړس « ١٦ » مياشتي ئی بيت المقدس طرف ته مونځ کړے وو ، د نبي کريم ﷺ په زړه کي هم دا تمنا وه چه زما قبله دي کعبه شی ، نو تحويل قبله باندي الله تعالىٰ امر اوکړو چه :

﴿ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ ﴾[2] " پس واړوه خپل مخ په طرف د مسجد حرام " نو نبي کريم ﷺ خپل مخ مبارک کعبي طرف ته واړولو ، نو د هغي نه بعد بيا يهودو او

---

[1] [ سورة البقرة : ١٧٧ ] .

[2] [ سورة البقرة: ١٥٠ ] .

نصاراؤ پروپيکنډې شروع کړې ، يهودو ويل : چه دا بيت مقدس قبله د مخوانو انبياؤ عليهم السلام هم وه ، او زمونږ هم ده ، او دې نبي ( محمد رسول الله ﷺ ) چه کعبې طرف ته خپل مخ تاؤ کړو نو دا په ديکې خپل قوميت پروت دے ، او داسې نور اعتراضات ئې شروع کړل.

نو يهودو د خپلې قبلې حکمتونه او فوائد شروع کړل ، او نصرانيانو د خپلې قبلې چه کوم مقام زيتون وو د هغې فضيلتونه او حکمتونه شروع کړل ، نو الله رب العالمين د هغې د مصلحتونو نفی کوي چه : « لَّيۡسَ ٱلۡبِرَّ أَن تُوَلُّواْ وُجُوهَكُمۡ قِبَلَ ٱلۡمَشۡرِقِ وَٱلۡمَغۡرِبِ ... » "نشته دے نيکی پديکې چه تاسو خپل مخونه مشرق او مغرب طرف ته تاؤ کړئ ، بلکه «ولكن البر من آمن بالله ... » نو دلته الله تعالیٰ بيان اوکړو : " که ستاسو مصلحت د شرعی حکم سره په ټکر شی نو د شرعی حکم لره به اعتبار وي ، چه الله کوم حکم اوکړو ، لکه نبی کريم ﷺ ته الله تعالیٰ حکم اوکړو چه کعبې طرف ته مخ تاؤ کړه نو دا تحويل کعبې طرف ته دا د الله تعالیٰ حکم دے ، ددې په مقابله کې چه تاسو کوم مصلحت پيش کوئ نو هغې لره به اعتبار نۀ وي ، تاسو په الله ايمان راوړئ ، او د الله حکم اومنئ ، نو الله تعالیٰ دلته د دوي د مصلحت نفی کړو.

۲/ بل ځائې کې الله تعالیٰ فرمائې : ﴿ وَلَيۡسَ ٱلۡبِرُّ بِأَن تَأۡتُواْ ٱلۡبُيُوتَ مِن ظُهُورِهَا وَلَٰكِنَّ ٱلۡبِرَّ مَنِ ٱتَّقَىٰۗ وَأۡتُواْ ٱلۡبُيُوتَ مِنۡ أَبۡوَٰبِهَاۚ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ لَعَلَّكُمۡ تُفۡلِحُونَ ﴾[1]

" نيکي پديکې نده چه تاسو خپلو کورنو ته د شا طرف نه راشئ ، ...

په عربو کې دا طريقه وه چه کله به حج ته لاړل ، نو په دوران حج کې به دوي کپړے نۀ اچولې ، مصلحت به ئې ورلره دا بيانولو : چه پدې کپړو کې مونږ ګناهونه کړيدي ، او بيا چه کله واپس راتلل نو د کور په دروازه به نه رانيوتل ، يا به د شا طرف نه په ديوال باندې راوړيدل، او يا به ئې د شا طرف د کور چه کوم ديوال وو نو په هغې کې به ئې سورے اوکړو او راداخل

[1] [ سورة البقرة: ١٨٩ ] .

به شول .

اوس كور ته د شا طرف نه راتللو كې څه مسئله نشته ، خو لكن الله تعالیٰ دا خبره نفی كړه چه دا خو څه نيكی نده چه كورونو ته د شا طرف نه تاسو راننوځئ ، بلكه نيكی داده چه تقویٰ اوكړئ ، او كورونو ته د دروازو د طرف نه راننوځئ .

نو دوي چه كوم مصلحت معتبر كړے وو نو دا شرعي مصلحت نه وو ، بلكه دا اختراعی مصلحت وو د ځان نه جوړ كړے شوے مصلحت وو ، نو تاسو پدې مصلحت باندې عمل مهٔ كوئ ځكه چه پدې باندې د دين شكل خرابيږي ، او تحريف في الدين راځی پدې سره ، ددې وجې نه علامه شاه ولی الله الدهلوي رحمه الله فرمائی : چه تعمق في الدين به ډير زيات نه كوے ، ځكه دې سره تحريف فی الدين راځي ، لكه مثلاً يو سړے دے هغه اوبه په ولاړه وسكی، نو صحيح ده چه دا د آدابو د دين نه خلاف ده په طريقه ورسره خبره كول ښكار دي چه دا كار بنهٔ ندي ، خو داسې نهٔ چه تهٔ ورسره دومره تشديد اوكړې چه د خلقو په ذهن كې د وجوب مرتبې ته ورسيږي .

۳/ دارنګه په بدر كې مسلمانانو ته الله په دوه خبرو كې اختيار وركړو چه يوه ترې واخلئ ، يا به د لښكر سره ستاسو مقابله راځي ، او يا به قافلې سره ، نو قافله كې آسانی وه نو مصلحت پديكې وو چه مسلمانانو په قافلې باندې حمله كړے وے ، خو لكن الله تعالیٰ دا اراده اوكړه چه د دوي ټكراؤ د لښكر سره وكړي ، او مسلمانانو دا خبره سخته ګڼړله ، او الله تعالیٰ د هغوي د خبرے حكايت بيانوي : ﴿ كَمَآ أَخۡرَجَكَ رَبُّكَ مِنۢ بَيۡتِكَ بِٱلۡحَقِّ وَإِنَّ فَرِيقٗا مِّنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ لَكَٰرِهُونَ ﴾ [1] دلته مسلمانانو ته په خپل ذهن كې دا حكمت ښه ښكاره شو چه مونږ دې د قافلې سره ټكراؤ شو ، او د لښكر سره دې ټكراؤ نشو ، لكن الله تعالیٰ فرمائی چه نه : ﴿ وَإِذۡ يَعِدُكُمُ ٱللَّهُ إِحۡدَى ٱلطَّآئِفَتَيۡنِ أَنَّهَا لَكُمۡ وَتَوَدُّونَ أَنَّ غَيۡرَ ذَاتِ ٱلشَّوۡكَةِ

---

[1] [ سورة الأنفال: ٥ ].

تَكُونُ لَكُمْ وَيُرِيدُ ٱللَّهُ أَن يُحِقَّ ٱلْحَقَّ بِكَلِمَـٰتِهِۦ وَيَقْطَعَ دَابِرَ ٱلْكَـٰفِرِينَ ۝٧ لِيُحِقَّ ٱلْحَقَّ وَيُبْطِلَ ٱلْبَـٰطِلَ وَلَوْ كَرِهَ ٱلْمُجْرِمُونَ ۝٨ ﴾ [1]

اوس دلته مسلمانانو مصلحت پديکې موندلو چه په قافلې باندې حمله اوکړي ، خو د الله تعالیٰ خپل مصلحتونه وو هغه اختراعی مصلحتونو ته ونهٔ کتل شو او په هغې باندې يو قسم له توبيخ اوکړو .

٤/ کله چه مسلمانانو باندې جهاد فرض شو ، نو مسلمانانو مصلحت په څهٔ کې کتلو ، نو بعضی ډلو پکې دا اووئيل : لکه وائی : ﴿ وَقَالُوا۟ رَبَّنَا لِمَ كَتَبْتَ عَلَيْنَا ٱلْقِتَالَ لَوْلَآ أَخَّرْتَنَآ إِلَىٰٓ أَجَلٍ قَرِيبٍ ﴾ [2]

” ولې دې فرض کړو په مونږ باندې جهاد لږ به دې پريخې وے تر نيتې نزدے پورے “

نو الله وائی چه ورته ووايه : ﴿ قُلْ مَتَـٰعُ ٱلدُّنْيَا قَلِيلٌ وَٱلْـَٔاخِرَةُ خَيْرٌ لِّمَنِ ٱتَّقَىٰ وَلَا تُظْلَمُونَ فَتِيلًا ﴾ [3]

” ورته ووايه چه د دنيا متاع لږ غوندې دے او آخرت غوره دے دپاره د تقویٰ والاؤ “ ، پدې ځائی کې الله تعالیٰ د دوي مصلحت ته ونهٔ کتل .

٥/ دغه شان د بدر په اسيرانو ( قيديانو ) کې د الله دا خوښه وه چه مسلمانان دې دا خپل قيديان قتل کړي ، لکه څرنګه چه د عمر فاروق رضي الله عنه مشوره وه .

حالانکه دلته درې واړه کارونه جائز دي ، فديه هم جائز ده ، قتل هم ، او احسان هم پرې کولے شې ، لکن د الله دا خوښه وه چه قتل دې شي ، نو چه کله نبی کريم ﷺ فيصله

---

[1] [ سورة الأنفال: ٧ – ٨ ].

[2] [ سورة النساء: ٧٧ ].

[3] [ سورة النساء: ٧٧ ].

پدي باندې اوکړه چه فديه ترينه واخلئ، نو الله تعالیٰ ورته يو قسم تنبيه وركړه : ﴿ مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَن يَكُونَ لَهُۥٓ أَسْرَىٰ حَتَّىٰ يُثْخِنَ فِي ٱلْأَرْضِ ﴾ [1] " د نبي سره دا مناسب نده چه هغه دې په قيديانو باندې فديه واخلي، تر دې چه په زمكه كې وينه تويه كړي "، نو حكمت پديكې وو چه قتل دې كړے شي، نو دلته الله تعالیٰ خپل مصلحت لره اعتبار وركړو.

٦/ دغه شان زيد بن حارثه ﷺ چه دا په ماشوم والي كې د خپل كور نه ورک شوے وو، چه دا مشهوره واقعه ده، خو بالاخر دا خديجې رضي الله عنها واغستلو او چه كله ئې د نبي كريم ﷺ سره نكاح اوكړه نو دا زيد بن حارثه ﷺ ئې نبي كريم ﷺ ته هبه كړو، او نبي كريم ﷺ دا آزاد كړو او ايمان ئې راوړو، نو دغه زيد ﷺ د زينب بنت جحش رضي الله عنها سره نكاح كړے وه.

خو د جاهليت په زمانه كې يو رواج او رسم دا هم وو چه كله به يو سړي يو ماشوم ته خپل ځوی اووئيلو او دا اګر كه د بل چا ځوی ولې نۀ وي خو بس خلقو به دا ماشوم ددۀ ځوی ګنړلو يعنی متبنیٰ به ئې وو، نو دغه شان زيد بن حارثه ﷺ د نبي كريم ﷺ متبنی وو خلقو به ورته زيد بن محمد ويلو، نو پدغه زمانه كې يو دا رسم هم وو لكه چه يو سړے د خپل ځوی د ښځې سره يعنی اينګور سره نكاح نشی كولے، نو په عربو كې دا رواج هم وو چه د متبنیٰ د ښځې سره به دې هم نكاح نشوه كولے، نو دا يو باطل رسم وو او په ښځه باندې يو ظلم هم وو، او داسې نور ډير ظلمونه پكې هم وو لكه قرآن كريم كې الله تعالیٰ د هغې نه بعضې ذكر كړيدي.

نو الله تعالیٰ ددغې باطل رسم او رواج ختمول غوښتل، نو اتفاقاً زيد بن حارثه ﷺ زينب بنت جحش رضي الله عنها ته طلاق وركول غوښتل او نبي كريم ﷺ ورته اووئيل: چه طلاق ورته مۀ وركوه، دا ځكه چه نبي كريم ﷺ ته دا خبره معلومه شوے وه چه كه چرته زيد ﷺ زينب رضي الله عنها ته طلاق وركړي نو ما ته به پدې امر كيږي چه تۀ ورسره

[1] [ سورة الأنفال: ٦٧ ].

نکاح اوکړه، او که زه ورسره نکاح اوکړم نو ګير چا پيره يهوديان او نصرانيان پراته وو هغوي به دا وائی چه اوګوره د خپلې اينګور سره ئی نکاح اوکړه، نو په ظاهر کې نبی کريم ﷺ ته دا مصلحت ښکاره کيدو چه داسې کار اونهٔ شي خو الله تعالیٰ د هغه رسم ختموالي غوښتل لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَإِذْ تَقُولُ لِلَّذِىٓ أَنْعَمَ ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَأَنْعَمْتَ عَلَيْهِ أَمْسِكْ عَلَيْكَ زَوْجَكَ وَٱتَّقِ ٱللَّهَ وَتُخْفِى فِى نَفْسِكَ مَا ٱللَّهُ مُبْدِيهِ وَتَخْشَى ٱلنَّاسَ وَٱللَّهُ أَحَقُّ أَن تَخْشَىٰهُ ﴾ (1)

نو دلته اوس ظاهری مصلحت يو شان وو ، خو د الله تعالیٰ په مصلحت کې ډير زيات خير وو ددې دپاره ظاهري مصلحت ته ئی ونهٔ کتل او دا حکم ئی راوليږلو.

٧/ دغه شان بل ځائی کې راځي : چه رسول الله ﷺ غزوه تبوک ته روان وو يو منافق کس پېکې وائی : ﴿ ٱئْذَن لِّى وَلَا تَفْتِنِّىٓ ﴾ (2) دا ئی ورته ځکه اووئيل چه په تبوک کې د روميانو ښځې وے او د رنګونو نه خائسته وې سپينې سرې وے نو دې منافق کس دا خبره اوکړه، خو الله ورته جواب کې وائی چه ته ورته ووايه : ﴿ أَلَا فِى ٱلْفِتْنَةِ سَقَطُوا۟ ﴾ " خبر دار دا خو په فتنه کې پريوتلو " ځکه چه د الله د حکم نه ئی خلاف اوکړو او د رسول الله ﷺ سره د ملګرتوب نه انکار اوکړو، نو ددې منافق مصلحت اختراعی مصلحت وو د ځان نه ئی جوړ کړے وو نو الله تعالیٰ پرې رد اوکړو.

نو په هر دور کې د مصلحت دُعاة وي او دې طرف ته ډير دعوت ورکوي په قرآن کريم کې ډير واقعات دي د مصلحت په نفی باندې.

٨ / اوس دا هم د مصلحت نه خلاف وو چه نبی کريم ﷺ کله مبعوث شو، او په دغه وخت کې ورسره ملګري هم لږ دي او الله تعالیٰ ورته وائی : ﴿ وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ ٱلْأَقْرَبِينَ ﴾ (3)

---

(1) [ سورة الأحزاب: ٣٧ ].

(2) [ سورة التوبة: ٤٩ ].

(3) [ سورة الشعراء: ٢١٤ ].

" خپل قوم قبيله ، ملګري ، رشتداران وغيره دا ويروه " ، نو نبی کريم ﷺ د صفا په ډيرئ باندې ودريږي او آوازونه کوي يا بنی فهر ، يا بنی عدي د قريشو ټولو قومونو ته ئی آواز اوکړو چه کله ټول راجمع شو نو نبی کريم ﷺ ورته دعوت ورکړو چه : «**قولوا لا إله الا الله تفلحوا**» نو دې سره د مشرکانو خلاف په جوش کې راځي او په رسول الله ﷺ باندې د کانړو ګذارونه کيږي ، نو تر دې ځائی پورې رسول الله ﷺ خفيه دعوت چلولو ، خو چه کله حکم راغې نو نبی کريم ﷺ پکې چون چرئ ونه کړه مصلحتونو ته ئی ونهٔ کتل چه اوس به ټول خلق خلاف کيږي دې ته ئی ونهٔ کتل خو بس د صفا ډيرئ ته اوختلو ، اولاً چه مخالف شو نو هغه ابو لهب وو چه د رسول الله ﷺ د کورنئ سرې دے او هغه وائی : «**تباً لک سائر اليوم ، ألهذا جمعتنا** ؟ » " تباه شې ټوله ورځ دې مونږ دې خبرې دپاره راجمع کړی يو " نو الله تعالیٰ په جواب کې سورة لهب نازل کړو ، او الله تعالیٰ تباه کړو .

نو دا خو د مصلحت نه ډير بعيده خبره وه چه نبی کريم ﷺ دې په صفا غونډئ باندې ودريږي او دا دعوت دې ورکوي .

۹ / دارنګه دعوت ابراهمي اوګوره : په دعوت ابراهيمی کې ابراهيم عليه السلام مصلحت نهٔ کوي بلکه ورته وائی : ﴿ إِنَّا بُرَءَٰٓؤُاْ مِنكُمۡ وَمِمَّا تَعۡبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ كَفَرۡنَا بِكُمۡ وَبَدَا بَيۡنَنَا وَبَيۡنَكُمُ ٱلۡعَدَٰوَةُ وَٱلۡبَغۡضَآءُ أَبَدًا حَتَّىٰ تُؤۡمِنُواْ بِٱللَّهِ وَحۡدَهُۥٓ ﴾ [1] .

ابراهيم عليه السلام ښکاره اعلان د بائيکاټ کوی کافرو سره بغض او دشمنی ښکاره کوي داسې مصلحت نه کوی چه څه وقت پورې به خبره پټه وساتو ، يعنی مصلحت ته ئې ونهٔ کتل .

۱۰ / دارنګه نبی کريم ﷺ مدينې منورې ته هجرت اوکړو ، نو په مدينه منوره کې اولنې سړې چه مخالف شوې دے نو هغه رئيس المنافقين عبدالله بن ابی ابن سلول وو ، نو

[1] [ سورة الممتحنة : ٤ ] .

دا د مديني منورے ملک وو نو کله چه نبي کريم ﷺ مديني ته راغيږ نو ددې ملکی خرابه شوه نو په مخالفت کې ودريدلو ، نو دلته نبي کريم ﷺ مصلحت ته ندی کتلی چه د دې منافق په سر باندې پګړئ کيدي چه دا خو مصلحت دے او خير دے ، نۀ که د ده زړۀ چوی نو ودې چوي خو اسلام به عالي ( اوچت ، او غالب ) کيږي .

۱۱ / دارنګه د مصلحت نه دا خبره هم ده چه په مکه مکرمه کې د نبي کريم ﷺ ترۀ ته کفار قريش راغلي او ورته وائی چه دا وراړۀ دې منع کړه ، او په هغې کې ورته قسما قسم پيش کشے کوي چه دا به اوکړو دابه اوکړو حتی چه يو روايت کې راځي چه وليد بن مغيره ورته اووئيل : که دا حکومت غواړي نو تا به مونږ بادشاه کړو .

اوس که پيغمبر عليه الصلاة والسلام د مصلحت نه کار اغستلې او دا سوچ ئی کړے وے چه بادشاهی به ميلاؤ شی او د هغې نه پس به بيا دغه دعوت اوچلوے ، لکه نن صبا چه کوم خلق د مصلحت دعاة دي هغوي وائی چه مونږ به اول ځان حکومت ته ورسوو بيا به دعوت چلوو ، نو نبي کريم ﷺ ورته اووئيل : چه زه حکومت نۀ غواړم ، دا طريقه د اسلام نۀ وه ، ځکه چه اسلام په کومی طريقې سره بدناميږي نو هغه طريقه به نه اختياروے .

۱۲ / دارنګه د مصلحت نه خو دا هم خلاف وه چه نبي کريم ﷺ بذات خود په بدر کې حاضريږي او جنګ کوي .

۱۳ / دغه شان په احد کې حاضريږي او غاښونه مبارک ئی شهيدان کيږي .

۱٤ / دغه شان په حنين کې تن تنها په ميدان کې يواځې پاتې کيږي ، او توره تاوَ وی او وائی: « **چه انا النبي لا كذب انا ابن عبد المطلب** » نو ظاهراً د مصلحت نه خلاف دي خو د الله حکم دے ورته .

نو معرکې ئی هم د ظاهری اختراعي مصلحتونو نه خلاف دي ، دعوتي طريقه ئی هم د اختراعی مصلحتونو نه خلاف ده خو مصلحت له ئې اعتبار ندے ورکړے ، چه کله حکم نازليږي نو فوری عملی کيږي ، نو منهج العلم والعمل دے ، نو نبي کريم ﷺ مصلحت پسندي نده کړے .

## د صحابه کرامو رضي الله عنهم د مصلحت پسندئ نه خلاف

### ١ / د ابوبکر صديق رضي الله عنه د مصلحت پسندئ خلاف اقدام

کله چه نبی کريم ﷺ وفات شو ، او ابو بکر صديق ﷺ ته خلافت په حواله شو ، نو نبی کريم ﷺ په خپل ژوند کې د اسامه بن زيد رضي الله عنهما لښکر ليږلې وو ، نو پديکې نبی کريم ﷺ ددې فانی دنيا نه رحلت اوفرمايلو ، نو دغه لښکر ددې د وجې نه رکاؤ شوے وو ، پديکې د عامو صحابه کرامو رضي الله عنهم رائے دا وه چه دا لښکر دې را واپس شي ، ځکه چه د نبی کريم ﷺ د وفات سره قسما قسم فتنې راپيدا شوے ، په بخاري کې روايت دے «**وکفر من کفر**» خلق مرتد شو ، دا يوه لويه فتنه راښکاره شوه ، نو پديکې ظاهراً دا مصلحت ښکاري چه دغه لښکر دې را واپس شي ، خو ابو بکر صديق ﷺ اووئيل: چه لښکر دې روان شي ندې را واپس کيږي ، نو خلقو مصلحت را وړاندې کړو نو ابوبکر ﷺ په جلالی الفاظو کې ورته جواب ورکوي ، ورته فرمائی : «**والذی نفسی بيده لو جر الکلاب علی ازواج النبی صلی الله عليه وسلم ما رددت جيشاً بعثه رسول الله صلی الله عليه وسلم ولا حللت ....**» " زما دې قسم وي په هغه ذات باندې چه د هغه په قبضه کې زما روح دے که چرته د رسول الله ﷺ د بيبيانو په خپو باندې سپی لګيا شي او په لارو او کوڅو کې ئې راکاږي نو بيا به هم هغه لښکر راواپس نه کړم کوم چه نبی کريم ﷺ ليږلې دے او نۀ به هغه جنډه را کولاؤ کړم چه نبی کريم ﷺ تړلے ده " ، اوس د نبی کريم ﷺ د ازواج عزت دا په ټول امت باندې لازم دے او دا په مصلحتونو کې اول مصلحت دے ، او ابو بکر صديق ﷺ هغه مصلحت هم رد کړو ددغې لښکر په باره کې .

نو دا د ابو بکر صديق ﷺ د مصلحت پسندئ په خلاف اولنې قدم وو چه په امت کې ئې اوچت کړو .

ددې وجې نه علی ﷺ بيان کوي خلقو ته وائی چه : «**من اشجع الناس**» نو خلقو ورته اووئيل : چه تۀ ئې په ټولو خلقو کې شجاع او بهادر ، نو علی ﷺ وژړل او د هغې نه بعد ئې

ورته اوويل : «واما انا فلست» هر چه زه يم نو زه دغه شخص نۀ يم ، «اشجع الناس ابو بكر» په مونږ کې د ټولو نه زيات بهادر ترين انسان هغه ابو بکر صديق ﷺ دے ، چه په مکه کې خلقو په وينو باندې سور کړو د کعبې شريفې په خوا کې چه کله په هوش کې راځې نو اول تپوس د نبی کريم ﷺ کوي چه رسول الله ﷺ په څه حالت کې دے ، دارنګه په غار کې اوګوره چه يواځې ورسره دے .

دارنګه د زکاة نۀ ورکونکو خلقو په خلاف چه ابو بکر صديق ﷺ لښکر تياروي ، نو عمر ﷺ ورته وائی : چه دا خلق خو مسلمانان دي ، نو ابو بکر ﷺ ورته وائی : چه نۀ څوک چه په صلاة او زکاة کې فرق کوي نو زۀ به د هغه سر په توره باندې جدا کړم ، بيا ورته عمر ﷺ وائی : چه ګير چاپيره فتنې دي ، نو ابو بکر ﷺ عمر ﷺ ته غصه شو او ورته وائی : « اجباراً في الجاهلية وخواراً في الاسلام » " په جاهليت کې خو ته ډير بهادر وے ، او په اسلام کې درنه ( والعياذ بالله ) بزدله جوړ شو " ، او بيا ورته وائی : « اينقص الدين وانا حيٌّ » " په دين کې به نقصان راځي او زۀ به ژوندې يم " دا نشی کيدې چه څوک هم په مانځه او زکات کې فرق کوي نو زۀ به د هغۀ نه سر جدا کړم .

نو دا د ابو بکر صديق ﷺ جرأت مندانه الفاظ وو ، د مصلحت خلاف ئې دومره لوئ قدم اوچت کړو ، او د مصلحت پسندئ خلاف ئې اوکړو .

أفسوس نن زمونږ او ستاسو په ملکونو کې چکلے او د بې حيائی اډے موجودی دي نو دغه مصلحتونه او حکمتونه به تر کومه پورے کوے .

*****

## د عمر فاروق رضي الله عنه د مصلحت پسندئ خلاف اقدام

۲ / د عمر فاروق ﷺ په دور كې يو سړے وو چه نوم ئې « جبلّهٔ » وو دا راغے او مسلمان شو، او دا د روم ډير غټ پهلوان وو، چه كله مسلمان شو نو طواف ئې كولو نو په دوران طواف كې د يو حبشى سره څه چيړ چاړ راغے، نو د هغه نه ئې په مخ باندې څپيړه اوچته كړه ( يعنى په مخ باندې ئې اووهلو ) او د هغه ئې دوه غاښونه مات كړل، نو حضرت عمر فاروق ﷺ لره فيصله راغله، نو عمر فاروق ﷺ هغه پهلوان ته وائې چه ستانه به قصاص اغستلې كيږي، جبله ورته وائې : چه ماله د صبا پورے وخت راكړه، نو د شپې شپې جبله تختيدلې وو او مرتد شوے وو، نو عمر فاروق ﷺ په تاريخ كې دا خبره نشته چه مابه نهٔ وے كړے دا كار، دې مصلحت ته نهٔ ګورى چه دا به مرتد شى يا به كافر شى، ﴿ لِّيَهْلِكَ مَنْ هَلَكَ عَنۢ بَيِّنَةٍ وَيَحْيَىٰ مَنْ حَىَّ عَنۢ بَيِّنَةٍ ﴾ [1]، نو كه د الله د دين د وجه نه كه څوک مرتد كيږي نو مرتد دې شي.

لكه نن بعضى خلق مونږ ته وائې : چه يره دا بعضى كارونه ( فتدبر ! ) مهٔ كوئ اګر چه هغه كارونه جائز دي خو پدې خلق متنفره كيږى، نو مونږه ورته وايو : چه د چا زړه ګوګ (يعنى خراب ) وى نو هغه متنفره كيږى نو بس متنفره دې شى خو د دين فريضه نشو پرېخودے.

نو دا د صحابه كرامو رضوان الله تعالىٰ عليهم اجمعين د مصلحت پسندئ په خلاف څومره لوئې انداز وو.

هم دغه شان تابعين حضرات او تبع تابعين حضرات دا ټول د مصلحت پسندئ په خلاف باندې اودريدلي دي، مصلحت ئې پريښي دے او د الله تعالىٰ حكم ئې اغستې دے.

**لكه حضرت عمر بن عبدالعزيز** رحمه الله : دا ډير لوئې بزرګ تير شوے دے او د احاديثو مدَوِّن ( احاديث جمع كونكې او ترتيب وركونكې ) دے، يحي الغساني رحمه الله واقعه بيانوي،

---

[1] [ سورة الأنفال : ٤٢ ].

چه زه عمر بن عبدالعزيز رحمه الله په موصل ښار باندې ګونر مقرر کړم ، نو کله چه زه د موصل ښار والی شوم نو پدغه وخت کې په موصل ښار کې ډاکې ، غلاګانې ، او قسما قسم فسادات پکې شروع وو ، نو عمر بن عبدالعزيز ته ما واپس خط اوليکلو، او دا مې ورته پکې وليکل چه دغه شان حالات دي زهٔ څهٔ چل وکړم ؟ مصلحت دے خلق د شک په بناء ګرفتار کړم او که ثبوت پيدا شي او د هغي نه پس خلق ګرفتاره کړم ؟ نو ماته عمر بن عبدالعزيز رحمه الله واپس جواب را وليږلو ، او دا ئې پکې ليکلي وو چه د هغي مفهوم داسې دے: چه اے يحي ! الله تعالیٰ ددې مخلوق دپاره شريعت نازل کړے دے ، او په هغه شريعت کې د ګواهانو او د شاهدانو او د ثبوت شرط راغلې دے ، که چرته دا خلق د الله په شريعت باندې سميږي نو سم دې شي ، او که نهٔ سميږي نو الله دې هلاک کړي مونږ ددې دپاره بل شريعت نشو جوړولې ، څکه امام شافعي رحمه الله فرمائی : «**من استصلح فقد شرع**» " چا چه مصلحت پسندي اوکړه نو دهٔ د احکاماتو شرعيو په مقابله کې د ځان نه شريعت جوړ کړو " ، **دا هغه** دوه قسمه مصلحتونو ته اشاره ده کوم چه مونږ بيان کړی وو .

نو عمر بن عبدالعزيز رحمه الله وائی : چه مونږ دلته مصلحت پسندي نشو کولے چه د ځان نه ورله شريعت جوړ کړو ، نهٔ الله چه ورله کوم دين راليږلې دے هغه دين زمونږ دپار کافی دے ، که د هغه دين په دائره کې دا خلق راګيريږي نو راګير دې شي ، او که نهٔ راګيريږي نو خير دے ندې راګيريږي .

**دغه شان محمود غزنوی رحمه الله** : دا هم ډير لوئی بزرګ تير شوے دے لوئ مجاهد انسان وو ، د هندوانو سره دهٔ ډير جنګونه کړيدي ، او ډير بتان ئې ورله مات کړی وو ، **سومنات** دا يو بُت وو چه کله به د هندوانو کوم يو بُت مات شو نو دا به ئې وئيلې چه ددهٔ نه سومنات نارضا وو نو دا څکه مات شو ، نو محمود غزنوي رحمه الله ددې خبرے نه خبر شو ، نو دهٔ دا قصد اوکړو چه زهٔ به سومنات ته ځان رسوم او دا به هم ماتوم ، نو محمود غزنوي رحمه الله ددې دپاره يو غټ لښکر سره را اووتلو او ډير سخت جنګ پرې اوشو خو بالاخر سومنات بوت ته دوي ورسيدل

، چه کله دوي هلته ورسيدل نو هندوانو ورته ډير غټ پيشکش اوکړو ، چه مونږ به تاسو ته لاتعداد پيسې او جواهرات درکړو خو محمود غزنوي ﷫ دغه مصلحتونه ونه منل، او ورته ئې اوويئيل : چه د قيامت په ورځ دې زۀ په بوت شکن باندې راپاڅولې شم ، نۀ د بوت فروش باندې ، نو دا وو د محمود غزنوي ﷫ د مصلحت پسندئ په خلاف اقدام .

**سفيان ثوري ﷫** : چه دا هم يو ډير غټ بزرګ تير شوے دے ، دا به د بادشاهانو د درباورنو نه ډير لرې لرې ګرځيدو ، يو ځل بادشاه اوويئيل چه دا سفيان ثوري ﷫ مونږ قاضی جوړوو ، د قضاوت دپاره ئې طلب کړو ، نو هغه ترينه مکې معظمې ته لاړو ، هلته وسيدو چه کله بادشاه ته معلومات اوشو چه دا سفيان ثوري ﷫ په مکه کې دے ، او دې ته هم پته اولږيدله چه په ما باندې بادشاه خبر شوے دے ، نو د مکې نه بصرے ته راوتختيدلو په بصره کې به ئې د دين دعوت کولو .

سفيان ثوري ﷫ به دا ويل : چه زۀ ددې نه نۀ يريږم چه زه د بادشاهانو خواته که لاړم نو دوي به زما توهين اوکړی ، زه ددې نه نۀ يريږم ، زۀ پدې يريږم چه دوي به زما عزت او اکرام اوکړي او په ما کې به ددوي دپاره نرم ګوشی راشی او زه به بيا دويته رخصتونه ورکوم په خبرو کې ددې رخصتونو نه يريږم .

هم دغه سفيان ثوري ﷫ فرمائي : چه قرآؤو او علماؤ دا بهانه ګرځولې ده ، مصلحت يئ جوړ کړيدے چه دوي د بادشاهانو دربارونو ته پدې نوم باندې ورځی چه زۀ به هلته کې مظلوم د ظلم نه بچ کړم ، زۀ به قيدي را آزاد کړم ، نو دا د دروغو مصلحت دے ، دا دوي يو پوړئ ( اندرپايا ) جوړه کړيده د بادشاهانو دربارونو ته د ختو دپاره .

د يزيد بن ميسره ﷫ نه چا د بادشاهانو په باره کې پوښتنه اوکړه ؟ نو هغه ورته په جواب کې اوويئيل : « **كان العلماء اذا علموا عملوا ، واذا عملو شغلوا ، واذا شغلوا فقدوا ، واذا فقدوا طلبوا ، واذا طلبوا هربوا** » " علماء مخکې داسې وو چه علم به ئې اوکړو نو عمل به ئې پرې شروع کړو ، او چه عمل به ئې پرې شروع کړو نو مشغوله به شول ، او چه مشغوله به شو نو

ورک به شو ، او چه کله به ورک شو نو بيا به مطلوب شو ، او چه کله به مطلوب شو نو اوبه تختيدلو ".

نو په اولنو علماؤ کې دا صفت پروت وو ، چه بادشاهانو ته به د علم ضرورت وو نو دوي به ورلره خواله نۀ راتلل نو دوي به په عالمانو پسې ګرځيدل نو آخر کې داسې خلق چه په هغوي کې د دنيا شوق او ذوق پروت وو ، د بادشاهانو دربارونو ته تګ هغوي خوښولو ، نو هغه خلقو د دغه موقعې نه فائده اوچته کړه ، هغوي علم زده کړو ځکه د بادشاهانو چه کوم شی ته ضرورت وو نو هغه علم وو ، او بيا په دغه طريقې سره ځان د بادشاهانو دربارونو ته ورسولو او په بادشاهانو باندې به ئې بيا علم خرڅولو ، بيا په آخره کې داسې وخت راغلې چه د بادشاه مخې ته به ناست وو او تهوله ورځ به ئې بيا مناظرے کولے د يو بل سره ، او بادشاه صاحب به ورته ناست وو ، نو آخره کې بيا دغه شان حالات شروع شول .

امام ابو حنيفه رحمه الله د منصور بادشاه د وجې تختيدلو ، منصور بادشاه به ورته اووئيل : چه زۀ دې قاضی کوم تاسو قضاوت شروع کړئ ، خو امام ابو حنيفه رحمه الله قضاوت نۀ کولو ، نو منصور بادشاه به دا روزانه راطلب کولو تقريباً دا خبره د پنځوسو 50 ورځو پورې چليدله دا تاريخ بغداد ليکلې دي ، او په آخر کې منصور بادشاه په جيل کې بند کړو ، او تکاليف او سزاګانې به ئې ورکولے تر دې چه بيا ئې په سر سر اوهلو نو امام صاحب کمزورے هم وو نو بيا د هغې نه شهيد شو .

دا دومره لوئ تکاليف ئې چه برداشت کول صرف ددې دپاره چه مصلحت ئې نۀ اخستلو.

دارنګه اياس ذکی رحمه الله بادشاه راطلب کړو چه راشه قاضی کوم دې ، هغه ورته اووئيل : چه زۀ د قضاوت نه نا اهله يم نشم کولے قضاوت ، نو هغه ورته وائی : چه ته نا اهله نۀ ئی تۀ دروغ وائی ، نو دا ورته وائی : که زه ريشتيا وايم چه زه نا اهله يم نو بيا خو ماله قضاوت مۀ راکوه ، او که چرے زۀ دروغ وايم نو بيا خو دروغجن قاضی نشی جوړيدلې .

نو دې أئمه کرامو رحمهم الله ځان د بادشاهانو نه دومره لرې ساتلو چه هسې نۀ چه په مصلحتونو کې راګير شو ، حالانکه د هغه زمانې بادشاهان هغه هم مجاهدين وو ، او متقيان

هم وو ، خو لکن بیا هم هغوي ورته سختي خبرے کولے او ځان به ئې ترینه نه ساتلو.

**لکه د بهلول او د هارون رشید بادشاه قصه** : دا بهلول به خلقو مجنون گنړلو ، لکن هارون رشید چه ورته کله اووئیل : چه ماته نصیحت اوکړه ؟ نو هغه ورته وائی چه ستا دا حکومت د متیازو ( بولو ) حیثیت لري ، هارون رشید ورته اووئیل : چه هغه څنگه ؟ نو بهلول ورته وائی : چه ته په یوه لاره باندې روان ئی او تنده درباندې اولږیدله او د تندې نه مړ کیږے، او پدیکې یو سړے دے چه د هغه سره په لاس کې یو گلاس اوبه دي نو ته ورته ووائی چه دا اوبه ماته راکړه د تندې نه مړ کیږم ، نو هغه درته اووائی : چه اوبه درکوم خو زما یو شرط دے ؟ ته ورته ووائی : چه کوم شرط دے ؟ نو هغه درته ووائی : چه اوبه به درکوم خو نیمه بادشاهي به ماله راکوے ، نو ته به څۀ کوے ؟ نو هارون رشید ورته اووئیل : چه آو نیمه بادشاهي به ورته ورکوم ، اوس دغه اوبه چه ستا خیټې ته لاړے نو واړه بول ( تشي متیازے) دې بندې شوې نه کیږي ، او ډیر سخت تکلیف درته دے ، او بیا درته یو حکیم راشی ، او هغه درته ووائی : چه دا نیم حکومت چه درسره کوم پاتې دے پدغه کې ماته نیم حکومت راکړه نو متیازے به درته ازادې کړم ، نو دا دریمه حصه د حکومت تۀ دې حکیم ته ورکړه ، بیا دې متیازے ازادے شوے او بالکل جاری شوے چه نۀ بندیږي ، نو دغه حکیم درته ووائی: چه د اعتدال حالت ته دې راولم خو دغه باقی نیم حکومت دې هم ماله راکړه ، نو بهلول ورته وائی: چه تۀ به بیا څۀ کوے ؟ نو بادشاه ورته اووئیل : چه ورکوم ئی ، نو بهلول ورته وائی: چه دغه ستا د حکومت او بادشاهت هغه قدر دے .

نو هغوي به باشاهانو ته دومره هم نۀ کتل ، بلکه هغوي به بادشاهانو ته سختې سختې خبرے کولے .

په فارسئ ژبه کې یو شعر دے وائی چه :

صلاتی نامی عالم گهر کی شانند    بحمدالله برم هم چو کی کانند

" وائی بادشاهان د زمانی به یقینی خبره ده چه یو شان به لری خو زما په نظر کې داسې نۀ

ښکاري لکه يو ډکې ''.

**عبدالقادر جيلانى رحمه الله او بادشاه نمْرَوْز**: نو دې بادشاه عبدالقادر جيلانى رحمه الله ته خط راوليږلو چه په فلانى ځائى کې زما دومره زمکه ده او زهٔ هغه ستا د مطبخ ( لنګر ) دپاره وقف کوم ، نو عبدالقادر جيلانى رحمه الله ورته واپس جواب ورکوي ورته وائى : که چرته زما په زړه کې د نمروز بادشاه د حکومت خيال قدرے راغې نو زما مخ دې داسې تور شي لکه د چترئ پشان ، او بيا ئې ووئيل : چه نمروز ته زما ضرورت نشته زه چه د نيمې شپې عبادت وکړم دا زما دپاره کافى کيږي ، نو داسې اختراعى مصلحتونه هغوي پريښې وو.

**دغه شان نورالدين زنګي رحمه الله**: د دهٔ يو وزير وو چه نوم ئې عمر بن ملّا وو او ډير قابل عالم وو ، د نور الدين زنګي رحمه الله په هغه باندې دومره زيات اعتماد وو ، چه دا به ئې ويل : چه څوک هم په يوه خبره باندې عمل کوئ نو د عمر بن ملّا نه به پوښتنه کوئ ، چه عمر بن ملا ئې توثيق او تائيد وکړي نو د هغې نه بعد به ئې عملى کوئ.

ددې عمر بن ملا يوے علاقې ته تشکيل اوشو ، او به هغه علاقې کې بغاوت ډير زيات وو ، نو دا واپس خط ليکي نور الدين زنګي رحمه الله ته ، چه په علاقه کې خو دغه شان خراب حالات دي، بغاوت پکې زيات دے ، نو ګرفتارئ پکې ډيرے پکار دي ، او که مونږ په بيابان ( خالى ميدان ) کې سړے ګرفتار کړو نو مونږ به د هغه دپاره د کوم ځائى نه ګواهان پيدا کوو ، نو هغه ورته په جواب کې ليکي چه د نوې تشريع او قانون سازئ نه تهٔ ځان اوساته، الله تعالىٰ چه زمونږ دپاره کوم شريعت نازل کړے دے نو هغه شريعت زمونږ دپاره کافى دے ، نو هغه بيا وائى : چه کله ما په هغه علاقه کې دغه کار شروع کړو نو اخري کې نتيجه دا را اووتله چه علاقه د نيکوکارو خلقو ځائى اوګرځيدو ، ټپله خلق نيک شو چه کله ما د الله تعالىٰ شريعت نافذ کړو ځکه چه د شريعت خپل برکات وي او مصلحتونو نه مې ځان وساتلو.

**دغه شان سيد قطب رحمه الله**: چه دا يو ښهٔ سړے وو ، خو د انسان نه غلطى کيږي کله کله خطا کيږي خو نور ډير انقلابى ذهن والا وو ، دا په خپل تفسير '' ظلال القرآن '' کې ليکى

: چه زه ديته حيران يم چه خلق عجيب عجيب مصلحتونه د غټو غټو مقاصدو دپاره جوړوي او په هغه لاره ورته ورځي او هغه غير شرعی لاره وي ، او دا وائی : چه پکار خو دا وه چه صفاء المنهج ، او صفاء المنبع ، او صفاء المنزل دا درې واړه وے ، چه لاره هم صفا او منبع هم صفا او مقصود هم صفا دا درے واړه پکار وو چه صفا وے ، خو لکن بعضی خلق داسې ذرائع استعمالوي چه هغه غلطې ذرائع وي ، بيا وائی : چه زه ديته حيران شم چه د يو سړی په ذهن کې غټ مقصد وی نو پکار ده چه دا د عظيم فکر والا انسان وي ، نو دده مقصد غټ دے او ذريعه ئی خرابه وي ، نو په غټ ذهن کې خراب فکر څنګه راغې ، **مثلاً** : زما په ذهن کې د اسلام د راوستلو سوچ او فکر دے ، نو دا غټه خبره ده ، نو زما غټ فکر دے غټ سوچ دے او بيا ددې غټ سوچ دپاره چه زه لاره د جمهوريت اختياروم نو دا زما ذهن ته څنګه راغله ، نو په پاک سوچونو کې پکار ده چه پاک سوچونه راغلې وے .

او دا بيا وائی : چه زه دا خبره کوم چه لاره دې ځکه صفا وي ، چه مثلاً : ته مسجد ته روان ئی او په لاره کې خَټې ، ډيرانونه ، او ګندګيانې دي نو چه ته پدې لاره باندې ځې نو ته چه کله خپل مقصد ته رسې نو ستا کپړے به دومره ګنده وي چه ته به د مونځ جوګه ( قابل) نې پاتې .

نو ته چه کله د جمهوريت په لاره ځان اسلام ته رسوے نو کله چه تهٔ مقصودی ځائی ته ورسې نو ستا په ذهن کې به دومره خلط ملط راغلې وي چه بيا به تهٔ د اسلام د تنفيذ په طريقه نه پوهيږے ، تهٔ بيا په هر څيز کې مصلحت مصلحت کوے ډير ښهٔ ښهٔ او غټ غټ خلق پدې لاره کې خطاء شوي دي . فتدبر !

نو کله چه په يو انسان کې د مصلحت پسندئ مرض راپيدا شو نو بيا دا انسان د الله د دين نه اړوي او د الله په دين باندې عمل هم نشی کولے نو مونږه او تاسو به د داسې قسمه مصلحتونو نه ځان ساتو او هر قسمه قربانی به ورکوو ، ان شاء الله .

د مصلحت د وجې نه نن عالم او خطيب د مسجد په محراب کې خوله نشی کولاوهلې ، د مصلحت د وجې نه په منبر باندې خوله نه کولاوهی ، د مصلحت د وجې نه توره نهٔ راخلی،

د مصلحت د وجې نه دا نشي ويلې چه جمهوري نظام دا د كفر نظام دے ، ځكه په خوله او ذهن باندې ئې د مصلحت مهر لګيدلې دے .

نو اصل خبره دا ده چه زمونږه په ذهنونو باندې د يرے زنځيرونه پراته دي ذهنى دباؤ شكار شوى يو چه كه داسې مې اووئيل نو جيل ته به لاړشم ، نو خير دې لاړ دې شى كنه ، د امام صاحب جنازه د جيل نه ونۀ وتله څۀ ؟ نو ستا جنازه دې هم د جيل نه راوځى كنه ، ليكن مصلحت نن صبا نور څه نشته دے خو صرف دا ده چه زه دې ژوندې پاتې شم ماته دې خير وى اصل كې زمونږه په زړونو كې هغه حقيقى عشق إلـٰهى نشته هسې په خولے باندې وايو نور عملاً تكاليفو او قربانئ وركولو ته تيار نۀ يو نو دا هغه مصلحت دے چه مونږه ئې ذكر كوو ، دې وجه نه عرب وائى : « تأس المتصلحون » مصلحت پسندئ والا هلاک شوى .

## د مصلحت پسندئ دوه شقونه دي:

١/ افراط فى الدين ، ٢/ تفريط فى الدين ، نو په يو باندې زمونږ نظر شته خو دا بل مو پريخودے دے .

**تفريط فى الدين** : يعنى په دين كې كمې كول ، مثلاً : يو سړے وائى : چه زۀ جهاد نه كوم ، ولى نه كوے ؟ وائى : ځكه چه مصلحت پسندى ده يعنى ما به حكومت جيل ته واچوى يا به زما كور وران كړى ، نو دا تفريط فى الدين دے .

**افراط فى الدين** : يعنى زياتې كول په دين كې ، ددې په باره كې مخكې واقعات د سلفو ذكر كړې شو .

خو په ديكې د شک ګرفتارئ او د شک قتلونه كول دا ټول داخل دي ، نو مونږه او تاسو به د شک كارونه نه كوو چه بس هر يو كس راګير كړو ، لكه حديث كې چه راځي : «**يُغْفَرُ لِلشَّهِيدِ كُلُّ ذَنْبٍ إِلَّا الدَّيْنَ**» [1] ” يعنى شهيد ته هر څه بخلې شى مګر قرض ورته نشى بخلې “ ،

---

[1] [ رواه مسلم ، رقم : ٣٤٩٨ ] .

نو پدي باندې سوچ کول پکار دي ، هسې نۀ چه شيطان مو دهوکه کړي چه بس شهيد به شم هر څه به راته معاف شي ، نو قرض شهيد ته هم نشي معاف کيدلے ، ددې وجه نه مشارع الاشواق کې ليکلي دي : چه په قرض کې ډير څيزونه داخليږي ، لکه د پيسو هم قرض دے ، قتل هم قرض دے ، کنزل هم قرض دے ، او غيبت کول هم قرض دے ، دا څلور واړه څيزونه په قرض کې داخل دي ، لکه مخکې د عمر بن عبدالعزيز رحمه الله واقعه تيره شوه ، دارنګه د نور الدين زنګي رحمه الله واقعه چه کومه مخکې تيره شوه .

دارنګه اقرار بالجبر کول ( يعنې د يو سړي نه د وهلو په زور سره اقرار اوباسيې ) نو دا په ټولو مذهبونو کې ندی ثابت ، ځکه وهل د يو سړي خامخا پدې باندې مجبوره کوي چه يو کار ئې ندې کړے خو بس د وهلو نه د بچاؤ دپاره هغه هم په ځان باندې اومنی .

نو افراط في الدين نه ځان ساتل پکار دي ، مصلحت پسندی مونږ په دغه ځائې کې کوو لکه مثلاً : که يو جاسوس زمونږ نه پاتې شو نو دا به دين ته نقصان ورسوی ، نو تۀ خو د الله د دين ټيهکدار خو نۀ ئې ، ځکه الله د خپل دين حفاظت په خپله باندې کوي ، چه الله تعالیٰ تاته څومره اجازت درکړے دے چه پدې دائره کې ئې راګير کړه نو بس تۀ به د هغه دائرې نه بهر نۀ وځی .

لکه د نبی کريم ﷺ په زمانه کې څومره منافقين وو ، لکه عبدالله بن ابی ابن سلول منافق موجود وو ، خو بيا هم رسول الله ﷺ ندې قتل کړے ، ابن حزم رحمه الله فرمائی : که چا دا خبره اوکړه چه نبی کريم ﷺ واجب القتل کسان ندي قتل کړی نو دا سړے مباح الدم دے ، واجب القتل دے ځکه نبی کريم ﷺ واجب القتل کسان قتل کړيدي ، نو سوال دا دے : چه عبدالله بن ابی ابن سلول خو غټ منافق وو دا ئې ولې ندے قتل کړے ؟ جواب: دا ئې ددې وجې نه ندې قتل چه په دې باندې ګواهان نه وو ، لکه " الصارم المسلول " کې شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله فرمائی : چه دا ئې ددې وجه نه ندې قتل کړے چه دۀ اسلام ظاهرولو ، د وحې په ذريعې سره نبی کريم ﷺ ته دا خبره معلومه وه چه دا ظالم منافق دے، خو اسلام دا لازمه کړيده چه ګواهان به وي ، او پدې منافق باندې ګواهان نۀ وو نو ددې وجه

نه ئې دا منافق نهٔ وو قتل کړے .

دا رنګه نبي کريم ﷺ هغه کسان هم ندی قتل کړی چه په قرآؤ پسې ئې خندا کوله، نو الله تعالیٰ اوويئيل : چه دا کافران شو ، لکن نبي کريم ﷺ هغوي قتل نهٔ کړل ؟ ځکه هغوي توبه اوويستله ، او بعضی کسان په هغوي کې منافقان هم وو خو ګواهان پرې نه وو ، نو ځکه نبي کريم ﷺ قتل نهٔ کړل .

دا رنګه د نبي کريم ﷺ په زمانه کې يوه ښځه راوستلې شوه چه هغې زنا کړے وه ، نو نبي کريم ﷺ هغې ته د اقرار په باره کې وعظ او وعيد بيان کړو ، نو هغه ديته تياره شوه چه هغه اقرار اوکړي نو ودريدله ، او دا ئې اوويئيله : چه زه خپل قوم نهٔ رسوا کوم پدې باندې ، نو اقرار ئې ونهٔ کړو نو نبي کريم ﷺ په هغې باندې حد جاري نهٔ کړو ، نبي کريم ﷺ بيا اوفرمائيل : چه که چرته ددې زنانه نه پدې شکل باندې ماشوم پيدا شو او هغه شکل ئې ظاهر کړو نو دا به بيا د فلانی سړی بچې وی کوم چه زنا کار وو ، او که داسې نه وو نو بيا به د خپل خاوند زوی وی ، نو کله چه ترينه ماشوم پيدا شو نو هغه د هغه زنا کار سړي په شکل باندې وو ، خو بيا هم نبي کريم ﷺ پرې حد جاري نهٔ کړو ، ځکه چه اقرار هغې نهٔ کولو ، او ګواهان پرې نهٔ وو موجود ، نو اقرار فی الجبر پرې نبي کريم ﷺ ونهٔ کړو .

نو په يوه مسئله او يو کار کې ګواهان پيدا کول دا ضروري خبره ده ، په شک کې د قتل نه ځان ساتل پکار دي .

نو چه دا څومره مشکوک قتلونه کيږي نو ددې وجې نه به جاسوسان نور هم زياتيږي ، ددې يوه غټه وجه دا هم ده چه : د الله تعالیٰ شريعت نشته ، ځکه د شريعت په نشتوالی سره هغه برکات به نه وي .

**۲/ وجه** : چه په مشکوک طريقې سره يو کس قتل کړے شو او هغه په حقيقت کې جاسوس نهٔ وو ، نو د هغه په ورور ، پلار ، ترهٔ وغيره کې انتقامي جذبه پيدا کيږي .

**٣/ وجه** : د هغه اصلي جاسوس عزم ( اراده ) هم مضبوط کیږي ، او د هغه سلسله نوره هم زیاتیږی ، ځکه چه که ته مشکوک کس قتل کړے او اصلي کس درنه پاتې شي ، نو هغه وائی : چه دا خو هسې هم ما نشی معلوموله ، کار څوک کوي او قتل کیږي پکې څوک ، نو د هغه عزم نور هم مضبوط شو چه بس رازه مړه خپل کار ښهٔ تیز کړه ، نور دا خو مسائل دي په خپل باب کې به راشی ، إن شاء الله تعالی .

❊❊❊❊❊

## مصلحت يا حكمت في الدعوه

یعنی د دعوت مصلحت لکه نن صبا زمانه کې پدې باندې ډیر زیات چیږ چاږ شروع شوے دے ، او ددې ډیر زیات نقصان هم دے ، نو د دعوت د مصلحت دپاره خلق مختلفې طریقې استعمالوي او هغه ټولے غیر شرعی طریقې وي ، حالانکه تاسو د ابراهیم علیه السلام دعوت اوکتلو چه کومه طریقه ئې خپل قوم ته دعوت ورکړے وو .

**د مصلحت في الدعوة دپاره مختلفې طریقې** :

**١/ منها** : لکه اوس خلق د اسلام د راوستلو دپاره جمهوري طریقه استعمالوی ، چه زه پارلمان ته ورځم نو د دعوت دپاره زه ورځم چه هلته حق خبره اوکړم ، نو اوس کار دې ښهٔ دے خو چه دا کومه لاره تا اختیار کړے دغه لاره غلطه ده .

**٢/ منها** : بعضی خلق د تقارب الادیان کانفرسونه کوي د دعوت د مصلحت دپاره ، د تقارب الادیان والا کوم کارونه کوي ؟ دوي وائی : چه دري دينونه دي ، ١/ دين اسلام دے ، ٢/ دين يهوديت دے ، ٣/ دين د نصرانيت دے ، نو دوي وائی : راځئ چه د دوي په مینځ کې چه کوم اختلافات دي چه هغه ختم کړو ، یا د اقوام متحده د قوانینو پشان قوانین جوړ کړو

چه د ټولو مذهبونو يو شان قانون وي ، نو دا د تقارب الاديان والا كار دے .

پدې كانفرسونو كې بعضې علماء هم مبتلا شويدي كه هغه د هرے وجه نه وی كه هغه د خواهشاتو د وجه نه وی ، او كه د مصلحت د وجه نه وی ، او كه په لاشعورى طريقې سره وی .

**٣/ منها** : ددېنه د جاهل پيرانو طريقې هم دي ، چه هغوي په كومه طريقه دا بندګي كوي، ډول به وهی ، رباب به وهي او بيا وائی : چه مونږ ذكر كوو ، نو دوي د مصلحت د دعوت دپاره دا طريقې استعمالوي .

**٤/ منها** : مداهنت في الدين ، بعضې خلق د مصلحت دپاره مداهنت فی الدين كوي ، په دين كې مداهنت شروع كړي ، حقه خبره به نه كوي خو بس شف شف به شروع كړي ، د دين بنياد الله تعالىٰ په نفی او اثبات باندې ايخي دے ، لكه لا إله إلا الله ، دين دا نه وائی : چه ته هم ښهٔ وائی ، او دا بل هم بد نه وائی ، نهٔ دا خبره په اسلام كې نشته ، نو دين د اولې ورځې نه مداهنت ندې كړے ، ابراهيم عليه السلام د اولې ورځې نه مداهنت نهٔ كوي ورته وائی : ﴿ إِنِّىٓ أَرَىٰكَ وَقَوْمَكَ فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴾ [1] ، موسىٰ عليه السلام د اولې ورځې نه مداهنت نه كوي ، ځكه فرعون ته وائی : ﴿ وَإِنِّى لَأَظُنُّكَ يَٰفِرْعَوْنُ مَثْبُورًا ﴾ [2]، داسې الفاظ د مداهنت فی الدين انبياؤ ندي كړي .

په ترمذي شريف كې يو حديث دے : چه كله تاسو ته په لاره كې يو مشرک راشی نو : «**فَاضْطَرُّوهُ إِلَى أَضْيَقِهِ**» [3] " دا په لاره كې هغه تنګ طرف ته محتاج كړه " دا كنايه ده د تكليف نه يعنى په لاره كې هم ورته تكليف وركړه ، ځكه چه دۀ ته دا احساس اوشى چه

---

[1] [ سورة الأنعام: ٧٤ ] .

[2] [ سورة الإسراء: ١٠٢ ] .

[3] [ رواه مسلم ، رقم : ٤٠٣٠ ، و الترمذي ، وغيرهم ] .

ما ولې ذليل كوی ، لکه د خالد بن وليد ﷺ واقعه خو به تاسو ته ياده وی چه هغه د بادشاه دربار ته سره د سورلئ نه ورننوتلو . . . الخ .

نو د مداهنت فى الدين نه ځان ساتل پکار دي ، ځکه کوم خلق چه مداهنت فى الدين کوي نو هغوي د خپل دين د اظهار نه شرميږي او يا يريږي .

لکه بعضى خلق به په دې موضوع کتاب وليکی چه اسلام په توره سره ندے راغلے ، نو تهٔ لږ فکر اوکړه چه خامخا کتاب ليکے نو بيا پدې موضوع باندې کتاب وليکه چه هميشه دپاره د اسلام دفاع په تورے سره شويده . فتدبر !!

**٥/ منها: ترک الفرائض لاجل مصلحة الدعوة** : لکه بعضى حضراتو ته اووئيل شى : چه تاسو دا جهاد ولې نه کوئ ؟ نو هغوي به وائى : که مونږ دا جهاد شروع کړو نو بيا زمونږ جماعتونه په امريکه کې نه پريږدي ، برطاينه وغيره ملکونو کې خو بيا مونږ دعوت نشو کولے ، نو دوي د غلط مصلحت دپاره فرضى عمل پريږدی او خپل مصلحت غوره کوی .

وباالله التوفيق .

* * * * * * *

## د مصلحت في الدعوة موضوع ( دويمه حصه )

**الحمد لله الذي انزل حكم الجهاد و فرض على العباد والصلاة والسلام على سيد ولد آدم محمد وآله واصحابه وسلم تسليماً كثيراً كثيراً ، امابعد :**

د مصلحت فى الدعوة خبره مخکنئ حصه کې څهٔ نا څهٔ اوکړې شوه چه خلق پدې مصلحت في الدعوت کې درے نقصانات کوي :

**١/ نقصان** : د غلطې طريقې استعمال کوي ، چه کوم ذرائع دي نو په هغې کې دا فرق نهٔ کوي چه دا ذريعه صحيح ده او کهٔ غلطه ده ، خو چه مقصد ته رسيږي نو وائی : چه بس دا خبره پکار ده .

**٢/ نقصان** : **مداهنت في الدين** کوي .

**٣/ نقصان** : **ترک الفرائض لاجل مصلحة الدعوة** ، دا خبرے مخکې ذکر کړې شوے ، نو دا نقصانات د مصلحت د وجه نه او مخکې مونږه د ابراهيم عليه السلام د عوت طريقه ذکر کړه چه هغه په خپل دعوت کې هيڅ قسمه مصلحتونه نوو کړي ، دغه شان مونږه د نبی کريم ﷺ طريقه ذکر کړه چه هغه د اولے ورځے نه مصلحت پريخودو او د لا إله إلا الله دعوت ئې ورته شروع کړو نو کله چه څوک په دعوت کې خپل مصلحتونه شروع کړي نو بيا د دهٔ نه ددې دوه حضراتو هغه دعوت طريقه هيره شی او خپلې مصلحتی طريقې پسې روان شی نو بيا دغه شان نقصانات راځی .

پدې حصه کې به مونږه د دعوت مصلحت ذکر کوو ، ځکه چه دعوت زمونږ کار دے نو ددې څهٔ مصلحت دے دا به ذکر کړې شی بفضل الله عزوجل .

دعوت درجه په درجه کول : نو د دعوت بهترينه طريقه الله تعالیٰ په قرآن کريم کې ذکر کړے ده ، چه حکايت کوي د رجل مؤمن نه ، الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَقَالَ رَجُلٌ مُّؤۡمِنٌ مِّنۡ ءَالِ فِرۡعَوۡنَ يَكۡتُمُ إِيمَٰنَهُۥٓ أَتَقۡتُلُونَ رَجُلًا أَن يَقُولَ رَبِّيَ ٱللَّهُ وَقَدۡ جَآءَكُم بِٱلۡبَيِّنَٰتِ مِن

رَبِّكُمۡ ﴾ [1].

اوس دې ځائې کې تدرج فی الانکار دے ، نو که تهٔ يو سړے د يو کار نه منع کوے نو درجه په درجه به ئې منع کوے يعنې دعوت کې تدرج کول .

نو پديکې "ظلال القرآن " ډيرے خې طريقې نقل کړي دي : هغه پدې آيت کې نهه 9 نکتې بيانوي : چه کله يو داعی بل چا ته دعوت ورکوي نو د هغې دپاره دا کارونه ضروري دي چه ددې داعی دعوت ښه اثر وکړي :

**١/ تدخيم المنكر** : داعی لره پکار دي چه کوم کار ګناهګار کوي نو هغه ګناه به هغهٔ ته غټه ښکاره کړے ، چه دا دومره غټ کار تهٔ کوے ، او داسې نور الفاظ چه په هغې باندې هغه کونکی ددې ګناه ته دا ګناه غټه ښکاره شي .

نو دې وجې نه مداهنت ختم شو چه تا په ړومبې ځل کې هغه ته دغه کار بد او قبيح ښکاره کړو ، لکه هغه الفاظ چه فرعون استعمال کړی وو : ﴿ ذَرُونِيٓ أَقۡتُلۡ مُوسَىٰ وَلۡيَدۡعُ رَبَّهُۥٓ ﴾ [2] " ما پريږدئ چه زه موسی قتل کړم او خپل رب دې راوغواړی " ، نو هغه ورته په جواب کې اووئيل : ﴿ أَتَقۡتُلُونَ رَجُلًا أَن يَقُولَ رَبِّيَ ٱللَّهُ ﴾ [3] " آيا تاسو يو سړے قتل کوئ پدې خبره چه هغه وائی : چه زما رب الله دے " ، نو قتل د انسان څومره غلطه خبره ده ، او بيا د يوے غلطې خبرې د وجه نه هغه يو حق طرفته دعوت ورکوي او هغه سره دلائل دي په خپله خبره باندې .

**٢/ نكته : تبيين ادلة الانكار** : بيان کول د دلائلو د انکار ، نو که ته دا ګناهګار انسان د هغه ګناه نه منع کوے ، نو که د هغه کار منکر وی نو د هغې به ورته بدي بيان کړې

---

[1] [ سورة غافر : ٢٨ ] .

[2] [ سورة غافر: ٢٦ ] .

[3] [ سورة غافر: ٢٨ ] .

، او كه د هغه كار نيک وى نو هغه به ورته ډير غټ ښكاره كړے چه دا خو ډير ښه كار دے ، نو بيا به ورته دلائل ذكر كوے ، دلته رجل مؤمن هم دليل بيانوي فرمائى : ﴿ وَقَدۡ جَآءَكُم بِٱلۡبَيِّنَٰتِ مِن رَّبِّكُمۡ ﴾ [1] " او يقينا راوړيدي تاسو ته دلائل د طرفه د رب ستاسو نه ".

**فائده** : دا دوره مونږ دديډ وجې نه هم كوو چه زمونږ چه كوم موقف دے كم از كم چه دا خپل موقف خو او پيژنو ، او دا چه بيا بل چاته بيانوو نو په كومه طريقه به ئى بل ته رسوو چه هغه طريقه هم وپيژنو .

**٣/ نكته : اِفْتِرَاضُ اَسْوَءِ الْفُرُوْضِ** : نو بيا به داعى په دريمه مرتبه كې دا كار اوكړي چه يو بد شى به فرض كړے ، مثلاً داسې به ووائى : چه يره دا سړے خو ډير بد كار كوي خو اوس دديډ دا مطلب شو ... وغيره نور الفاظ .

نو رجل مؤمن بيا وائى : ﴿ وَإِن يَكُ كَٰذِبٗا فَعَلَيۡهِ كَذِبُهُۥ ﴾ " كه بالفرض دا موسى عليه السلام دروغجن وي نو د درغو وبال به په هغه باندې وي " ، **يعنى كه دا دروغجن دے نو په تاسو خو دا لازم ندي چه بس دا به دروغجن ثابتوئ ، كه دا هر څه وي نو تاسو ته خو ئى دلائل راوړي دي كنه ، لكه ابراهيم عليه السلام چه خپل قوم ته وئيلى وو چه : « قال هذا ربى » نو هلته هم افتراض اسوء الفروض وو .**

**مثلا : ته د مجاهدينو په باره كې چاته دعوت وركوے نو هغه تاته ووائى : چه يره مجاهدين خو غلۀ دي او داسې نورے ډيرے عجيبه عجيبه پروپګنډے كوى كنه نن صبا ، نو تۀ به ورته په جواب كې ووائى : چه صحيح ده بالفرض مجاهدين غلۀ دي نو دوى چه كومې مطالبې كوى نو دا خو صحيح دي كنه ، او كه يو كار نيم پكې خطاء وى نو آيا دديډ دا مطلب شو چه زه به دا مشن پريږدم ؟ نو داسې به ورته ووائى لكه څرنګه چه رجل مؤمن ورته وئيلى دي.**

---

[1] [ سورة غافر: ٢٨ ].

**٤/ نكته : اِحْتِمَالُ صِدقُ الدّاعي** : اوس ته به هغه کس ته ووائی چه چاته دعوت ورکوے چه خه ستا شک دے چه یره دا سړے به دروغ وائی خو دا هم کیدیشی چه ریشتیا وائی ، ځکه ستا خو شک دے کنه تا سره خو پدې دروغو دلیل قطعی نشته چه دا دروغ وائی ، نو بیا ورته رجل مؤمن وائی : ﴿ وَإِن يَكُ صَادِقًا يُصِبْكُم بَعْضُ ٱلَّذِى يَعِدُكُمْ ﴾ " نو كه دا ريشتيني وي نو وبه رسيږي تاسو ته بعضي د هغه څه نه چه تاسو سره ئې وعده کوي " ، نو ديته احتمال د صدق الداعيَ وائی .

مثلاً : دغه سړی ته بیا ته ووائی چه یره ته وائی چه طالبان او مجاهدین په خپله دعویٰ کې دروغ وائی دوی صرف خپل اقتدار غواړی ، نو ته به ورته ووائی : چه یره ما خو لیدلی دي چه دوی اسلامی نظام غواړی ، خو زه ته وائی : چه دروغ وائی نو دا امکان خو لری چه دوی اسلامی نظام غواړی او پدې مسئله ورسره دلائل هم شته دے نو بیا ته ورسره ولې نۀ ملګرے کیږے ؟ نو پدې طریقه چه ورسره خبره کوے نو دا د حکمت طریقه ده او دا صحیح ده .

**٥/ نکته : التهديد العام غير المخصص** : يعنى ته به تهديد کوے د الله د عذاب نه به ئې یروے ، خو تهدید کې به داسې نۀ کوے چه هغه سړے ته مخاطب کړے يعنى داسې به ورته نۀ وائی چه تا به خدائی تباه کړي ، او تا به خدائی هلاک کړي وغیره ، نو که داسې کار دې شروع کړو نو هغه به ستا خبرے ته غوږ نۀ ګدی .

بلکه داسې به ورته ووائی لکه څرنګه چه رجل مؤمن ويلی وو : ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ كَذَّابٌ ﴾ [1] نو دلته رجل مؤمن ورته خاص تهديد ندے کړے ، بلکه عام جمله ئې استعماله کړے ده .

نو تۀ به بیا هغه سړی ته ووائی : چه ګوره الله تعالیٰ يو غلط او خراب انسان دې لارے ته نۀ راولی ځکه دا خو يوه صفا لاره او صفاء المنهج دے او پدیکې غلط سړے نۀ چلیږی .

---

[1] [ سورة غافر: ٢٨ ] .

**٦/ نكته : التذكير بنعم الله** : يعني د الله تعالىٰ نعمتونه به ورته بيان كړے ، رجل مؤمن ورته څهٔ وائی : ﴿ يَٰقَوۡمِ لَكُمُ ٱلۡمُلۡكُ ٱلۡيَوۡمَ ظَٰهِرِينَ فِي ٱلۡأَرۡضِ ﴾ [1] " اے زما قومه ! ستاسو دپاره بادشاهی ده او غالب ئی په زمکه کښ " ، نو که ته دعوت ورکوے ورته ووایه : چه په تا باندې الله څومره احسان کړے دے چه روغ بدن ئی درته درکړے دے مال ئي درکړے دے یا علم ئي درکړے دے او داسې نور نعمتونه به ورته بیان کړے او بیا به ورته ووائی : چه دا نعمتونه ولې بې ځایه استعمالوے ؟ راشه ددې شکر اداء کړه او د الله تعالىٰ عبادتونه شروع کړه او په زمکه باندې د الله قانون نافذولو دپاره هر ممکن کوشش شروع کړه ، فتدبر !!

**٧/ نكته : اظهار خوفه على قومه وتذكيره لهم بمصالح من قبله** : رجل مؤمن ورته د خپل طرف نه مشفقانه انداز کې وائی : ﴿ يَٰقَوۡمِ إِنِّيٓ أَخَافُ عَلَيۡكُم مِّثۡلَ يَوۡمِ ٱلۡأَحۡزَابِ ﴾ [2] "اے زما قومه ! زه یریږم په تاسو باندې چه د مخکنی قومونو پشان عذاب درباندې رانشی " ، زه خو ستاسو ملګرے یم داسې کار مهٔ کوئ .

**٨/ نكته : تخويف بيوم القيامة** : يعني اخروي تخويف او يره به ورته ورکړے ، لکه رجل مؤمن ورته د اُخروي یره په ناشنا انداز سره ورکوي ورته وائی : ﴿ وَيَٰقَوۡمِ إِنِّيٓ أَخَافُ عَلَيۡكُمۡ يَوۡمَ ٱلتَّنَادِ ﴾ [3] " اے زما قومه ! زه په تاسو باندې یریږم د قیامت د ورځې نه " او هغه ډیره سخته ورځ ده په هغه ورځ به ستاسو مددګار هم نهٔ وی .

**٩/ نكته : تذكير بحوادث المماثلة فى زمانهم** : بیا به ورته تذکیر په حوادث باندې ورکړے چه کوم حوادث مماثل وي ددې زماني سره ، لکه رجل مؤمن ورته مماثل حوادث بیانوي

---

[1] [ سورة غافر: ٢٩ ] .

[2] [ سورة غافر: ٣٠ ] .

[3] [ سورة غافر : ٣٢ ] .

لکه ورته وائی : ﴿ وَلَقَدْ جَآءَكُمْ يُوسُفُ مِن قَبْلُ بِٱلْبَيِّنَٰتِ فَمَا زِلْتُمْ فِى شَكٍّ مِّمَّا جَآءَكُم بِهِۦ ۖ حَتَّىٰٓ إِذَا هَلَكَ قُلْتُمْ لَن يَبْعَثَ ٱللَّهُ مِنۢ بَعْدِهِۦ رَسُولًا ۚ كَذَٰلِكَ يُضِلُّ ٱللَّهُ مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ مُّرْتَابٌ ﴿٣٤﴾ ﴾ [1] ، چه کورئ مخکې ددے نه خو یوسف علیه السلام وو هغه باندې هم ستاسو دا شک وو چه دا نبی ندے ، نو لږ سوچ وکړئ چه دغه شکیان خلق الله تعالیٰ مخکې هم هلاک کړی دي ، لکه نن چه ته چاته دعوت ورکوے نو تا ته به ووائی : چه دا طالبان خو د امریکې خلق دي یا داسې نور د کفارو ممالک به درته ذکر کړی ، نو ته به ورته ووائی : چه دا کوم خلق نن شهیدان شویدي تا خو د دوی په باره کې دا شک کولو چه دا د امریکې خلق دي او حال دا چه دا طالبان خو امریکې شهیدان کړل ، نو دا څنګه چل دے داسې خو نشی کیدے چه دا طالبان دې د امریکې خلق هم وي او بیا دې امریکه راپاخیږی او دا طالبان دې بیا شهیدان کوی ، نو الله فرمائی : ﴿ كَذَٰلِكَ يُضِلُّ ٱللَّهُ مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ مُّرْتَابٌ ﴾ .

نو کله چه دا نهه مرتبې ختمې شی نو بیا رجل مؤمن ورته په آخره کې عام نصیحت شروع کړې او ورته وائی : ﴿ يَٰقَوْمِ ٱتَّبِعُونِ أَهْدِكُمْ سَبِيلَ ٱلرَّشَادِ ﴿٣٨﴾ ﴾ [2] او بیا روسته ورته وائی : ﴿ وَيَٰقَوْمِ مَا لِىٓ أَدْعُوكُمْ إِلَى ٱلنَّجَوٰةِ وَتَدْعُونَنِىٓ إِلَى ٱلنَّارِ ﴿٤١﴾ ﴾ [3]

نو د اول سر نه ئې هم مداهنت ونۀ کړو او په آخره کې ئې هم د مداهنت نه ځان وساتلو او ناشنا دعوت ئې ورته ورکړو .

نو په دغه طریقې باندې دعوت ورکول دا صحیح دعوت دے ، او دې خلقو چه کومې

---

[1] [ سورة غافر: ٣٤ ] .

[2] [ سورة غافر : ٣٨ ] .

[3] [ سورة غافر: ٤١ ] .

غلطي طريقي راويستلی دي لکه مداهنت فی الدين او مختلفی غلطي طريقي استعمالول دا په دعوت کې صحيح ندي ، او ديته مصلحت فی الدعوت وائی ، او د دوی چه کومې طريقې اختياروی دغه مصلحت فی الدعوت ندي دا غلطے طريقې دي خو مونږه په اول کې اووئيل دا ټول نقصان د ميکياولی نه پيدا شوے دے او په علماؤ کې د عبدالخالق رحمانی نه دا د الجزائر مولا دے او دهٔ يو کتاب ليکلے دے " العمل السياسي والمسلمون " او بل کتاب " حكم المشاركة في مجلس الوزارة " نو ډير نقصان د دې کتابونو دے پديکې بس دغه دعوت دے چه مسلمانان دې پدې موجوده نظامونو او پارلمان ته دې ورشی او دا ورته جائز دي .

دا چه ذکر کړې شو نو دا د مصلحت پسندئ بحث وو ، اوس دې ځائی نه روسته دوه اعتراضات او د هغې جوابات کوو بيا دا بحث اختتام ته رسوو ، بفضل الله تعالیٰ و بتوفيقه .

**اول اعتراض** : تاسو دا خبره ډيره په تفصيل سره اوکړه چه مصلحت په شريعت کې ندے معتبر ، حالانکه نبی کريم ﷺ ام المؤمنين عائشې رضی الله عنها ته فرمائی : «**لولا حداثة قومك بالاسلام لهدمت الكعبة ، وجعلت لها بابين**» [1] " که چرته ستا دا قوم په اسلام کې تازه نوې داخل شوے نو ما به دا کعبه دوه دروازو والا ګرځولې وه " ، نو پدې حديث کې دا معلومه شوه چه نبی کريم ﷺ د کعبې دپاره دوه دروازے د مصلحت د وجې نه ونهٔ ګرځولې ؟ او تاسو وائی چه مصحلت پسندي په شريعت کې نده جائز ، نو دا جائز شوه او که نهٔ ؟

**١/ جواب** : مونږ دا خبره مخکې ذکر کړه چه هغه مصلحت ندي جائز چه کوم مصلحت شريعت نوی معتبر کړے ، او چه پدې حديث کې چه کوم مصلحت ذکر شو نو دا شارع کړے دے ، ځکه نبی کريم ﷺ شارع دے ، او هغې دا معتبر کړے دے دا خو مونږ هم منو.

**٢/ جواب** : مونږ دا خبره هم ذکر کړے وه چه هغه مصلحت به نهٔ اخلو کوم چه د نص سره معارض او مخالف راشی ، نو پدغه ځائی کې به مصلحت نهٔ اخلی ، او هر چه پدې حديث

[1] [ المعجم الأوسط للطبراني ، رقم : ٣٣٨٨ ] .

کې کومه خبره ذکر ده چه د کعبې دپاره دوه دروازے جوړول ، نو دا خو نۀ فرض دي ، نه واجب دي ، او نه سنت دی ، او مفتی رشید احمد رحمه الله په " احسن الفتاوی " کې لیکلی دي: چه د کعبې دپاره دوه دروازے جوړول پديکې سهولت دے په عبادت کې نو ددې سهولت د وجی نه مونږ دومره ویلی شو چه دا مستحب لغیره شو ، خو ددې نه علاوه مونږ دیته بله درجه نشو ورکولے ، او مونږ خو د هغه مصلحت مخالف یو چه هغه د نص په مقابله کې راشی .

علامه ابن تیمیه رحمه الله په باب د امر بالمعروف او نهی عن المنکر کې لیکی : چه د امر بالمعروف او نهی عن المنکر مدار په مصالحو او مفاسدو باندې دے ، نو ته به گورے چه پديکې مصلحت په کوم یو کې دے ، یا زیات مفاسد په کوم یو باندې رکاویږي ، نو د هغې بل جانب به کله کله به هغه حرام وی ، خو میزان د مصلحت او د مفاسدو دپاره به شریعت وي ، که شریعت هغه مصلحت مصلحت گنړلي وي ، که شریعت هغه مفسده مفسده گنړلی وی نو هغې لره به اعتبار ورکوے ، هم داسې اعتبار به نۀ ورکوے ، نو دغه سوال اوس ځوک نشی کولے ان شاء الله .

**دويم اعتراض**: خو دغه اعتراض نه مخکې دا عمومی قاعده یاده کړه چه : اخف الضررين او اهون البليتين څه ته وائی : نو دا دیته وائی چه ته مثلاً د دوه حرامو کارونو تر مینځ راګیر شوے، که یو کوے نو هم حرام دے ، او که بل کوے نو هم حرام دے ، نو شریعت تاته اجازه درکړي چه ته په پدې دواړو کې په هغه یو باندې عمل اوکړه چه د ضرر په اعتبار سره کم وي نو په هغه شی باندې عمل اوکړه ، نو دیته اخف الضررين او اهون البليتين وائی .

اوس راشه اعتراض ته هغه دادے : چه دا عمومی قاعده ده چه : اخف الضررين او اهون البليتين پدې باندې عمل کیږي ، لکه من جمله د دې نه مسئله د اکراه ده : چه په تا باندې چا توره کیخوده چه کلمه د کفر ووایه ورنه سر درنه قلم کوم ، نو اسلام تاته اجازه درکوي که ته کلمه د کفر په ژبې سره ووائی نو خیر دے ، البته کۀ نه وائی نو هغه ستا خوښه ده ؟ نو اخف الضررين کې دغه مسئله کوی ؟

**جواب**: نو په جواب کې خبره دا ده چه اخف الضررين او اهون البليتين لکه مثلا نن صبا دغه نام نهاد اسلامی ممالک شول چه په دوی کې دوه خبرے مونږه ته پاتې دي : یوه خبره دا ده چه مونږه دغه ممالک بغير اسلامه پرېږدو چه بس پدیکې دا اسلامی نظام نه نافذ کیږی ، او دویمه خبره دا ده : چه بغير اسلامه ئې پرې نکدو بلکه مونږه جمهوری لاره اختيار کړو ، چه مونږه په ما بين د دوه ضررونو کې راګير يو يعنی دوه مصيبتونو کې راګير يو نو چه په يو باندې عمل وکړو نو مونږه نه کافر کيږو ؟ نو ددې خبرے جواب دا دے : چه ګوره تاسو په دې لفظ کې ښځپله سوچ وکړئ چه دا لفظ څنګه دے چه سړے راګير شی په مابين د ضررينو کې او دريمه لار پکې نوی نو که چرته دريمه لار پديکې موجوده وے نو بيا تهٔ دريمه لار اختيار وے هله چه تا ته بلکل بله لار نه وی نو دغه اسلامی ممالک بلا اسلام پاتې کيدل يا جمهوريت دا دوه لارے ندی ددې نه علاوه دريمه لار شته دے چه دغه ممالک دې په اسلام سره شی ، او ورسره بله لار هم شته دے چه هغه د جهاد او د انقلاب لار ده نو تا ته په کوم ځائی کې لاره بنده شويده .

او که يو سړے ووائی : چه زه په حالت د اکراه کې يم ، نو د اکراه مسئله به روسته راشی خو دلته صرف دغه سوال به دفعه کوو ، نو په اکراه کې خپل شرائط دي چه من جمله د هغه شرائطو نه دا دي : چه يو خوف او خشيت دے او يو اکراه ده په اکراه کې تيقن شرط دے او خوف او خشيت خو ظنی شی دے چه کيديشی تهٔ راګير شی او دا هم کيديشی چه تهٔ راګير نشی او ستا دپاره بله لار هم موجوده وی چه ته لاړ شی او تيخته اوکړے او يا هجرت وکړے، داسی نبی کريم ﷺ نعوذ بالله په مکه مکرمه کې هم مکراه ګرځيدلې شو ، نو ستا دپاره بله لار شته دے په تا باندې دلته اکراه نشی متحقق کيدلے .

او په اکراه کې قدرت د سلطان هم شرط دے او دلته په تا باندې قدرت د سلطان نشته دے دا خو خوف او خشيت دے او دې باره کې الله تعالیٰ اعتبار ندے ورکړے لکه الله تعالیٰ

فرمائي : « **فَلَا تَخْشَوُا النَّاسَ وَاخْشَوْنِ** »[1] ، دا رنگه بل ځائې کې الله تعالیٰ فرمائي : « **فَلَا تَخَافُوْهُمْ وَخَافُوْنِ** »[2] ، او دا دغه خبره کوی چه مونږه په مصيبتينو کې راګير يو نو دغه بالکل راګير ندی .

**او که بالفرض** : که ته په مصيبتنو کې راګير ئې ، اګر چه مونږه ئې در سره نهٔ منو چه تر اوسه پورے ته به ضررينو کې راګير يئ ، که بالفرض مونږه ورسره دا هم ومنو چه تا ته تر اوسه پورے دغه لاره نوه کولاؤ شوے نو بيا هم نهٔ راګيريږی ځکه چه دغه ممالک دې بلا اسلامه پاتې وے خو چه تهٔ دې شرکي قانون ته نوے ورغلے ځکه هغه ستا دپاره دومره غټه خبره نده چه تا خپل انفرادی عمل خراب کړو او بل دا چه اوس خو پدې موجوده دور کې آواز اوشو کنه اوس ولے نهٔ اودريږے ؟ اوس خو ډير تحريکونه هم راوچت شول نو دغه خبره په اخف الضررين کې راوستل ندی .

خلق وائی : وائی کنه که دې پارلمان ته مونږه ورنشو او شرکت ورسره ونهٔ کړو نو فاسقان او فاجران به مشران شی نو مونږه هغوی ته ځائې خالی نهٔ پريږدو ، نو بيا خو داسې ډير د بې حيائي او د فحاشۍ ځايونه دي هلته هم ورشه کنه ، ځکه پارلمان خو ددينه ډير زيات ضرری دے دلته خو قوانين جوړيږی د خدائ توب صفت ئې په لاس کې اخستې دے دا خو غټ کفر دے ، نو دا دوه خبرے شوے .

نو د مصلحت د وجه نه دغه خبره کول او بيا د مصلحت د وجه نه د اغيارو معيارو نه اخستل مطلب يره جی مصلحت دے پدې موجوده تعليم او نصاب باندې مغرب دومره ترقی کړے ده نو مونږه له هم پکار ده چه مونږه هم دغه طريقه او طرز اختيار کړو نو دغه ټول قياس مع الفارق دے او غلط دے .

نو دغه نصابونه او نظامونه خو صحيح ده د مغرب دپاره به ترقی وی خو زمونږ دپاره

---

1) [ سورة المائدة : ٤٤ ] .

2) [ سورة آل عمران : ١٧٥ ] .

سراسر تاوان دے ، ته خو لږ سوچ اوکړه چه اسلامی ممالک په کوم ځائی کښې پراته دي او چرته دي نۀ مو دینی ترقی وکړه او نه دنیاوی ، نو د مسلمان د کامیابۍ دپاره هم هغه منهج دے چه کوم مونږه په اول کښې ذکر کړو چه هغه د قرآن علم او عمل دے او په هغې باندې عمل وکړی نو هله به کامیابیږی ، مثال په طور په سپلو ( پیزار ) پسې ګندګی ونخلی نو که هغه په زمکه باندې راکاږی نو صفا کیږی څه خبره پکښې نشته او که چرته په ټوپۍ پسې ګندګی ونخلی نو د ټوپۍ د صفائی طریقه خو دا نده چه دا هم په زمکه باندې راکاږے نو صفا به شی داسې نده بلکه د ټوپۍ د صفائی طریقه بدله ده هغه به په صفا اوبو او صابون سره صفا کوے ، نو د سپلو ( پیزار ) مثال د یهودو او نصاراؤ دے هغوی ښکته خلق دي د هغوی څه پرواه نشته دے ، او د ټوپۍ مثال د مسلمان دے او اسلام خو بره دے د هغه سره به د یهودو او د نصاراؤ والا کار نۀ کوے ځکه زمونږ ملت حنفی دے اوچت دین دے نو ددې دپاره یو قیمتی منهج پکار دے، نو بعضی خلق په قیاس مع الفارق کښې لګیا دي غلطو قیاساتو مونږه دې ځائی ته ورسولو چه مغرب په مونږ کښې په هری طریقې سره تسلط کړے دے نو ددې غلطے مصلحت پسندی د وجه نه .

او پاتې شوه د تعلیم خبره نو تعلیم مونږه له په داسې انداز پکار دے چه د مغرب نظریات ختم شی خیر دے دنیاوی تعلیم دې هم وی مغربی تجربه دې هم وی ، دارنګه دینی تعلیم هم قرآن، حدیث ، فقه ، او علم کلام دا خو ضروری دي خو ورسره ورسره دا خبره پکار ده چه د زړو فلاسفؤ لاره به صرف نه ذکر کوے بلکه موجوده دور کښې چه کوم نظریات او فتنے دي هغه به هم ته اوس په علم کلام کښې ذکر کوے چه یره سیکولر نظام رامخکښې شویدے درانګه جمهوریت شو کیمونیزم ، لیبرل ازم ، ماډرن ازم ، نیشنل ازم وغیره وغیره د دوی عقائد او نظریې څه دي ، مونږ خو په علم کلام کښې صرف هغه پخوانی معتزله ، خوارج او جهمیه وغیره ذکر کوو او پدې موجوده دور باندې نظر نۀ اچوو ، حالانکه دغه جهمیه او کرامیه اوس هم موجود دي خو صرف هغه شکلونه او نومونه ئې بدل دي ، که ته د علم کلام د استاذ نه تپوس وکړے چه استاذ کمونسټ او لیبرل ازم څه ته وائی تعریف ئې څه دے ؟ نو بیا دغه استاذ دا

نۀ پيژني ، حال دا چه اوس په ډير تعداد کې علماء شته دے خو بيا هم زمونږ پدې معاشره کې څوک کمونسټ شي څوک سيکولر شي ، څوک ليبر ازم شي ، څوک جمهوری شي آخر دا ولې ؟ ددې وجه نه مونږه ته په تعليمی نصاب کې لږه تبديلی پکار ده او د دعوت فکر پکار دے خو نن دا زمونږ نه مفقود ( ورک) شوے دے او دا ددې علماؤ د وجه نه چه دوی خپله اصلی فريضه پريخودلے ده چه بس زه لګير که فقير يم او زما صرف د کتاب سره کار دے .

دارنګه په مساجدو کې امامان شو ټول نۀ يادوو خو اکثر پکې دې هغوی هم د موجوده دور په تقاضاؤ باندې پوره ځان ندې پوهه کړے چه پدې دور کې مونږه نه د دين څه مطالبه ده او نۀ ورسره د اسلامی نظام د قائم کيدلو څه فکر شته ، او دا خبره به ډيره بعيده نوی که چرته تۀ ددې امامانو نه تپوس وکړے چه د خليفه د تقرر دپاره څه شرائط دي نو کيديشی چه دا هم ورته معلوم نوی ، مونږه ټول علماء او امامان نۀ يادو بلکه بعضی بعضی داسی شته دے ، نو پدې وقت کې مونږ دپاره په تعليمی نصاب کې لږه تبديلی پکار ده چه طالب العلم د مدرسې نه فارغ شی چه د هغۀ يو انقلابی سوچ او فکر وی او هغه د ټول تاريخ او سيرت نه خبر وی او د اسلامی نظام د نصاب نه پوره خبر وی چه د هغۀ دپاره بيا دعوت ورکوی او ددې اسلامی نظام د قائمولو دپاره خلق تياروی ، دا نۀ چه زه فارغ شوم پګړئ مې وتړلو او په يوه مدرسه کې به استاذ شم يا په يو مسجد کې به امام شم او بس وقت به تيروم ، نۀ نه داسې نده ، په مونږ باندې مغربی نظريات غالب شويدي او مغربي خلقو د خپلو نظرياتو دومره کوشش شروع کړے دے چه الله دې معافی وکړي د امت مسلمه په فرد فرد کې نن د هغوي نظريات پراته دي او تر اوسه پورے مونږه د خپل دين په نظرياتو باندې ځان ندے پوهه کړے نو بيا به د باطلو نظرياتو څۀ مقابله وکړو مونږ خو د هغي نه هم خبر نۀ يو، نو مونږ او تاسو له لږ سوچ او فکر پکار دے .          فتدبر أيها القارئ !!

وبالله التوفيق

❋❋❋❋❋❋

## د مصلحت پسندئ نقصانات

مخکې چه کوم نقصانات ذکر شويدي نو هغه د مصلحت فی الدعوت نقصانات وو ، اوس د مطلق مصلحت پسندئ څۀ نقصانات دی بعضی د هغې نه لږ ذکر کوو :

**١/ نقصان** : **التفريق بين العلم والعمل** : د علم او د عمل ترمينځ فرق راوستل ، مثلاً : ستا په علم کې يوه مسئله راغله او هغه ستا د مصلحت نه خلاف ده ، نو علم به دې هغه وي او عمل به دې د هغې په خلاف باندې وی ، ددې وجه نه چه ته به وائی چه دا خو د مصلحت سره ندې موافق ، لکه کتاب الحدود باندې زمونږ علم راغلې دے خو دغه کتاب الحدود په عملی انداز کې نشته دے ځکه چه خلق وائی چه دا د مصلحت خلاف وو ، دارنګه کتاب الجهاد دے د قدوري نه تر د بخاري پورے موجود دے ، او مونږ بار بار داخبره کوو چه علم د عمل دپاره کيږي خو لکن کتاب الجهاد باندې عمل نشته ځکه چه خلق وائی دا د مصحلت نه خلاف دے ، او دا تفريق راوستل د علم او عمل په مينځ کې دا د اسلام د مزاج سره مخالفه خبره ده ، ځکه د اسلام مزاج دا دے چه علم او عمل دې دواړه کيږي ، لکه الله تعالیٰ فرمائی: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لِمَ تَقُولُونَ مَا لَا تَفۡعَلُونَ ٢ ﴾ [1] " اے مؤمنانو ! تاسو ولی هغه خبرے کوئ چه په هغې باندې عمل نۀ کوئ " بيا وائی : ﴿ كَبُرَ مَقۡتًا عِندَ ٱللَّهِ أَن تَقُولُواْ مَا لَا تَفۡعَلُونَ ٣ ﴾ [2] " دا د الله په نيز باندې زياته د غوصې والا خبره ده چه تاسو وائی يوه خبره او کوئ بله خبره " ، دغه شان چه کومو خلقو په تورات باندې عمل اونۀ کړو د تورات احکامات ئې د دنيا د مصلحت د وجې نه بدل کړل نو الله تعالیٰ په هغوی باندې رد کوي او فرمائی : ﴿ وَلَا تَشۡتَرُواْ بِـَٔايَٰتِي ثَمَنٗا قَلِيلٗا ﴾ [3] ، بل ځائی کې ورته وائی : ﴿ وَلَا تَلۡبِسُواْ

---

[1] [ سورة الصف: ٢ ] .

[2] [ سورة الصف: ٣ ] .

[3] [ سورة البقرة: ٤١ ] .

ٱلۡحَقَّ بِٱلۡبَٰطِلِ وَتَكۡتُمُواْ ٱلۡحَقَّ وَأَنتُمۡ تَعۡلَمُونَ ﴿٤٢﴾ ﴾[1]، نو دوي دا كار د مصلحت پسندئ د وجې نه اوكړو.

د انسان عقل چونكه كامل او مستقل ندې په هدايت كې ځكه د انسان عقل لره په هدايت كې دخل شته دے، نو انسان په عقل سره هدايت حاصلولې شى خو د خارجى رنړا ضرورت ورته شته، ددې وجې نه الله تعالىٰ انبياء عليهم السلام او كتابونه راليږلى دي.

نو انسان چه مصلحت پسندى شروع كړى نو دا د عقل په تابعدارئ كې واقع شى او چه كله د عقل په تابعدارئ كې واقع شو نو عقل خو دده كامل او مستقل ندې نو احكام د شريعت ددۀ نه پاتى شى نو تفريق بين العلم والعمل په دغه ځائى كې راپيدا شى.

**٢/ نقصان: اتهام الشريعة بالنقص**: دويم نقصان چه د مصلحت پسندئ نه پيدا كيږي هغه د الله تعالىٰ شريعت په نقصان سره متهم كول دى، او د الله تعالىٰ شريعت كامل دے ځكه الله فرمائى: ﴿ ٱلۡيَوۡمَ أَكۡمَلۡتُ لَكُمۡ دِينَكُمۡ وَأَتۡمَمۡتُ عَلَيۡكُمۡ نِعۡمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ ٱلۡإِسۡلَٰمَ دِينٗا ﴾[2] " ما ستاسو دپاره دا دين كامل كړو او په تاسو مې خپل نعمت پوره كړو او راضى يم ستاسو دپاره صرف په دين اسلام باندې ( نه په بل دين ) ".

نو دلته الله تعالىٰ په شريعت باندې د كمال حكم ولګولو، او چه تۀ وائى چه زما مصلحت ته پكې ضرورت دے، او ته پكې خپل مصلحت ورداخلوے نو ګويا چه ته د الله تعالىٰ راليږلې شوے شريعت ناقص ګنړے.

ادله د شرعى هغه څلور دي: كتاب الله، سنة رسول الله ﷺ، اجماع، قياس، كه چرے مصلحت پسندى مونږ شروع كړو نو په شريعت كې چه حصر پدې څلورو څيزونو كې شوے دے نو دا به ختم شى او پنځم به پكې داخل شى د انسان خپل مصلحت.

---

[1] [ سورة البقرة: ٤٢ ].

[2] [ سورة المائدة: ٣ ].

لکه ته به د شخصیت پرستو خلقو نه دا خبره اورے چه د هغوي سره به د کتاب الله ، سنة رسول ، اجماع او قیاس نه ورسره دلیل نهٔ وی نو وائی چه دا زمونږ د فلانی صاحب رائی ده، نو دغه مصلحت ته پکښې ځانته یو جز ورکړي ، نو د الله شریعت کامل دے پدې ځلورو کې او دا پنځم څیز چه پکښې ورداخلوے نو دا د الله تعالیٰ شریعت ته په ناقص نظر باندې کتل دي .

**۳/ نقصان** : **التشريع من قِبَل نفسه** : دریم نقصان داده چه تشریع راځی ، چه سړے مصلحت پسندی شروع کړي نو دا د ځان نه شریعت جوړوي ، لکه د امام شافعی رحمه الله قول چه هغه فرمائی : «**من استصلح فقد شرع**» چا چه استحسان اوکړو نو ده د ځان نه شریعت جوړ کړو .

علامه موفق الدین عبدالله بن احمد بن محمد بن قدامه المقدسی رحمه الله چه د " المغنی " مؤلف دے ، او د حنابلؤ غټ عالم دے هغه وائی : چه مصلحت پسندی کول ددې مقصد دا دے چه د الله شریعت ناقص دے او دوی ته د ځان نه بل شریعت جوړوم .

دارنګه مخکې د نور الدین زنګی رحمه الله په واقعه کې هم دا خبره ذکر شوے ده .

نو دا تشریع من قبل نفسه کول دا شرک دے ، لکه قرآن کریم کې الله تعالیٰ فرمائی :

﴿ أَمْ لَهُمْ شُرَكَٰٓؤُاْ شَرَعُواْ لَهُم مِّنَ ٱلدِّينِ مَا لَمْ يَأْذَنۢ بِهِ ٱللَّهُ ﴾[1] " آیا دوي دپاره شریکان دي چه داسې دین ئې ورلره جوړ کړے دے چه د هغې په باره کې الله امر او اجازت ندې ورکړے ".

دغه شان الله تعالیٰ په یهودو او نصاراؤ باندې حکم ولګولو : ﴿ ٱتَّخَذُوٓاْ أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَٰنَهُمْ أَرْبَابًا مِّن دُونِ ٱللَّهِ ﴾[2] " دې یهودو او نصاراؤ خپل علماء خدایان نیولی

[1] [ سورة الشورى : ٢١ ] .

[2] [ سورة التوبة : ٣١ ] .

دی "، لکه په واقعه د عدی بن حاتم ﷺ کې به دا خبره راشی چه دوي عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ مونږ خو ددوي عبادت ندې کړے او نۀ مو ورته سجده لګولې وه ، نو رسول الله ﷺ ورته په جواب کې اووئیل : چه دوي به کوم څیز حلال کړو نو تاسو به حلال ګنړلو ، او هغوي چه به کوم شی حرام کړلو نو تاسو به حرام ګنړلو ، نو هغوي به په خپل مصلحت سره یو شی حلالولو او په خپل مصلحت سره به ئې یو شي حرامولو ، نو تحریف فی الدین به ئې د مصلحت په وجه کولو ، د الله تعالیٰ حکم به ئې منسوخ کولو د مصلحت په وجه لکه یهودو کې چه به یو مالدار سړی زنا اوکړه نو هغې ته به ئې حد نه ورکولو ځکه دوی به ویل : چه مصلحت دادے چه بس ددې مخ به تور کړے شی او په خر باندې ئې سور کړو ، او چه غریب به پکې زنا اوکړه نو ویل به ئې : چه د ده په باره کې مصلحت دادے چه پده باندې دې حد جاری کړے شی ، دا ئې ځکه ویل : چه مشرانو پدوی کې دغه بد عمل کولو نو دوي د هغی دپاره مصلحت شروع کړو .

٤/ نقصان : **تنسیخ بالعقل** : بل نقصان د مصلحت پسندئ هغه دا دے چه د الله جل جلاله احکامات په عقل سره منسوخ کول ، لکه پدې کتابونو کې دا خبره ذکر کیږي چه نسخ د قرآن په قرآن سره راځي ، لکه د قرآن کریم یو آیت ناسخ شی نو بل ئې منسوخ اوګرځی ، کله داسی اوشی چه نسخ د قرآن راشی په حدیث سره ، لکه د مؤلفة القلوب حصه دا په اول کې په غنیمت کې به ئې دویته حصه ورکوله ، نو دغه عمل چه کله اسلام قوی شو نو بیا دغه عمل منسوخ شو د وجی د حدیث نه ، او کله نسخ د حدیث راځی په قرآن سره ، لکه مسئله ده ظهار شوه : په جاهلیت کې دا طریقه وه چه یو سړی به خپلې ښځې ته اووئیل چه : «**انت عليّ كظهر امی**» نو نکاح به مکمل فسخ شوه ، نو الله تعالیٰ آیتونه نازل کړل ، چه چا ظهار اوکړو نو په هغې باندې به فدیه مقرر وي چه دا به فدیه ورکوي ، یا به غلام ازادوي ، یا به روژے نیسی دوه میاشتې پرله پسې ، او یا به ٦٠ مسکینانو ته روټئ ورکوي ، نو دیته وائی نسخ د حدیث په قرآن کریم سره .

كله د يو حديث دپاره ناسخ بل حديث اوګرځی ، خو داسې چرته هم ندی راغلی چه حديث يا قرآن دې په عقل سره منسوخ شی ، نو په عقل سره نسخ د قرآن او حديث دا ناروا ده ، نو چه كله سړی کې مصلحت پسندی راشی نو بيا هغه حديث او قرآن په عقل سره منسوخ كوي.

لكه بعضی خلق وائی چه جهاد بالسيف منسوخ دے د دعوت په آيتونو سره حالانكه تاسو د ابن جوزی تفسير او زاد المسير اوګورئ په هغې کې چه كوم ځائی کې د دعوت آيت وی نو هغه وائی : چه په تورے سره دغه آيت منسوخ شويدے « نسخت بأيت السيف » نو تفاسيرو خو دا ذكر كړيدے او ته ددې برعكس روان يې ، او خپل عقل استعمالوے نو دا ددې مصلحت پسندئ د وجه نه .

**۵/ نقصان** : چه شريعت متبع شی د خپل عقل هم دغه خبره ده چه اتباع د شريعت په ځائی باندې يعنی شريعت د خپل عقل تابع كوو چه زمونږ عقل څنګه غواړی نو هغه شان شريعت به غواړو ، لكه نن صبا چه خلق راوتے دي ، إن شاء الله په سيكولرزم کې به پوره تفصيل كوو ، نو دا خلق وائی چه يره اسلام دې داسی انداز سره شی چه زمونږه مصالحو سره ئې ټكراؤ او اختلاف ختم شی لكه د نيوارډر ( Neworder ) واله شريعت دے دارنګه اقوام متحده ځانته يو شريعت غواړی ، د تقارب الأديان كانفرسونو واله چه كوم شريعت غواړی دا ټول شريعت د ځان تابع كوی خپل ځان د شريعت نۀ تابع كوی او شريعت کې راغلی دی چه ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُواْ ٱلۡيَهُودَ وَٱلنَّصَٰرَىٰٓ أَوۡلِيَآءَۘ بَعۡضُهُمۡ أَوۡلِيَآءُ بَعۡضٖۚ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمۡ فَإِنَّهُۥ مِنۡهُمۡۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ٥١ ﴾[1] نو دوی پدې ځائی کې وائی چه نۀ دغه يهود او نصاریٰ ددې زمانې ندي مراد دا د هغه زمانې يهود او نصاریٰ مراد دي ، دارنګه ﴿ لَتَجِدَنَّ أَشَدَّ ٱلنَّاسِ عَدَٰوَةٗ لِّلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱلۡيَهُودَ وَٱلَّذِينَ أَشۡرَكُواْۖ وَلَتَجِدَنَّ أَقۡرَبَهُم مَّوَدَّةٗ لِّلَّذِينَ

---

[1] [ سورة المائدة : ٥١ ] .

ءَامَنُواْ ٱلَّذِينَ قَالُوٓاْ إِنَّا نَصَٰرَىٰۚ ذَٰلِكَ بِأَنَّ مِنۡهُمۡ قِسِّيسِينَ وَرُهۡبَانًا وَأَنَّهُمۡ لَا يَسۡتَكۡبِرُونَ ﴿٨٢﴾ ﴾[1] مونږه خو د یهودو سره دوستي نۀ کوو د نصاراؤ سره ئې کوو، دا قسمه تأویلات دا شریعت د خپل ځان تابع کول دي.

**٦/ نقصان**: باطل تأويلات کول: او په شریعت کې باطل تأويلات کول دا کفر دے، ددې وجه نه شاه انور شاه کشمیری رحمه الله پدې باندې یو کتاب لیکلې دے: "اکفار الملحدين والمتأولين في ضروريات الدين" او تأویل باطل دا ډیر نقصان ده څیز دے.

**٧/ نقصان**: **تحکیم بغیر ما انزل الله**: بل نقصان د مصلحت پسندئ هغه دا دے چه د الله په کتاب باندې فيصله نه کول او فيصله په بل څيز باندې کول، ځکه د الله تعالیٰ احکامات بیا دۀ ته مناسب نۀ ښکاري چه دا پرې فيصله اوکړي، لکه ملکانانو خپل متلونه جوړ کړي دي فيصلې بالامثال کوي، بادشاهانو خپل قوانين جوړ کړيدي په هغې باندې عمل کوي او فيصلې هم پرې کوي او د الله تعالیٰ قانون ئې ترک کړے دے، ددې تحکیم بغیر ما انزل الله مسئلې تفصيل به راشي ان شاء الله، دا صرف د مصلحت پسندئ د وجې نه.

نو دا د مصلحت پسندئ بعضې نقصانات وو چه کوم ذکر کړې شو او داسې نور هم ډير زيات دي که سړے ښکې سوچ او فکر اوکړي، نو پدې ځائې باندې د مصلحت پسندئ موضوع اختتام ته ورسيده.

بفضل الله وبتوفيقه.

******

[1] [ سورة المائدة : ٨٢ ].

## 4 / موضوع:

## منهج الدين منهج عالميٌّ لَا قومي

## قوم پرستئ موضوع: ( اوله حصه )

د دين منهج دا عالمی منهج دے دا قوميت منهج ندے د انبياؤ عليهم السلام دعوت هغه عالمی دعوت دے قومی دعوت ندے قوميت ته دعوت نه ورکوی او ديته مونږه په اردو او پښتو کې قوم پرستی وايو.

دا څلورمه موضوع ده او دا هم يو قسم طاغوت دے او رکاوټ دے په لاره د شريعت کې او هغه قوم پرستی ده ، نو ددينه ځان ساتل پکار دي ، که چرته تهٔ غواړے چه زهٔ دې په صحيح اسلام ، او صحيح دين باندې روان شم ، او خپل مقصد او هدف جهادی حاصل کړم نو په لاره کې به تاته يو رکاوټ راځي د قوم پرستئ ، لکه څرنګه چه د مصلحت پرستئ يو رکاوټ هم راتلو ، او څرنګه چه د شخصيت پرستئ يو رکاوټ راتلو نو دغه شان به لاره کې يو بل رکاوټ راځي چه هغې ته قوم پرستی وائی ، او دا هم په لاره کې يو پاټک دے چه تا د حق نه ودروي او حصاروي دې، نو دا پاټک به د منځ نه تهٔ لرے کوے نو هله به حق ته ورسيږے ، نو مونږ لره پکار دی چه ددې معلومات اوکړو چه دا قوم پرستی څهٔ شے دے ، په شريعت کې ددے څهٔ حکم دے ؟ نو دلته يو څو خبرے پيژندل پکار دی چه د هغې خلاصه داده :

**١/ خبره: د قوم پرستئ تعريف** دا ديته وائی : چه د حق او باطل نه قطعه نظر د قوميت تابعداری کوے ، يعنی حق او باطل ته نهٔ ګورے خو بس د قوميت تابعداری کوے .

نظرياتی خلق او يا مجاهدين په نورو طريقو سره دهوکه کيدل دا ډيره ګرانه خبره ده ، خو چه د قوم پرستئ هدوکې دے پکې راويستلو نو تفرقه ددې په منځ کې راتلل دا بيا ډيره آسانه خبره ده ، د افغانانو به ځانته ګروپ وي ، د پنجابی او پختون به ځانته ځانته ګروپ وي ، فارسی بان يا ازبک به ځانته ګروپ وی ، نو دا جدا والې په قوم پرستئ باندې راغلے ، نو دا خو صحيح ده چه د کفر په خلاف به په يوځائی باندې جنګيږي خو که چرته په غر باندې

جګړه راغله ، يا په قوميت باندې جګړه راغله نو هم دغه نظرياتي او مجاهد به بيا په رومبى صف کې ولاړ وى د خپل قوم د طرف نه ، نو ددې خبرو د ختميدو دپاره د ځان نه قوم پرستي ويستل پکار دی .

**/٢ خبره: قوميت په انسان کې ځنګه او ولې راځي** : په انسان کې د محبت ماده پرته ده ، ددې وجې نه فلاسفه وائی چه انسان مدنيُ الطبع دے ، دده په طبيعت کې اجتماعيت پروت دے دا ځانته وخت نشي تيرولې ، ددې وجې نه وائی : «**ما سُمِّيَ الْإِنْسَانُ إِلَّا لِأُنْسِهِ ، ولا القلب إلا لِأَنَّهُ يتقلبُ**» " انسان ددې وجې نه په انسان باندې مسمیٰ کړې شو چه پديکې اُنس (محبت ) پروت دے ، او دې زړۀ ته زړۀ ځکه وائی چه پديکې کې تقلب ( اوړی راؤړی) دے " ، ددې وجه نه نبی عليه السلام په دعاګانو کې فرمائی : «**اللَّهُمَّ مُصَرِّفَ الْقُلُوبِ صَرِّفْ قُلُوبَنَا عَلَى طَاعَتِكَ**»[1] «**يَا مُقَلِّبَ الْقُلُوبِ ثَبِّتْ قَلْبِي عَلَى دِينِكَ**»[2] ، دا ځکه وائی چه د انسان زړۀ اوړی راؤړی ، نو د انسان په زړه کې د محبت ماده پرته ده ، بيا د محبت دپاره خاخا مختلفې ذريعې وي ، کله د چا سره محبت د علم د وجې نه پيدا شی ، کله د چا سره محبت د حُسن د وجې نه پيدا شی ، کله د چا سره محبت د مال او دولت د وجې نه، او داسې نور ، خو ددې ټولو نه قوی ذريعه د محبت هغه اشتراک دے په وينه ( دم ) کې ، خو شريعت ددې اُنس ډير خيال ساتی ، د قوميت او قوم پرستۍ خيال دې نۀ ساتی چه ته په قوميت باندې اوجنګيږه ، ددې وجې نه صله رحمی شريعت لازمه ګرځولې ده ، قطعه د صله رحمی موجب د عذاب ګرځولې ده ، او که څوک قطعه د صله رحمی کوي نو پده باندې د الله تعالیٰ عذاب راځی ، او که صله رحمی کوی نو ددې په وجه بيا دۀ ته اجر او ثواب ميلاويږي ، لکه الله تعالیٰ د کفارو په باره کې فرمائی : ﴿ وَٱلَّذِينَ يَنقُضُونَ عَهۡدَ ٱللَّهِ مِنۢ بَعۡدِ مِيثَٰقِهِۦ وَيَقۡطَعُونَ مَآ أَمَرَ ٱللَّهُ بِهِۦٓ

---

[1] [ رواه مسلم ، رقم : ٤٧٩٨ ، و مسند عبد الحميد , رقم : 350 ] .

[2] [ رواه الترمذي ، رقم : ٢٠٦٦ ، ومسند أحمد ، رقم : ١١٦٦٤ ] .

أَن يُوصَلَ ﴾ [1] " دا كافران هغه كسان دي چه ماتوى وعدے د الله تعالیٰ روسته د مضبوط والی نه او پرې كوى هغه څۀ چه په هغې باندې الله تعالیٰ امر كړے دے د پيوست والی "، نو شريعت د دومره دائرے پورے د اُنس خيال ساتی ، دارنګه كه شريعت تاته د صدقې امر كوي نو فرمائی درته : ﴿ وَءَاتِ ذَا ٱلْقُرْبَىٰ حَقَّهُۥ ﴾ [2] " دې رشته دارانو ته دې وركړه ... " نو رشته دار درباندې اول مقدم كوي ، او دارنګه بيا درباندې د ګاونډی حق خيال ساتی او فرمائی : تر هغه وخت پورے يو كس په تاسو كې مؤمن نه شی كيدے چه په خپله باندې طعام اوخری او ګاندی اوږې اوده شی " ، او داسې نور ډير روايات چه په دې خبره دليل دے چه شريعت ستا د اُنس ډير خيال ساتی ، خو دا خبره ورسره ياده كړه چه د قوميت او قوم پرستئ خيال دې نۀ ساتی چه ته په قوميت باندې اوجنګيږه نو دا وجه شوه چه په انسان كې قوميت څنګه راځی .

**۳/ خبره: دا قوميت په انسانانو كې اول په چا كې پيدا شوې دې ، او د هغه څه انجام شو:**

نو قوميت اول په انسانانو كې د آدم عليه السلام په ځوی قابيل كې پيدا شوے دے ، قابيل د آدم عليه السلام په اولاد كې راځي ، ځكه چه د آدم عليه السلام د پيدائش نه بعد د عالَم ابتداء شروع شوه ، او په دې كې د نكاح عجيبه طريقه وه ، چه د آدم عليه السلام په يو ځل باندې يو هلک او يوه جينئ پيدا كيدل ، بيا به په بل ځل باندې هم دغه شان بل هلک او جينئ پيدا شوه ، نو پديكې به د نكاح طريقه دا وه : چه د اول ځل كې به كوم هلک پيدا شوے وو نو هغې ته به ئې د روستنئ چه كومه جينئ پيدا شوے وه هغه به ئې ورته په نكاح باندې وركړه ، او چه روسته به كوم هلک پيدا شوے وو نو هغې ته به ئې هغه جينئ په نكاح سره وركړه چه كومه به ددې هلک نه مخكې پيدا شوے وه ، نو دا طريقه د انسانی تخليق دپاره

---

[1] [ سورة الرعد : ۲۵ ] .

[2] [ سورة الإسراء: ۲٦ ] .

روانه وه ، نو پدې دوران کې الله تعالىٰ د آدم علیه السلام نه بچې پیدا کړو چه نوم ئې قابیل وو او ددې سره یوه خور ئې هم پیدا کړه ، بل طرف ته یو بل بچې پیدا شو چه نوم ئې هابیل وو او ورسره یوه جینئ هم پیدا شوه چه د هابیل خور وه ، نو هم هغه شان فیصله اوشوه چه د قابیل د خور سره به هابیل نکاح اوتړی ، او د قابیل نکاح به د هابیل د خور سره اوتړی ، نو قابیل ددې فیصلې نه انکار اوکړو ، ځکه قابیل اووئیل : چه زما خور خائسته ده او د هابیل خور بدرنګه یعنی خائسته نده ، نو زۀ هابیل ته خور نۀ ورکوم ، نو ده چه دا خبره اوکړه نو دا یو قسم ته قومیت ئې اوکړو ، نو بیا دوی خپل مینځ کې بحث وکړو او فیصله ئې په یوه صدقه وکړه چه د چا نه قبوله شوه نو بس هغه به په حقه وی نو بیا د هابیل نه قبوله شوه او د قابیل صدقه قبوله نشوه ، نو بالآخر قابیل خپل ورور هابیل قتل کړو ، او دا ړومبنې د فتنې جنګ وو چه قابیل راپورته کړے وو ، ددې وجې نه رسول الله ﷺ فرمائی : چه په مخ د زمکه باندې چه څومره هم ناحقه قتلونه کیږي نو په هغې کې د قابیل حصه ده ، او ړومبنې هغه کس چه د فتنې جنګ چه کوم اصول دی هغه ئې خپل کړی دی نو هغه هابیل دے ، ځکه هابیل ورته اووئیل ، چه الله تعالىٰ د هغې نه حکایت نقل کوي فرمائی : ﴿ لَئِنۢ بَسَطتَ إِلَيَّ يَدَكَ لِتَقۡتُلَنِي مَآ أَنَا۠ بِبَاسِطٖ يَدِيَ إِلَيۡكَ لِأَقۡتُلَكَۖ إِنِّيٓ أَخَافُ ٱللَّهَ رَبَّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ۝٢٨ ﴾ [1] " اے وروره ! که چرته تۀ ماته لاس را اوږد کړے چه ما قتل کړے نو زۀ نه یم اوږدونکې د لاس خپل تاته چه زۀ تا قتل کړم ځکه چه زۀ د الله نه یریږم چه رب د ټولو عالَم دے " ، نو په قابیل باندې نفسانی خواهشات راپورته شول : ﴿ فَطَوَّعَتۡ لَهُۥ نَفۡسُهُۥ قَتۡلَ أَخِيهِ فَقَتَلَهُۥ فَأَصۡبَحَ مِنَ ٱلۡخَٰسِرِينَ ۝٣٠ ﴾ [2] ، نو خپل ورور ئې قتل کړو .

نو پدې واقعه کې قابیل ړومبنې هغه کس دے چه دۀ د قومیت فتنه راپورته کړے وه ،

---

[1] [ سورة المائدة: ٢٨ ] .

[2] [ سورة المائدة: ٣٠ ] .

او هابيل ړومبني هغه كس دے چه دۀ د فتنې جواب په دغه انداز كې وركړے دے ، نو دا طرز او طريقه بيا شروع شوه را روانه وه حتى چه فرعون ته راورسيده چه دا بيا غټ قوم پرست انسان وو ، فرعون د موسیٰ عليه السلام قوم بنى اسرائيل ټول د خپل قوم خادمان اوګرځول ، د قوميت په وجه باندې نو دا غټ قوم پرست انسان وو ، نو د قوميت دعوت چلونكى دا د فرعون په لاره باندې روان دى ، د هغې نه بعد بيا ابو جهل ته خبره راورسيده ، بيا دا غټ قوم پرست انسان اوګرځيدو ، د ابو جهل نه اخنس بن شريق[1] تپوس اوكړو چه تۀ په محمد رسول الله ﷺ باندې ولې ايمان نۀ راوړے ، آيا پيغمبر عليه السلام په حقه باندې ندے ؟ نو ابو جهل ګيرچاپيره اوكتل ، چه څوک خو نشته ، او وې ويل : چه دا محمد ( ﷺ ) بنۀ په حقه باندې دے خو چه كله هم ددې قوم يوه دعوه كړے ده نو مونږ د هغې مخالفت كړے دے ، نو ددې به خامخا زۀ مخالفت كوم ، نو دا ابو جهل غټ قوم پرست انسان وو او په قوميت باندې هلاک هم شو ، نو د قوميت بنياد د دغه ځائى نه راشروع شو .

**اعتراض** : بعضى خلق پدې ځائى كې يو اعتراض كوى : چه تاسو خو دا خبره كوئ چه قوميت د انبياؤ عليهم السلام منهج ندے ، نو ستاسو دا خبره غلطه ده ، ځكه موسیٰ عليه السلام چه كله اولنې دعوت قوم ته وركوى نو په هغې كې ورته دا وائى : ﴿ أَنْ أَرْسِلْ مَعَنَا بَنِيٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ﴿١٧﴾ ﴾[2] " ما سره بنى اسرائيل اوليږه " نو دې خو د خپل قوم دفاع اوكړه ، دارنګه: چه كله د قبطى او د بنى اسرائيلى جنګ وو ، چه قرآن كريم هغه واقعه تفصيلى بيان كړيده ، چه بنى اسرائيلى موسیٰ عليه السلام ته آواز اوكړو چه دا قبطى په ما باندې ظلم كوى ، نو موسیٰ عليه السلام هغه قبطى لره يو سُوک (بوكس) وركړو نو هغه قبطى مړ شو ، نو اوګوره وائى : دلته موسیٰ عليه السلام د خپل قومى دفاع اوكړه ؟

---

1 [ ابن كثير : ٤ / ١٥١ ، قديمى كتب خانه ] .

2 [ سورة الشعراء : ١٧ ] .

**جواب** : هر چه موسیٰ علیه السلام دا عمل کړے دے نو دا د مظلوم سره مدد کول دی ، ځکه بنی اسرائیلو باندې فرعونیانو ظلمونه کول نو موسیٰ علیه السلام د هغوی مدد کول اوغوښتل ځکه ورته وائی : چه ماسره بنی اسرائیل اولیږه ، او هر چه هغه قبطی ئی وهلی دے نو هغه ئی هم د مظلوم سره مدد کول وو ، دا ئی مقصد نهٔ وو چه دا قبطی قتل کړی بلکه هغه بنی اسرائیلی ترے خلاصولو ، لکه قرآن کریم دا خبره بیان کړیده چه بیا موسیٰ علیه السلام په بل وخت کې هغه خپل بنی اسرائیلی ته غصه شوے وو ، نو د موسیٰ علیه السلام مقصد اعانت د مظلوم وو .

لکه اوګوره : چه قارون خو د موسیٰ علیه السلام قومی وو خو موسیٰ علیه السلام د هغې خلاف وو ، دغه شان د سامرے هم د موسیٰ علیه السلام قومی وو ، دغه شان اوګوره : چه کله د موسیٰ علیه السلام قوم دا خبره اوکړه چه مونږ لره هم یو إلٰه مقرر کړه لکه چه څرنګه دې خلقو لره دے ، نو موسیٰ علیه السلام ورته وائی : ﴿إِنَّكُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُونَ﴾ [1] نو موسیٰ علیه السلام ورته په قوم باندې زورنه ورکړه چه تاسو خو یو جاهل قوم یې ، هم دغه بنی اسرائیل د موسیٰ علیه السلام قوم وو چه کله ورته موسیٰ علیه السلام اووئیل : چه ځانونه قتل کړئ ځکه ستاسو توبه دا ده ، چه کومو کسانو دا ګناه کړے وه نو هغوی ځانونه قتل کړل ، نو دا خو هم د موسیٰ علیه السلام قوم وو بیا ئی ورته ولې داسې سخت حکم کولو ، نو که چرته موسیٰ علیه السلام کې قومیت ماده پرته وے نو بیا ئی خپل قوم ته ولې ضرر ورکولو او نقصانات ئی ورته ولې رسول ، او داسې نور ډیر مثالونه دي په قرآن کریم کې ، نو موسیٰ علیه السلام د قومیت نعره او آواز دنیا ته نهٔ وو راوړے ، نو دا دهغه شبهې جواب شو .

---

[1] [ سورة الأعراف : ١٣٨ ] .

**٤/ خبره: د قوميت په باره كې ردونه د قرآن او احاديثو نه** : نوح عليه السلام چه كله الله تعالىٰ ته وائی : چه يا الله تا خو ماسره وعده كړے وه چه ستا اهل نه هلاكوم ، كنعان خو زما د اهل نه وو ؟ نو الله تعالىٰ ورته فرمائی : ﴿ إِنَّهُۥ لَيۡسَ مِنۡ أَهۡلِكَۖ إِنَّهُۥ عَمَلٌ غَيۡرُ صَٰلِحٖۖ فَلَا تَسۡـَٔلۡنِ مَا لَيۡسَ لَكَ بِهِۦ عِلۡمٌۖ إِنِّيٓ أَعِظُكَ أَن تَكُونَ مِنَ ٱلۡجَٰهِلِينَ ٤٦ ﴾ [1] نو بيا نوح عليه السلام فوراً دا خبره اوكړه : ﴿ قَالَ رَبِّ إِنِّيٓ أَعُوذُ بِكَ أَنۡ أَسۡـَٔلَكَ مَا لَيۡسَ لِي بِهِۦ عِلۡمٌۖ ﴾ [2] " يا الله! زه پناه غواړم په تاسره ددې خبرے چه زهٔ سوال اوكړم د هغه څهٔ چه ماسره د هغې علم نه وی" ، نو الله ورته اووئيل : چه كنعان ستا د اهل نه نهٔ وو ، ځكه اهليت په عمل صالح باندې دے ، او په كنعان كې عمل صالح نه وو ، نو دا د الله تعالىٰ هغه احكامات چه د انبياؤ عليهم السلام منهج وو چه ډارك د قوميت رد ئی كړے دے .

دغه شان د لوط عليه السلام ښځه كافره وه ، نو الله تعالىٰ هلاكه كړه ، د ابراهيم عليه السلام پلار كافر وو ، نو الله هلاك كړو ، او قوميت ورته هيڅ فائده ورنهٔ كړه ، نو قوميت چاته فائده نهٔ وركوی .

**٥/ خبره: د قوميت دعوه په لاره د دعوت كې روكاوټ نشی جوړيدلې** : الله تعالىٰ د ابراهيم عليه السلام په باره كې فرمائی : ﴿ قَدۡ كَانَتۡ لَكُمۡ أُسۡوَةٌ حَسَنَةٞ فِيٓ إِبۡرَٰهِيمَ وَٱلَّذِينَ مَعَهُۥٓ إِذۡ قَالُواْ لِقَوۡمِهِمۡ إِنَّا بُرَءَٰٓؤُاْ مِنكُمۡ وَمِمَّا تَعۡبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ كَفَرۡنَا بِكُمۡ وَبَدَا بَيۡنَنَا وَبَيۡنَكُمُ ٱلۡعَدَٰوَةُ وَٱلۡبَغۡضَآءُ أَبَدًا حَتَّىٰ تُؤۡمِنُواْ بِٱللَّهِ وَحۡدَهُۥٓ إِلَّا قَوۡلَ إِبۡرَٰهِيمَ لِأَبِيهِ لَأَسۡتَغۡفِرَنَّ لَكَ وَمَآ أَمۡلِكُ لَكَ مِنَ ٱللَّهِ مِن شَيۡءٖۖ ﴾ [3]

---

1 [ سورة هود : ٤٦ ] .

2 [ سورة هود : ٤٧ ] .

3 [ سورة الممتحنة : ٤ ] .

نو پدي ځائی کې الله تعالیٰ منهج د دعوت ابراهیمی بیانوی ، چه د ابراهیم علیه السلام د دعوت څهٔ منهج او څهٔ طرز او طریقه وه نو هغه الله تعالیٰ بیانوی ، د ابراهیم علیه السلام د دعوت طریقه دا وه : چه نمرود د ابراهیم علیه السلام قومی سړے دے ، د نمرود ټول قوم دا د ابراهیم علیه السلام قومی خلق دی ، او پلار ئی بخپله پدغه ملت کفری باندې متدین دے، خو لیکن ابراهیم علیه السلام د قومیت آواز نهٔ لګوی ، بلکه وائی : " کله چه ااووئیل دې ابراهیم علیه السلام او ددې ملګرو خپل قوم ته چه مونږ د تاسو نه بری یو او د هغه معبودانو نه بری یو چه د کومو تاسو عبادت کوئ سوا د الله تعالیٰ نه ، ( بیا ورته درې خبرے کوی ) مونږ په تاسو باندې کفر کوو (یعنی ستاسو د عقیدے نه مونږ انکار کوو ، ځکه چه قوم ئی په باطل باندې ) ( بل ورته وائي ) او زمونږ او ستاسو په مابین کې به دشمنی وی ، ( ځکه چه موجب د الفت او محبت دا قومیت ندے بلکه موجب د الفت او محبت هغه حقانیت دے او هغه په تاسو کې نشته نو ځکه درسره دشمنی کوم ) ( بل ورته دا وائی ) بغض به وی نو دا باطنی شو ، ( نو ظاهر او باطن به د الله دپاره د چا سره په دشمنئ کې یو برابر ساتې یعنی باطل سره به ظاهری او باطنی رواړه قسمه دشمنی ساتے ) ( صرف پلارته ئی دومره قدرے ویلی دی) چه زه به ستا دپاره د الله نه بخنه غواړم ، ( نو الله وائی : ﴿ إِلَّا قَوْلَ إِبْرَٰهِيمَ لِأَبِيهِ لَأَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ ﴾[1] ) نو دا قول د ابراهیم علیه السلام به نهٔ اخلی ، (چه پلار ته ئی کومه خبره کړے وه چه ستا دپاره به بخنه غواړم ) ، او چه کله ابراهیم علیه السلام ته پته اولګیدله چه د کافر دپاره استغفار کول دا ناروا دی ، او پلار خو ئې کافر وو نو بیا ئی ترینه تبری ( بیزاری ) اختیار کړه .

بل دا چه ابراهیم علیه السلام خپل پلار ته وائی : ﴿ إِنِّيٓ أَرَىٰكَ وَقَوْمَكَ فِي ضَلَٰلٍ

[1] [ سورة الممتحنة : ٤ ] .

مُّبِينٍ ﴾[1] دلته ابراهيم علیه السلام خپل پلار ته کم انداز بیان کړے دے ورته وائی : « إِنِّيٓ أَرَىٰكَ » "چه زه تا وینم" ، نو په قومیت کې د ټولو نه قریب قومیت د پلار سره وی ، نو خپل پلار ته وائی چه ته خو په ضلال مبین باندې ئی ، دویم انداز : ورته وائی : « وَقَوْمَكَ » " او ستا قوم" دلته ورته وقومی نه وائی حالانکه په دعوت کې ورته وائی : « **یاقومی** » " اے زما قومه!" لکن دې ځائی کې ورته وائی « وَقَوْمَكَ » ځکه چه دا ستا په صفاتو باندې متصف دی دا خلق ، او ته د هغوی په صفاتو باندې متصف ئی نو ستاسو عقیده یوه ده نو پدې وجه ئی ورته خپل قوم ندے ویلې بلکه وقومک ئی ورته اووئیل ، نو دا د ابراهیم علیه السلام طریقه د دعوت وه ، عجیبه د حکمت والا دعوت دے ، لکه اکثر خلق وائی چه مونږ دعوت ورکوو نو د دعوت دپاره خو مختلفې طریقې دی د ابراهیم علیه السلام نه د دعوت طریقه یاده کړه .

بیا هم دغه ابراهیم علیه السلام دے چه دده سره اسلام نه منی او خلاف ترینه کوي نو ابراهیم علیه السلام ورته وائی : ﴿ إِنِّي مُهَاجِرٌ إِلَىٰ رَبِّيٓ ﴾[2] " زه ستاسو نه هجرت کومه خپل رب طرف ته" ، نو دا ابراهیم علیه السلام دے چه خپل قوم پریږدی او هجرت ترینه کوی ،

او دغه ابراهیم علیه السلام دے چه د قومیت بوت ئی مات کړے دے ، چه کله ورته الله تعالیٰ امر اوکړو چه خپل بچې او اهل دې مکې ته بوزه هغه بوزی او په شړه دشته کې ئی یواځې پریږدي ، چه اسماعیل علیه السلام او د هغه والده محترمه ده ، نو د قومیت پرواه نهٔ کوی او اهل په خالی میدان کې پریږدی .

هم دغه ابراهیم علیه السلام دے چه الله تعالیٰ ورته فرمائی : چه ته خپل ځوی ذبحه کړه

---

[1] [ سورة الأنعام : ٧٤ ] .

[2] [ سورة العنكبوت : ٢٦ ] .

اسماعیل علیه السلام ، نو خپل ځوی ته وائی : ﴿ إِنِّيٓ أَرَىٰ فِي ٱلۡمَنَامِ أَنِّيٓ أَذۡبَحُكَ فَٱنظُرۡ مَاذَا تَرَىٰۚ ﴾ [1] " اے بچیه ! ما خو په خوب کې لیدلي ئی چه زه تا ذبحه کومه نو ستا څۀ خوښه ده " ، نو اسماعیل علیه السلام ورته په جواب کې فرمائی : ﴿ قَالَ يَٰٓأَبَتِ ٱفۡعَلۡ مَا تُؤۡمَرُۖ سَتَجِدُنِيٓ إِن شَآءَ ٱللَّهُ مِنَ ٱلصَّٰبِرِينَ ١٠٢ ﴾ " اے زما پلاره ! اوکړه ته هغه چه تاته پرې امر کیږي ، نو زر دے چه وبه وینې مالره که الله تعالیٰ اوغواړی د صبر کونکو نه " ، اولنی انسان چه خپل قوم او د خپل زړۀ ټکړه چه بچي دے ، لکه چه امام شافعی رحمه الله فرمائی : چه ثمرة القلب ده ، او هغه په خپله باندې بوزی او پخپله پرې چاړه ایږدی ځکه د الله تعالیٰ امر چه راشی نو قومیت او اهل به ترینه قربانه وي ، نو بیا ورته الله فرمائی :

﴿ وَنَٰدَيۡنَٰهُ أَن يَٰٓإِبۡرَٰهِيمُ ١٠٤ قَدۡ صَدَّقۡتَ ٱلرُّءۡيَآۚ إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجۡزِي ٱلۡمُحۡسِنِينَ ١٠٥ إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ ٱلۡبَلَٰٓؤُاْ ٱلۡمُبِينُ ١٠٦ ﴾ [2] " مونږ ورته آواز اوکړو چه اے ابراهیم خوب دې ریشتیا کړو دغه شان بدله ورکوو مونږ نیکانو خلقو ته ، یقیناً دا خو امتحان وو ښکاره " ، نو ددې امتحان د پاس کیدو غټه وجه هم دا وه چه ابراهیم علیه السلام د قومیت بوت ماتولو په هر ځائی کې، نو دا وو د ابراهیم علیه السلام منهج او د دعوت طریقه چه تا اوپیژندله ، او دا د ټولو انبیاؤ علیهم السلام انداز وو .

لکه نوح علیه السلام چه خپل قوم ته اوکتل چه ایمان نۀ راوړی نو وې ویل : ﴿ قَالَ نُوحٞ رَّبِّ إِنَّهُمۡ عَصَوۡنِي وَٱتَّبَعُواْ مَن لَّمۡ يَزِدۡهُ مَالُهُۥ وَوَلَدُهُۥٓ إِلَّا خَسَارٗا ٢١ وَمَكَرُواْ مَكۡرٗا كُبَّارٗا ٢٢ وَقَالُواْ لَا تَذَرُنَّ ءَالِهَتَكُمۡ وَلَا تَذَرُنَّ وَدّٗا وَلَا سُوَاعٗا وَلَا يَغُوثَ وَيَعُوقَ وَنَسۡرٗا ٢٣ وَقَدۡ أَضَلُّواْ كَثِيرٗاۖ وَلَا تَزِدِ ٱلظَّٰلِمِينَ إِلَّا

---

1) [ سورة الصافات : ١٠٢ ] .

2) [ سورة الصافات: ١٠٤ - ١٠٦ ] .

ضَلَـٰلًا ﴿٢٤﴾ ﴾ [1] .

بيا په آخره كې وائى : ﴿ وَقَالَ نُوحٌ رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى ٱلْأَرْضِ مِنَ ٱلْكَـٰفِرِينَ دَيَّارًا ﴿٢٦﴾ إِنَّكَ إِن تَذَرْهُمْ يُضِلُّوا۟ عِبَادَكَ وَلَا يَلِدُوٓا۟ إِلَّا فَاجِرًا كَفَّارًا ﴿٢٧﴾ ﴾ [2] ، داسې نه وائى : چه لاتذر على الارض غير قومى ديارا ، يا الله پدې زمكه باندې د كافرانو نه يو كس هم پرې نه دې ، نو نوح عليه السلام د خپل قوم خلاف بد دعا شروع كړه .

**دارنګه** : ابراهيم عليه السلام دے چه دعاء كوي ، چه كله ورته الله اووئيل : چه تا د خلقو دپاره امام اوګرځوم نو هغه دعاء كوى چه يا الله تعالىٰ زما په اولاد كې هم امامان جوړ كړه ، نو الله ورته فرمائى : ﴿ لَا يَنَالُ عَهْدِى ٱلظَّـٰلِمِينَ ﴾ [3] ، كه ستا په اولاد كې كوم مشركان ظالمان راشى نو هغوى ته به دغه وعده نهٔ ملاويږى ، او نورو ته به ميلاويږي ، نو د ابراهيم عليه السلام په اولاد كې ټول انبياء دى ، خو چه كوم پكې كافران دى ، نو هغوى هم دغه شان پاتى شول ، نو الله تعالىٰ دلته هم د قوميت لحاظ ونهٔ ساتلو .

نو د ابراهيم عليه السلام او د نوح عليه السلام نهج او دعوت بيان شو چه دوى څومره حد پورے د قوميت خلاف كړے دے .

---

1) [ سورة نوح : ٢١ - ٢٤ ] .

2) [ سورة نوح: ٢٦ - ٢٧ ] .

3) [ سورة البقرة : ١٢٤ ] .

**٦/ خبره: د قوميت دعوت الله تعالى په قرآن كريم كې په كوم ځائى كې رد كوى :**

١/ الله تعالىٰ فرمائى : ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَـٰكُم مِّن ذَكَرٍ وَأُنثَىٰ وَجَعَلْنَـٰكُمْ شُعُوبًا وَقَبَآئِلَ لِتَعَارَفُوٓاْ ﴾ [1] ، " اے خلقو ! تاسو ما پيدا كړى يئ د يو مذكر او د يوے مؤنثې نه او ګرځولي مى دى په تاسو كې شعبې ( ډلې ) او قبائل ددې دپاره چه يو بل اوپيژنئ " ، نو پدې آيت كې الله تعالىٰ د قومونو د تقسيم هغه نكته بيان كړے ده ، چه تاسو به پدې قومونو باندې يو بل پيژنئ ، نۀ دا چه تاسو پرې اختلافات اوكړئ .

٢/ الله تعالىٰ فرمائى : ﴿ إِنَّمَا ٱلْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ ﴾ [2] " يقينا مؤمنان د يوبل سره ورونه دى " نو دلته الله تعالىٰ د قوميت خبره نده كړے ، بلكه داسې ئې ويلې دى چه مؤمنان د يو بل ورونه دى چه هغه د هر ځائې وى كه د مشرق وى او كه د مغرب وى ، نو د قوميت طاغوت پكې ختم شو .

٣/ دغه شان الله تعالىٰ بل ځائى كې فرمائى : ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱتَّقُواْ رَبَّكُمُ ٱلَّذِى خَلَقَكُم مِّن نَّفْسٍ وَٰحِدَةٍ وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا وَنِسَآءً ﴾ [3] نو الله تعالىٰ چه انسان ته د اول نه د تقوىٰ امر كوى نو ورته وائى : خلقكم من نفس واحدا » ځكه هسې نۀ چه چرته په تاكې د قوميت باعث راپورته نشى ، نو د قوميت نه د بچاؤ دپاره ورته ابتدا كې وائى : چه تقوى اوكړه ځكه چه تاسو خو الله د يو نفس نه پيدا كړى يئ ، نو چه د يو نفس نه يعنى د آدم عليه السلام اولاد يئ نو بيا ولې په قوميت باندې اختلافات كوئ د قوميت نعره پرېږدئ .

٤/ بل ځائى كې الله فرمائى : ﴿ وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَـَٔانُ قَوْمٍ أَن صَدُّوكُمْ عَنِ ٱلْمَسْجِدِ

---

1) [ سورة الحجرات: ١٣ ] .

2) [ سورة الحجرات : ١٠ ] .

3) [ سورة النساء: ١ ] .

ٱلۡحَرَامِ أَن تَعۡتَدُواْۘ وَتَعَاوَنُواْ عَلَى ٱلۡبِرِّ وَٱلتَّقۡوَىٰۖ وَلَا تَعَاوَنُواْ عَلَى ٱلۡإِثۡمِ وَٱلۡعُدۡوَٰنِ ﴾ [1]

نو پدې آيت کې الله د قوميت نه منع کوی ، هسې نه چه په تاسو کې د قوميت اختلاف رانشی چه خلق د مسجد حرام نه منع کړئ ، ځکه مسجد حرام خو د ټولو خلقو ځائی دے ، نو د قومی بدئ په وجه د دوي سره اختلافات اونهٔ کړئ .

٥/ بل ځائی کې بيا الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِنَّمَا ٱلۡمُشۡرِكُونَ نَجَسٌ فَلَا يَقۡرَبُواْ ٱلۡمَسۡجِدَ ٱلۡحَرَامَ بَعۡدَ عَامِهِمۡ هَـٰذَا ﴾ [2] .

نو دا يو قومی خلق دی خو چه کله مشرکان شو نو بيا ئی ورته نجس اووئيله ، او دا خلق مسجد حرام ته هم مهٔ راپرېږدئ ځکه چه دا نجس دی .

٦/ بل ځائی کې ورته فرمائی : ﴿ وَلَا يَجۡرِمَنَّكُمۡ شَنَـَٔانُ قَوۡمٍ عَلَىٰٓ أَلَّا تَعۡدِلُواْۚ ٱعۡدِلُواْ هُوَ أَقۡرَبُ لِلتَّقۡوَىٰۖ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَۚ إِنَّ ٱللَّهَ خَبِيرُۢ بِمَا تَعۡمَلُونَ ﴿٨﴾ ﴾ [3]

دلته ئی هم د قوميت نه منع اوکړه هسې نه چه په تا باندې د قوميت دشمنی غالبه شی او بيا لاره دعدل پرېږدې ، ځکه چه کله په يو سړی کې قوميت راشی نو بيا ترينه عدل لرې کيږي ، ځکه ورته الله امر کوی چه عدل اوکړئ دغه تقوی ده په قوميت کې تقوی نشته .

٧/ بل ځائی کې بيا الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ إِذۡ جَعَلَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ فِي قُلُوبِهِمُ ٱلۡحَمِيَّةَ حَمِيَّةَ ٱلۡجَـٰهِلِيَّةِ فَأَنزَلَ ٱللَّهُ سَكِينَتَهُۥ عَلَىٰ رَسُولِهِۦ وَعَلَى ٱلۡمُؤۡمِنِينَ وَأَلۡزَمَهُمۡ كَلِمَةَ ٱلتَّقۡوَىٰ وَكَانُوٓاْ أَحَقَّ بِهَا وَأَهۡلَهَاۚ وَكَانَ ٱللَّهُ بِكُلِّ شَيۡءٍ عَلِيمٗا ﴿٢٦﴾ ﴾ [4]

---

1) [ سورة المائدة : ٢ ] .

2) [ سورة التوبة: ٢٨ ] .

3) [ سورة المائدة: ٨ ] .

4) [ سورة الفتح : ٢٦ ] .

دلته بيا د قوميت نه منع كوى ، ځكه ئې دا اووئيل : چه كافر د غيرت جاهلي د وجې نه جنګيږي ، او هر چه مسلمان دے نو دا به د غيرت اسلامى دپاره جنګيږي ، نو دلته الله رد اوكړو پدې چه چرته په تاسو كې حميت جاهلي راپيدا نشى ، ددې وجې نه رسول الله ﷺ د دعوت ابتداء د قوميت د نعرې نه اونۀ كړه ځكه چه محمد رسول الله ﷺ د ټولو خلقو دپاره رسول دے لكه څرنګه چه الله تعالىٰ په قرآن كريم كې فرمائى ، او بيا د ټول مخلوق دپاره رسول نو دا د قوميت هغه بوت ماتول دى .

٨/ دغه شان لوط عليه السلام په پردى قوم كې دے ، خو چه كله ورته دعوت وركوى نو ورته وائى : « **ياقومى** » ، ځكه لوط عليه السلام هجرت كړے وو بلې علاقې ته مهاجر پيغمبر وو ، نو ورته وائى : يا قومى ، دا د دعوت په سلسله كې داسې ورته ويلى وو ، ځكه كه چرته تاسو پدې صفاتو باندې متصف شوے نو تاسو بيا زما قوم ئې ، ځكه خپل قوم خو ئې پريخودې وو .

نو د دعوت طريقه الله تعالىٰ په قرآن كريم كې بيان كړے ده چه پديكې د قوميت نعره ختمه شويده .

**٧ / خبره : د رسول الله ﷺ زندګى ، او د دعوت طرز او طريقه ، او د قوميت ختميدل** : اوس د قوميت ختميدل د رسول الله ﷺ په زندګئ كې اوګوره ، چه د رسول الله ﷺ خپل ترۀ دے ابو طالب ، او د رسول الله ﷺ كفالت ئې هم كولو ، خو د دنيا نه د كفر په حالت كې لاړو ، لكه الله تعالىٰ رسول الله ﷺ ته فرمائى : ﴿ إِنَّكَ لَا تَهْدِى مَنْ أَحْبَبْتَ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ يَهْدِى مَن يَشَآءُ ﴾ (1)

" يقيناً ته هدايت نۀ شى كولے چاته چه ته اوغواړے لكن هدايت د الله په لاس كې دے چاته چه هغه اوغواړي هدايت ورته وركوى " ، نو رسول الله ﷺ ته الله وائى : چه

(1) [ سورة القصص : ٥٦ ] .

هدايت خو پدې ندې چه تهٔ د چا سره محبت كوې او دا به په هدايت وي ، نهٔ بلكه دا دالله تعالىٰ خوښه ده چه چاته ئې كوې او كه چاته ئې نهٔ كوې ، نو ابو طالب د كفر په حالت كې د دنيا نه لاړو ، او چه كله مړ شو نو رسول الله ﷺ د نورو مشركانو پشان په يوه كنده كې اوغورځولو ، ځكه چه قوميت پكې نه وو په رسول الله ﷺ ، د اسلام طرز او طريقه ئې ورته پدې وجه اختيار نهٔ كړه چه په هغې كې عزت او تكريم وو ، او دا خو چونكه په كفر باندې وو ، نو كه چرته رسول الله ﷺ قوميت كولې نو دا به ئې ويلې وے چه خير دے دا خو زما ترهٔ دے او دهٔ سره به دا طريقه اوكړو ، نه د قوميت بت مات شوى وو .

هم دغه وجه وه چه نبي كريم ﷺ د قوميت خبرے نه شروع ونهٔ كړه او پدې باندې رد اوكړو او دعوت د لاإلٰه إلا الله ئې وكړو او دا د قوميت خلاف هم وو او دغه لا إلٰه إلا الله د هرې باطلے نظريې خلاف دے ، او چه كله ئې دا كلمه شروع كړه او دعوت ئې په ښكاره شروع كړو نو د مكې خلق ورته راپورته شول ، اولنې كس د رسول الله ﷺ قومى دے چه په خلاف باندې راپاڅيږې او ورته وائى : «**تبا لک أسائر اليوم ، ألهذا جمعتنا؟**» نو دا ابو لهب وو او د رسول الله ﷺ ترهٔ وو ، نو اولنئ دشمنى د كور نه ورته شروع شوه .

دغه شان ابو جهل قريشى دى ، او مخالف شو ، ولى مخالف شو ؟ ځكه چه لاإلٰه الا الله دعوت شروع شو ، د رسول الله ﷺ دنيا ته د راتلو سره د قوميت نعره بلنده نهٔ كړه ځكه هسې نهٔ چه خلق د رومى طاغوت نه خلاص شى او په عربى طاغوت كې ونخلى او هسې نه چه خلق د فارسى طاغوت نه خلاص شى او په عربى طاغوت كې ونخلى ، نو بيا به د عربو قوميت منى او د اسلام خلاف كار به كوى ، په لا إلٰه الا الله سره نبى كريم ﷺ په بوتانو باندې هم رد كوى ، په لا إلٰه الا الله سره د غير الله په قانون باندې هم رد كوى ، او په لا إلٰه الا الله سره د قريشو چه خپل قوم ئې هم دے د هغوي په جاهلى رسم باندې هم رد كوي ، نو دغه مشركان ددې الفاظو په معنى پوهيدل نو فوراً مخالف شو .

د نبى كريم ﷺ كوم قوميان دى چه د هغه خلاف ئې كړې وو : ابو جهل قريشى دے چه د رسول الله ﷺ مخالفت كوى ، وليد بن مغيره قريشى دے مخالفت كوى ، اخنس بن

شريق ، نضر بن حارث ، نو دا ټول د نبی کریم ﷺ قومیان وو او مخالفت ئی کولو ، نو ړومبنې د قوم د طرف نه مخالفت شروع شو ، او مختلف قسمه مشکلات ورته وروړاندې شول، خو دې مشکلاتو د نبی کریم ﷺ په عزم کې هیڅ قسمه تغیر او تبدیل رانهٔ وستلو ، موقف ئی هغه وو ، تحریک ئی هغه وو ددې وجې نه هغه تحریک کامیابئ ته ورسیدلو ، ځکه چه په لاره کې د قومیت پاټک نهٔ وو .

نو د نبی کریم ﷺ دعوت عالَمی دعوت دے ، ځکه خلق ورته راځی ، صهیب ﷺ د روم نه راځی ، سلمان فارسی ﷺ د فارس نه راځی ، بلال ﷺ د حبشو نه راځی ، او په اسلام باندې مشرف کیږی ، او بیا چه د بلال ﷺ نوم اخلی نو وائی : «**هذا سیدنا بلال**» ، او دې فضیلت ته ئی ګوره چه نبی کریم ﷺ خپل مؤذن مقرر کړلو ، ددې وجې نه چه د قومیت بنیاد ختم شی ، دا د نبی کریم ﷺ په مکی زندګئ کې دغه حالت وو .

نو خلق مونږه ته وائی : چه مکی زندګی اختیار کړئ ، بل طرف ته وائی چه د خپل ملک سره جنګیږئ دا لا کوم جهاد دے هلکه دا خپل ملک پکې چا راوستے دے او دې قومیت سره سره تاسو وطنیت هم ذهن کې ساتئ دغه هم حرام دے ځکه دغه وطنیت ځانته یو بُت دے ، نو دغه د نبی علیه السلام مکې دعوت دے په طائف کې ئې خپل قوم ته دعوت ورکوي خو ماشومان ئې په کاڼړو باندې ولی نو ګوره مقابله د جاهلیت سره ده او جاهلیت طرز او طریقه اوګوره هغه خپل قومیت ته نهٔ ګوری ځکه نبی کریم ﷺ خو د دوی قومی وو کنه خو دوی ئې لحاظ ونهٔ کړو لکه ابو جهل او ابو لهب دوی د قومی لحاظ نهٔ کوی بلکه خپل قانون ته ګوری او ته خو مسلمان یې او په اسلام کې خو هسې هم قومیت نشته او بیا هم تهٔ قومیت ته ګورے نو تهٔ خو د جاهلیت نه هم ډیر ښکته یې ، دارنګه افغانستان ته اوګوره ټول کافران ورته راجمع شول او خپل قومیت ئې ورته پرے خودلو او مونږه وایو یره دغه خو په افغانستان کې جنګ دے څهٔ زمونږ په ملک خو جنګ ندے چه مونږ پکې وجنګیږو ، نو تهٔ دیته لګ سوچ اوکړه چه نن مسلمان ته قومیت او وطنیت د اسلام په لاره یو پاټک جوړ شو .

كله چه نبی کریم ﷺ مديني منورے ته راغي نو په مدينه کې چه اول مخالفت شروع شو نو هغه د قوميت مسئله وه ، سيد المنافقين عبدالله بن ابی ابن سلول منافق دا د مديني منورے مَلک وو خلقو دۀ ته د ملکئ پګړئ ( پټکي ) پسر کولو چه پديکې نبی کریم ﷺ مديني منورے ته راغي او نبی خو د خپلي علاقې مشر او سردار وی ځکه د نبی په مخکې خو بيا څوک مشر او ملک نشي جوړيدلي ، نو عبدالله بن ابی ابن سلول رئيس المنافقين په دين کې داسي يو دعوت شروع کړو چه ظاهراً اسلام ښکاره کول وو او باطناً کفر پټ ساتل وو.

اوس ددي په مقابله کې د جاهليت نظام چه هغه قوميت کوی د خپل جاهليت دپاره ، لکه کعب بن اشرف چه دا د يهودو مشر وو دا راغی اهل مکي والاؤ ته ، نو کعب بن اشرف ورته وائی چه مونږ او تاسو معاهده کوو د محمد ( ﷺ ) په خلاف کې ، بيا ورته وائی : ﴿ وَيَقُولُونَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا۟ هَٰٓؤُلَآءِ أَهۡدَىٰ مِنَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ سَبِيلًا ﴾ [1] " او ورته وائی هغه کسانو ته چه کفر ئی کړيدے دا کسان ډير په هدايت دی د هغه کسانو نه چه ايمان ئی راوړے دے په اعتبار د لارے سره " ، ځکه چه قوميت ئی د خپل جاهليت دپاره مات کړلو قومی جګړې ئی پريخودلي او راغي د مشرکانو سره ئی په بوتانو باندې قسمونه شروع کړل ، ددي وجې نه چه زما جاهلی نظام اوچليږی .

بيا پدې مرحلې پسې د بدر ميدان منځ ته راغي ، نو د خپل قوم سره پکې جنګ شروع شو او د خپل قوم خلاف راپاڅيدو ، دعوه ئی هم د خپل قوم خلاف شوه ، نهج ئی هم د خپل قوم خلاف شو ، او توره ئی هم دخپل قوم په خلاف راپورته کړله او په ميدان کې ورسره مقابلې ته ودريدل ، او مشرکانو هم قوميت د خپل جاهليت دپاره مات کړلو ، لکه چه کله ميدان د بدر ته دواړه طرفونه حاضر شو ، نو د مشرکانو د طرف نه څلور کسان راپورته شول او دا ئی ويل : « **هل من مبارز** » څوک مقابلې والا شته " نو څلور کسان د مسلمانانو د طرف نه

[1] [ سورة النساء : ٥١ ].

پاځيدل ، نو مشركانو ترينه تپوس اوكړو چه تاسو مديني والا ئی او كه مكې والا ، نو هغوي ورته اووئيل: چه مونږ انصار يو د فلانئ فلانئ قبيلې والا يو ، نو مشركان قريش ورته وائی : چه دا مونږ نۀ وايو چه تاسو د شريف خاندان نه نۀ ئی بلكه تاسو لاړ شئ او مونږ ته خپل قوميان رالېږئ ته كوی ، ( نو د خپل جاهليت دپاره ئی قوميت ختم كړو ) نو نبي كريم ﷺ اووئيل : «**قم يا حمزه ، قم يا عبيدالله ، قم يا ربيعة ، قم يا على**» ، نو دوي ورپسې ورغله او ټول ئی مردار كړل د الله په توفيق سره ، نو دا هغه خلق وو چه قوميت ئی د دين په خلاف باندې ختم كړلو ، نو دا د نبي كريم ﷺ په بدر كې د قوميت بوت ختمول شو .

بيا يو قوم نه يوے زنانه غلا اوكړه ، او چه كله غلا ثابته شوه نو لاس به كټ كيږي ، نو پديكې اسامه بن زيد چه دا محبوب د رسول الله ﷺ وو خلق پدې پسې راجمع شول چه تۀ رسول الله ﷺ ته سفارش اوكړه چه ددې زنانه نه لاس نه كټ كوی او معاف ئی كړی ، نو رسول الله ﷺ ته ئی دا سفارش اوكړلو ، او ددې سفارش په اوريدلو سره رسول الله ﷺ په غصه شو او دا ئی اوفرمائيل : والله كه فاطمه بنت رسول الله ﷺ دا غلا كړی وے نو ما به ترينه لاس كټ كولو ، نو دا ده نبي كريم ﷺ طرز او طريقه وه او دا د قوميت ختمول وو ، او دا د كاميابئ طريقه وه.

اوس كه تۀ ځان كاميابی ته رسول غواړے او مقصود ته رسيدل غواړی نو د دې لارے نه دغه پاټكونه لرے كړه كوم چه تاته مخكې ذكر كړے شو او كه چرته دا پاټكونه ته د دې لارے نه لرے نۀ كړے نو بيا خپل مقصود ته نشې رسيدلې . دا رنګه پاټكونه ده مصلحت پسندی شوو او شخصيت پرستی شوو .

وبالله التوفيق .

❊❊❊❊❊

## د قوم پرستی موضوع ( دويمه حصه )

د قوم پرستئ موضوع شروع وه او پدې موضوع کې دا خبره واضحه شوه چه منهج د انبياء عليهم السلام قومی نۀ وو ، او دعوت ورکول قوميت طرف ته دا دعوت د جاهليت دے ، او دا د اسلام په رنړا کې باطل دعوت دے او دې طرف ته دعوت ورکول دا د انبياء عليهم السلام د منهج نه خلاف دے چه هغې کې مونږ مختلف آيتونه او د نبی کريم ﷺ بعضی واقعات ذکر کړل .

**هغه احاديث چه د قوميت په رد کې راغلی دی** : ١/ حديث کې راځی رسول الله ﷺ فرمائی : «**لَيْسَ مِنَّا مَنْ ضَرَبَ الْخُدُودَ وَشَقَّ الْجُيُوبَ وَدَعَا بِدَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ**» . [1]

" هغه څوک زما د امت نه ندے چه څوک مخونه وهی په وخت د غم کې ، او ګريوانونه شلوی او دعوت ورکوی په دعوو د جاهليت سره " .

مقصد پدې حديث کې زمونږ دا آخرنئ جمله ده : «**وَدَعَا بِدَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ**» ، يعنی که چرته جنګ وغيره راشی نو دا به قومونو ته آواز کوی ، او يا چرته د قوميت جنګ راشی نو دا پکې د ټولو نه مخکې ولاړ وی نو ديته دعوی الجاهلية ويلې کيږی ، نو نبی کريم ﷺ ددې نه منع اوکړه چه څوک هم دا کار کوی نو دا به زما د امت نه نۀ وی ، او په « ليس منا » کې نبی کريم ﷺ خپل منهج ښکاره کړو ، چه د انبياء عليهم السلام طريقه او منهج دا ندے چه هغوی دې «**وَدَعَا بِدَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ**» کار اوکړی ، دا د امت نه نفی کيدل دا څۀ داسې نده چه بس دا کافر شو ، نۀ کافر ندې بلکه ګناه کبيره ئې اوکړه لويه ګناه ئې اوکړه .

٢/ حديث کې راځي چه جابر ﷛ فرمائی : «**يَقُولُ غَزَوْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ ثَابَ مَعَهُ نَاسٌ مِنْ الْمُهَاجِرِينَ حَتَّى كَثُرُوا وَكَانَ مِنْ الْمُهَاجِرِينَ رَجُلٌ لَعَّابٌ فَكَسَعَ أَنْصَارِيًّا فَغَضِبَ الْأَنْصَارِيُّ غَضَبًا شَدِيدًا حَتَّى تَدَاعَوْا وَقَالَ الْأَنْصَارِيُّ يَا لَلْأَنْصَارِ وَقَالَ الْمُهَاجِرِيُّ يَا**

---

[1] [ متفق عليه : بخاري ، رقم : ١٢١٤ ، ومسلم , رقم : ١٤٨ ] .

لَلْمُهَاجِرِينَ فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا بَالُ دَعْوَى أَهْلِ الْجَاهِلِيَّةِ ثُمَّ قَالَ مَا شَأْنُهُمْ فَأُخْبِرَ بِكَسْعَةِ الْمُهَاجِرِيِّ الْأَنْصَارِيَّ قَالَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعُوهَا فَإِنَّهَا خَبِيثَةٌ » (1).

" چه مونږ د رسول الله ﷺ سره په غزوه کې ملګرے وو او د نبی کریم ﷺ څهٔ ملګری د مهاجرينو نه وو تردې چه هغه ډير شو او په مهاجرينو کې يو کس وو چه ګپ شپ والا وو ( په صحابه کرامو کې هم داسې ګپ شپ والا وو ) نو يو انصاری صحابی ئی په څپړه اووهلو نو انصاری غصه شو او سخته غصه ئی اوکړه تردې چه بلنه ئی شروع کړه د قوميت نو انصاری اووئيل : اے انصارو راشئ ، او مهاجر اووئيل : اے مهاجرو راشی نو نبی کريم ﷺ پرې را ووتلو او وې ويل : څه حال دے ستاسو چه د جاهليت چغې وهئ يو بل ته ، بيا ئی اووئيل : چه دا څهٔ چل اوشو ؟ نو خبر ورته ورکړے شو چه مهاجر انصاری ووهلو ، نو نبی کريم ﷺ ووئيل پريږدئ دا دعوت خبيث دعوت دے دا مهٔ ورکوئ ".

دا صريح دليل دے چه داسې الفاظ مهٔ استعمالوئ چه په هغې کې قوميت طرف ته دعوت ورکول وی ، او نبی کريم ﷺ ترينه منع هم اوکړه چه دا کار مهٔ کوئ .

پديکې عبدالله ابن ابی ابن سلول منافق موجود وو نو وې ويل : « أَقَدْ تَدَاعَوْا عَلَيْنَا لَئِنْ رَجَعْنَا إِلَى الْمَدِينَةِ لَيُخْرِجَنَّ الْأَعَزُّ مِنْهَا الْأَذَلَّ » .

" ايا دې مهاجرينو په مونږ باندې بلنه اوکړه نو وې ويل : که چرے مونږ مدينې ته واپس شو نو عزتمند سړے به د مدينې نه ذليل سړے اوباسی " ، نو دې ظالم د هغه آواز نه غلطه فائده اوچته کړه ، پديکې ددې منافق ځوی وو ، عبدالله ﷺ هغه رسول الله ﷺ ته اووئيل: چه ماته اجازت راکړه چه زه دا خپل پلار قتل کړم ، نو نبی کريم ﷺ ترے منع کړو.

بيا په دغه وخت کې عمر فاروق ﷺ اوفرمائيل : «أَلَا نَقْتُلُ يَا رَسُولَ اللَّهِ هَذَا الْخَبِيثَ

---

1 [ بخاري ، رقم : ٣٢٥٧ ] .

**لِعَبْدِ اللَّهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَتَحَدَّثُ النَّاسُ أَنَّهُ كَانَ يَقْتُلُ أَصْحَابَهُ»** " اے رسول الله ! آيا دا خبيث نۀ قتلوم ، نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل : چه نۀ بیا به خلق وائی چه دې خپل ملګري قتلوی " ، او دغه منافق خپل ځان بیا په قسم کولو باندې بچ کړو چه ما دا خبره نده کړے ، ځکه منافق ته قسم کول هیڅ خبره نۀ ښکاری .

٣/ بل حدیث کې راځي چه نبی کریم ﷺ فرمائي : **«أَبْغَضُ النَّاسِ إِلَى اللَّهِ ثَلَاثَةٌ مُلْحِدٌ فِي الْحَرَمِ وَمُبْتَغٍ فِي الْإِسْلَامِ سُنَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ وَمُطَّلِبُ دَمِ امْرِئٍ بِغَيْرِ حَقٍّ لِيُهَرِيقَ دَمَهُ»** . [1]

" مبغوض ترین په خلقو کې الله تعالیٰ ته درې کسان دی ، هغه ملحد چه په حرم کې الحاد کوی ، ( دویم ) هغه سړے چه په اسلام کې طریقه د جاهلیت لټوی ( یعنی د جاهلیت دعوه کوی او قومیت طرف ته بلنه ورکوی ) ( دریم ) طلب کونکې وی د مسلمان د وینې په ناحقه باندې " ، نو یو پدیکې دا ذکر شو چه « **ومبتغ فی الاسلام سنة الجاهلية** » او پدیکې دا هم اووئیلې شو چه ابغض الناس یعنی ډیر زیات مبغوض ترین انسان الله تعالیٰ ته دغه دے.

٤/ رسول الله ﷺ فرمائی : « **من تعضا بعضاء الجاهلية فاعده ولاتكنه** » [ ابن حبان ]

" څوک چه ځانته نسبت اوکړی نسبت جاهلی چه زه خو فلانې یم یا زه پختون وغیره ، نو ورته ووائی ، نو بعضی شارحینو لیکلی دی چه ورشه او د پلار په شرمګاه دې چک اولګوه ، «ولاتكنه » یعنی دا خبره ورته په کنایه کې مۀ وایه بلکه په صریح الفاظو کې ورته وایه "

پدې حدیث کې دې خبرے ته اشاره شوه چه الفاظ د جاهلیت او الفاظ د قومیت ډیر قبیح الفاظ دی ، او ددې نه دغه الفاظ ( چه ورشه او د پلار په شرمګاه باندې چک ولګوه ) چه مونږ ته ډیر قبیح ښکاری دا ترینه ډیر زیات ښۀ دی .

٥/ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما فرمائی : « **طاف رسول الله صلى الله عليه وسلم على راحلته القصواء يوم الفتح ، واستلم الركن بمحجنه ، وما وجد لها مناخا في المسجد حتى أخرجت إلى بطن الوادي ، فأنيخت ، ثم حمد الله وأثنى عليه ، ثم قال : » أما بعد ، أيها الناس ،**

---

[1] [ بخاري، رقم : ٦٣٧٤ ] .

**فإن الله قد أذهب عنكم عبية الجاهلية ، يا أيها الناس ، إنما الناس رجلان بر تقي كريم على ربه ، وفاجر شقي هين على ربه « ، ثم تلا : ( يا أيها الناس إنا خلقنا كم من ذكر وأنثى وجعلنا كم شعوبا وقبائل لتعارفوا » حتى قرأ الآية ، ثم قال : » أقول هذا وأستغفر الله لي ولكم » .** [1]

" رسول الله ﷺ په خپله سورلئ باندې طواف اوكړو په بيت الله شريف كې په ورځ د فتح باندې ، او استلام ئې اوكړو د حجر اسود په خپلې امسا سره ، او ونهٔ موندلو د كيناستلو ځائې د اوښې دپاره په مسجد كې تردې چه راويستلې شوه بطن وادى مقام ته نو هغه كينولې شوه بيا رسول الله ﷺ د الله حمد اداء كړو او خطبه ئې اااووئيله ، بيا د هغې نه بعد ئې اااووئيله اما بعد : اے خلقو يقيناً الله تعالیٰ ستاسو نه لرى كړه هغه نسبت د جاهليت ، بيا ئې اااووئيله اے خلقو ! خلق اوس دوه سړى دى ( اول ) هغه سړے دے چه متقى وى سخى وى عزتمند وى په خپل رب باندې ، ( دويم ) هغه سړے دے چه فاجر بدبخته او سپک وى په خپل رب باندې بيا رسول الله ﷺ دا آيت مباركه تلاوت كړو : «**يا أيها الناس إنا خلقنا كم من ذكر وأنثى وجعلنا كم شعوبا وقبائل لتعارفوا**» بيا ئې اوفرمائيل : اقول هذا واستغفر الله لى ولكم".

**فائده : پدې حديث كې خو يو د رسول الله ﷺ تقرير او بيان ته اوګوره چه موقعه خومره غټه موقعه ده ، چه هغه موقعه د فتح ده ، او بيا نبى كريم ﷺ دا كلمات اولوستل په تقرير كې ، مقصد دا دے چه د قوميت ختم كول او د دين نه ويستل دا د اسلام يوه مهمه موضوع ده ، ځكه ئې پدې مهم وخت كې مهمه موضوع اختيار كړه ، ٢/ خبره پدې حديث كې دا قابل فكر ده : چه د اول نه تر آخره پورے تقرير ئې صرف هم پدې خبره باندې اوكړو نو دې خبرے ته اشاره شوه چه قوميت په دين كې نشته ، ٣/ خبره پدې حديث كې رسول الله ﷺ د الله جل جلاله احسان پدې خلقو باندې بيان كړو چه دا د الله تعالیٰ احسان دے چه ستاسو نه ئې د جاهليت دغه طريقه لرے كړه ، نو دا بطور امتنان پيش كيدل دا يوه مهمه خبره ده ، ٤/ خبره پدې حديث كې هغه دا وه چه نبى كريم ﷺ اوفرمائيل : «انما الناس رجلان»**

---

[1] [ صحيح ابن حبان ، رقم : ٣٩٠١ ] .

کوم سړے چه د قوميت لاره ئې پرېخودله نو هغهٔ ته ئې اوويئيل : « **برٌّ تقيٌّ كريم على ربه**» چه هغه نيک دے متقي دے او د الله په نيز باندې غوره دے ، او دا بل طرف واله د هغې په باره کې اووئيل : « **وفاجرٌ شقيٌّ هيٌّ على ربه** » " يعنى فاجر دے بدبخته دے او سپک دے په نيز د رب دده " نو دې ځائې کې ورته بيان اوکړو چه د قوميت نعره د بدبختئ نعره ده ، او چه کوم سړے قوميت پرستي کوی نو دې وائي چه زهٔ به عزتمند کېږمه خو دا سړے د الله په نيز باندې سپک کيږي ، او بيا رسول الله ﷺ دغه آيتونه ولوستل .

او نبي کريم ﷺ پدغه مقام کې دا موضوع اختياره کړه ځکه چه په قريشو کې دغه صفت مخکې نه موجود وو ، دې وجې نه د حج په موقعه کې چه کله الله تعالیٰ د حج احکامات بيانوی ، نو دوی کې دا طريقه وه چه کله به د عرفات نه خلق راکوز شو نو دوی به هلته ناست وو او د خپلو پلارانو قيصې به ئې بيانولې چه زما پلار او نيکه په فلانی وخت کې داسې غټ کار کړے وو ، او بل به پکې د خپل پلار نيکه قيصې بيانولې ، نو الله تعالیٰ پرې رد اوکړو او ورته ئې اووئيل : ﴿ ثُمَّ أَفِيضُواْ مِنْ حَيْثُ أَفَاضَ ٱلنَّاسُ وَٱسْتَغْفِرُواْ ٱللَّهَ ﴾[1] " بيا راکوز شئ د هغه ځائې نه چه خلق ترې راکوزيږي او د الله تعالیٰ نه بخنه غواړئ ( خپلې د جاهليت قيصې مهٔ کوئ ) " .

نو پيغمبر عليه السلام په دوی باندې هغه احسان بيان کړو چه الله تعالیٰ ستاسو نه د جاهليت قبيح کار لرې کړلو .

نو دا وو د احاديثو په رنړا کې او د سنت په رنړا کې د قوميت هغه بوت ختمول .

---

[1] [ سورة البقرة : ۱۹۹ ] .

**د بعضى خلقو اعتراضات په صحابه كرامو رضي الله عنهم باندې**: لكه بعضو خلقو دا ويلى دى چه عثمان بن عفان ﷺ خپل ټول مال په خپل قوم بنو اميه باندې خرچ كولو (والعياذ بالله ) نو دوى دا غلط سوچ څنګه د حضرت عثمان ﷺ په باره كې كړے دے .

حضرت عثمان ﷺ خو د رسول الله ﷺ په قريبي ملګرو كې دے ، لكه رسول الله ﷺ فرمائى : «**خَيْرُ الْأَصْحَابِ أَرْبَعَةٌ**» [1] او بيا اهل علم والا وائى چه ددې نه مراد دغه څلور خليفه ګان د رسول الله ﷺ دى ، چه دا د پيغمبر عليه السلام بهترين ملګرى وو .

دا رنګه د ابو بكر صديق ﷺ حالات اوګوره د خپل كور په باره كې ، چه كله ورته خلافت حواله كيږى او مسلمانانو ورسره بيعت اوكړو ، نو ابو بكر صديق ﷺ خو به مخكې د خلافت نه تجارت كولو د كپړے وغيره او چه كله ورته خلافت حواله شو نو بيا خو ابو بكر ﷺ تجارت نشو كولے ځكه چه د مسلمانانو په خدمت كې مصروف شو ، او چه كوم مال ورسره په كور كې وو نو هغه ئى هم په بيت المال كې داخل كړو ، نو يوه ورځ عمر فاروق ﷺ په يوه لاره كې ولاړ دے چه ګورے نو ابو بكر صديق ﷺ راروان دے او په شا باندې بيزه ( چيلئ ) راړولې وه ، نو عمرفاورق ﷺ ورته څۀ ونۀ ويل ، بيا په بله ورځ عمر فاروق ﷺ د ابو بكر صديق ﷺ خواله راغلې او ورته ئى اوويئيل : چه تاسو به نن نه بعد مزدورى نۀ كوئ تاسو ځان دپاره د بيت المال نه وظيفه مقرر كړئ ، بيا چه كله ابو بكر صديق ﷺ وفات كيږي نو وې ويل : چه ما د بيت المال نه دومره دومره خرچه شوے ده دا واپس په بيت المال كې داخله كړئ ، نو دا د دوى حالات وو په اسلام كې .

دا رنګه عمر فاروق ﷺ په منبر باندې ولاړ دے ، او خطبه بيانوى او وائى : چه اے خلقو كه په ما كې څۀ غلطى وى نو ماته ئى ووائى ، نو يو كس ورته پاڅيږى او ورته وائې : چه ولې د مسلمانانو په غنيمت كې چه كومه كپړه رسيدلې ده نو هغه خو دومره لګه وه چه

[1] [ مسند أحمد ، رقم الحديث : ٢٥٨٣ ] .

د چا ترې قميص كيږي نو پرتوګ ئې ترې نۀ كيږي او كه پرتوګ ترې جوړوى نو بيا ترې قميص نه كيږي ، او ستا دواړه څنګه شويدى ؟ نو عمر ﷺ خپل ځوى عبدالله ﷺ ته اشاره اوكړه چه پاخه تۀ جواب وركړه ، نو عبدالله بن عمر ﷺ ورته اووئيل : چه زما او زما د پلار كومه كپړه اورسيده نو ما خپل پلار ته اووئيل : چه دا زما كپړه هم ستا شوه نو تۀ ترينه كپړے جوړے كړه ، نو ځكه د عمر ﷺ كپړے پوره شوى دى ، دا د صحابه كرامو رضي الله عنهم حالات وو ، چه د بيت المال حفاظت به ئې كولو هسې نۀ چه بيا څوک اعتراضات اونۀ كړى ، او خلق ورپسې اوس خبرے هم كوى چه دوى دا خطائى كړيده او دا خطائى وغيره ، افسوس پكار دے پدې اعتراضاتو باندې .

عمر بن عبدالعزيز رحمه الله چه دومره مالداره وو چه د مالدارئ انتهاء نۀ وه ، او چه كله ورته خلافت حواله كيږي نو اول خپل ټول مال په بيت المال كې داخلوى ، او بيا خلقو لره فيصلې كوى ترديې چه كله وفات كيږى ، نو بچى ورته وائى : باباجان مونږ له خو څۀ پريږده ؟ نو هغه ورته وائى : كه چرته تاسو تقوى دار وى نو الله فرمائى : ﴿ وَمَن يَتَّقِ ٱللَّهَ يَجۡعَل لَّهُۥ مَخۡرَجٗا ۝٢ وَيَرۡزُقۡهُ مِنۡ حَيۡثُ لَا يَحۡتَسِبُ ﴾ [1] يعنى الله به تاسو لره رزق دركوى ، او كه چرته په تاسو كې تقوى نه وه نو بيا زه تاسو ته مال نۀ پريږدم هسې نۀ چه هغه مال بيا زما دپاره عذاب جوړ شى ، دا دهغوى هغه تقوى وه د خپل كور په باره كې ، قوميت خو لرې خبره ده ، چه د خپل كور په باره كې به هغوى اسلام ته داسې ترجيح وركوله .

دې وجې نه پيغمبر عليه السلام پدې الفاظو سره فرمائى : «لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتَّى أَكُونَ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنْ وَالِدِهِ وَوَلَدِهِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ» [2] " په تاسو كې يو كس صحيح مسلمان نشى كيدے ترڅو چه هغه ته زۀ محبوب شم د خپل پلار او ځوى نه او د ټولو خلقو نه "، دغه شان

---

[1] [ سورة الطلاق : ٢ – ٣ ] .

[2] [ رواه البخاري ، رقم الحديث : ١٤ ، ومسلم ، رقم : ٦٣ ] .

الله تعالیٰ پخپله فرمائی : ﴿ قُلۡ إِن كَانَ ءَابَآؤُكُمۡ وَأَبۡنَآؤُكُمۡ وَإِخۡوَٰنُكُمۡ وَأَزۡوَٰجُكُمۡ وَعَشِيرَتُكُمۡ وَأَمۡوَٰلٌ ٱقۡتَرَفۡتُمُوهَا وَتِجَٰرَةٞ تَخۡشَوۡنَ كَسَادَهَا وَمَسَٰكِنُ تَرۡضَوۡنَهَآ أَحَبَّ إِلَيۡكُم مِّنَ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَجِهَادٖ فِي سَبِيلِهِۦ فَتَرَبَّصُواْ حَتَّىٰ يَأۡتِيَ ٱللَّهُ بِأَمۡرِهِۦۗ وَٱللَّهُ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلۡفَٰسِقِينَ ﴿٢٤﴾ ﴾ [1] " ته ورته ووایه که چرته ستاسو پلاران او بچی او وررونه او ستاسو بیبیانې او ستاسو قوم او قبیله او ستاسو مالونه چه تاسو کسب کړی دی او ستاسو تجارتونه چه تاسو یریږئ د هغې د نقصان نه او ستاسو کوررونه چه تاسو په هغې باندې خوشحالیږئ که چرته دغه تاسو ته زیات محبوب وی د الله او د رسول نه او د جهاد فی سبیل الله نه نو انتظار کوئ تر دې چه الله درباندې خپل عذاب راولی " ، نو که چرته د دنیا سره دې زیات محبت د الله او د هغه د رسول په مقابله کې واغستلو نو الله فرمائی چه زه به درباندې عذاب نازل کړم ، نو د قومیت هغه بُت په دې ځائی کې هم مات شو ، دې وجې نه پیغمبر علیه السلام فرمائی : « **الْحُبُّ فِي اللَّهِ وَالْبُغْضُ فِي اللَّهِ** » [2] .

" محبت هم د الله دپاره او بغض هم د الله دپاره " نو پلار ، بچی ، رونړه ، بی بی ، قبیله دا ټول په قوم کې داخل دي خو ترجیح دین لره ده نه قومیت لره ، نو دا د بغض او د محبت مدار پیغمبر علیه السلام قائم کړو او د قومیت هغه معیار ئی ورلره ختم کړو ، الله جل جلاله پخپله باندې ختم کړو لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُوٓاْ ءَابَآءَكُمۡ وَإِخۡوَٰنَكُمۡ أَوۡلِيَآءَ إِنِ ٱسۡتَحَبُّواْ ٱلۡكُفۡرَ عَلَى ٱلۡإِيمَٰنِ ﴾ [3] " اے د ایمان والاؤ ! مهٔ نیسئ خپل پلاران او وررونه په دوستئ سره که چرته هغوی کفر خوښوی په ایمان باندې "

---

[1] [ سورة التوبة : ٢٤ ] .

[2] [ رواه مسند أحمد ، رقم : ٢٠٣٤١ ، و أبو داؤد ، رقم : ٣٩٨٣ ] .

[3] [ سورة التوبة : ٢٣ ] .

، نو د دوستئ او دشمنئ معيار اسلام کيخودلو چه هغه په اسلام باندې دے بس ، نو د اسلام راوړلو نه بعد زمونږ آواز دا شو چه «**نحن ابناء الاسلام**» مونږ د اسلام ځامن يو ، مونږ به په اسلام باندې جمع کيږو او په اسلام باندې به متفرق کيږو ، نو دا د پيغمبر عليه السلام نهج شو او د صحابه کرامو او تابعينو او تبع تابعينو نهج پکې هم بيان شو چه هغوی د قوميت په باره کې څومره رد کړے دے .

**د فقهې کتابونه د قوميت په باره کې څه وائی هغه اوګورو** : نو د فقهې کتابونه اسلام له مدار ورکوي ، لکه د فقهې يوه قاعده ده : «**امْرَأَةٌ مُسْلِمَةٌ سُبِيَتْ بِالْمَشْرِقِ وَجَبَ عَلَى أَهْلِ الْمَغْرِبِ تَخْلِيصُهَا مِنَ الْأَسْرِ مَا لَمْ تَدْخُلْ دَارَ الْحَرْبِ**»[1] " يوه ښځه ده چه مسلمانه ده او په مشرق کې بنديوانه ( قيد ) شوه نو په مغرب والا باندې د هغې راخلاصول واجب دی " ، نو پدې قاعده کې دا خبره اوشوه چه مدار د دوستۍ او وروروليۍ، مدار د محبت او امداد هغه په اسلام باندې کيخودلو ځکه چه مسلمانه ده اګر که ستا په رشته کې نده ، او دې ځائی کې دې خبرے ته اشاره شوه : چه يو انسانی غيرت دے چه هغې ته قومی غيرت هم وائی، او بل اسلامی غيرت دے ، نو که چرته دا اسلامی غيرت ستا په انسانی غيرت باندې غالبه نه وی ، نو ته پوهه شه چه ستا په دين کې نقصان دے ، او ته کامل مسلمان نهٔ ئی ، د امام ابو حنيفه رحمه الله په باره کې راځی هدايه ملا وائی : « **ولابی حنيفة ان تخليص المسلم عن ظلم الکافر واجب علی کل مسلم** » " او د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه مسلک دا دے : چه خلاصول د يو مسلمان د ظلم د کافرانو نه دا وجب دی په ټولو مسلمانانو باندې " ، دارنګه شامی ليکلی دی : کوم سړے چه په عصبيت او په قوميت باندې قتل کړے شو نو لايصلی عليه په هغه باندې جنازه نهٔ کيږی ، نو د فقهې کتابونو دغه اهتمام دے د قوميت په باره کې ، نو دا موضوع مونږه ددې دپاره بيان کړه چه نن زمونږ په معاشره کې آواز د قوميت لګيدلې دے لکه څرنګه

[1] [ البحر الرائق شرح کنز الدقائق : ١٣ / ٢٩٠ ، و حاشيه رد المحتار : ٤ / ٣٠٢ ، بزازيه و زخيره وغيرهم ] .

چه په جاهليت کې آواز د قوميت لګيدلې وو هغه آواز نن بيا راپورته شوے دے ، دا آواز ځه وخت کې غلې شوے وو خو اوس بيا راپورته شوے دے ، چه دا په ۱۹۱۰ کې دا آواز په سوريا کې د مغربي خلقو په اشاره باندې دوباره راپورته شو ، دا فتنه بيا شروع شوه ، او دې فتنې ته د دوي په اصطلاح کې نشنل ازم جنګ ، او ددې مختلفې ډلې دي کوم چه د قوميت نعره لګوى نشنل ازم والا هغه که په سياست کې دي او که غير ددينه دي هغه هم ددې طائفی والا خلق دی ، او دا نعره ئې په قسما قسم طريقو سره راپورته کړے ده ، خو دا خبره ياد ساتئ چه ددې خلقو مقصد قوميت هم ندے ددې شاته نور مقاصد پراته دي ، او ددې ډير مثالونه دی لګ سوچ کول پکې پکار دی .

*****

## د قوم پرستئ ( دريمه حصه )

## د قــــــــــوم پرستـــــــــئ نــقــصـــا نـات

اوس د قوم پرستئ نقصانات ذکر کوو چه امت مسلمه ته د قوم پرستئ دعوه څومره نقصانات ورکوی ، دا خو ډير زيات دی خو من جمله د هغې نه يو څو د الله په فضل او کرم سره ذکر کوو :

**١/ نقصان** : **التفرق بين المسلمين** : د قوم پرستئ يو نقصان دا دے چه د مسلمانانو په مينځ کې تفرق پيدا کوی ، اسلام اجتماعيت د مسلمانانو او اجتماعيت د کلمې د دوی ډير انتهائی اهتمام کوی ، او ډير زيات خيال ساتی چه د مسلمانانو په اجتماعيت کې اختلاف پيدا نشی ، لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَٱعۡتَصِمُواْ بِحَبۡلِ ٱللَّهِ جَمِيعٗا وَلَا تَفَرَّقُواْۚ وَٱذۡكُرُواْ نِعۡمَتَ ٱللَّهِ عَلَيۡكُمۡ إِذۡ كُنتُمۡ أَعۡدَآءٗ فَأَلَّفَ بَيۡنَ قُلُوبِكُمۡ فَأَصۡبَحۡتُم بِنِعۡمَتِهِۦٓ إِخۡوَٰنٗا ﴾ [1] " منګولې اولګوئ په رسئ د الله باندې او اختلاف مۀ کوئ او دا الله نعمت راياد کړئ کله چه وئ تاسو د يو بل دشمنان نو محبت واچولو په مينځ د زړونو ستاسو کې او اوګرځيدلې تاسو په نعمت د الله تعالیٰ سره ورونه ورونه " ، په عربو کې قوميت پروت وو ډير زيات ، او نقصان ئې دا ورکړے وو چه د عربو اجتماعيت ئې ختم کړے وو عرب فرقې فرقې وے اَوس د خزرج نه مخالف او خزرج د اَوس نه مخالف درانګه بنونضير د بنوقريضؤ نه ، نو کله چه يو عالَمی دين دنيا ته راغلو نو دا ټول اختلافات ئې د مينځ نه ختم کړل ، اوس د دغه اختلافاتو په باره کې د اسلام نظريه داده : چه څوک اختلافات پيدا کوی نو د هغې په باره کې د ختمولو حکم ورکوی چه دا ختم کړئ ، لکه الله سبحانه وتعالیٰ بل ځائی کې فرمائی : ﴿ وَلَا تَنَٰزَعُواْ فَتَفۡشَلُواْ وَتَذۡهَبَ رِيحُكُمۡۖ وَٱصۡبِرُوٓاْۚ إِنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلصَّٰبِرِينَ ٤٦ ﴾ [2] " اختلافات مۀ کوئ ( ځکه چه د

---

[1] [ سورة آل عمران : ١٠٣ ] .

[2] [ سورة الأنفال : ٤٦ ] .

اختلافاتو نقصان دادے ) فتفشلو ، **دويم** : د قوة انعدام دے ، قوة به مو ختم شي ، او دا دواړه نقصانات د انسان اسلام او ايمان ته ضرر ورکوی ، ځکه د اسلام بنياد په غيرت باندې پروت دے الله غيرتی دے او غيرتی انسان خوښوی ، دې وجې پيغمبر عليه السلام فرمائی : «**الْمُؤْمِنُ الْقَوِيُّ خَيْرٌ وَأَحَبُّ إِلَى اللَّهِ مِنَ الْمُؤْمِنِ الضَّعِيفِ** » [1] '' قوي مؤمن د ضعيف مؤمن نه بهتر دے''، او کله چه هم نبي کريم ﷺ صحابه کرامو رضي الله عنهم ته درس ورکوی ، نو درس د شجاعت ورته ورکوی ، لکه تنفيل شو چه دا په فقه کې يوه مسئله ده چه کله امير اعلان اوکړی چه : «**من قتل قتيلا فله سلبه** » '' چا چه کوم سړے قتل کړو نو هغه به د هغه کافر مقتول سامان اخلی '' نو دا د شجاعت او بهادرئ دپاره ، د پيغمبر عليه السلام په باره کې راځی : «**كان اشجع الناس** » '' چه نبي کريم ﷺ په ټولو خلقو کې بهادر شخصيت وو '' ځکه صحابه کرام فرمائی : چه کله به هم جنګ شروع شو نو د ټولو نه نزدے به د کافرانو صف ته پيغمبر عليه السلام وو ، «**ونقاتل من وراءه** » '' او مونږ به د هغه شاته بيا جنګ کولو '' ، نو رسول الله ﷺ اشجع الناس وو ، دارنګه : په مدينه کې يو ځل آواز پورته شو چه خطره ده په مدينه کې نو نبی کريم ﷺ په اس باندې کيناستلو او د مدينې منورے نه ئی ګيرچاپير چکر ووهلو او راغي خلقو ته ئی اووئيل : چه هيڅ خطره نشته ، نو دا د پيغمبر عليه السلام بهادری وه .

او هر چه اختلافات دی نو د اختلافاتو سره بزدلی پيدا کيږي ، د اسلام درس دا نه دے چه په انسان کې دې بزدلی پيدا شی ، اسلام غيرت غواړی شجاعت غواړی ، ددې وجې نه چه کوم سړے د صف د جهاد نه وتختيدلو او دا قتل کړے شو نو دا انسان د الله په غضب ګرفتاره شو .

**او دويم نمبر خبره** : د قوت انعدام ، او د اسلام د تنفيذ دپاره قوت ضروری دي او پکار دے لابد منها ، دا قوت په اتفاق او اتحاد سره پيدا کيږی ، او چه کله دا قوت ختم شی نو بيا د

---

[1] [ رواه مسلم ، رقم : ٤٨١٦ ، و مسند احمد ، رقم : ٨٤٣٦ ] .

اسلام كمزورى راځى ، لكه الله فرمائى : ﴿ وَأَعِدُّواْ لَهُم مَّا ٱسۡتَطَعۡتُم مِّن قُوَّةٍ ﴾ [1] " تاسو ددې كفارو مقابلې دپاره قوت تيار كړئ " ، او چه كله اختلافات پيدا شى نو افرادى قوت كمزورے شى ، او افرادى قوت دا ډير زيات غوره دے د مالى قوت نه ځكه چه اتحاد او اتفاق پديکې وي ، او په انسان كې دا بزدلى ولى راشى ؟ د اختلافاتو د وجه نه نو دا ځكه چه الله تعالىٰ د مؤمن صفت بيانوى نو فرمائى : ﴿ أَشِدَّآءُ عَلَى ٱلۡكُفَّارِ رُحَمَآءُ بَيۡنَهُمۡ ﴾ [2] " چه دوى به په كافرانو باندې سخت وى او په خپل مابين كې به د دوى تراحم وى " او په انسان كې دوه صفات دى ، يو پکې د غضب (غصې) صفت پروت دے ، چه دې دا صفت د دفاع دپاره استعمالوى ، او بل پکې رحم پروت دے ، اوس كه دا انسان د خپل عقل مطابق دا صفتونه استعمال كړى نو دا هلاک كيږى ، نو الله ددې دپاره معيار كيخودلو ، د غضب دپاره ورته محل كيخودلو كافر ، چه غضب خو به تهٔ خامخا استعمالوے ، داسې خو نشى كيدلې چه په تا كې غضب نهٔ وى ، لكه امام شافعى رحمه الله فرمائى : څوک چه د غوصې په خبره باندې غصه نشى نو دا خر دے ، او بل رحم به وى نو ددې دپاره ئې ورته محل مؤمن كيخودلو ، چه په مؤمن باندې به رحم كوے ، اوس كه انسان په مؤمن باندې غضب استعمال كړى نو دده غضب خو پوره شو نو د كافر دپاره څه برخه ( حصه ) پاتى نشى ، نو ضرور هغه كافر ته رحم متوجه شى نو بيا د كافر سره دوستى شروع كړى ، او چه په خپل مابين كې كله رحم استعمال نهٔ كړى نو دا به كافر ته لاړ شى ، او هر چه غضب پاتى شو نو هغه به مسلمان ته متوجه شى ، نو كه په خپل محل كې دې يو هم استعمال نهٔ كړو نو خامخا به درنه په هغه بل محل كې استعماليږى ، نو ددې وجې نه په انسان كې بزدلى پيدا كيږى ، او چه اختلافات پيدا شى نو غضب مؤمن طرف ته راشى او رحم كافر طرف ته لاړ شى ، نو د كافر په مقابله كې بيا انسان بزدله شى ، نو دا شو تفرق بين المسلمين ، او اسلام ددې ډير زيات اهتمام كوى ، الله تعالىٰ بطور احسان

---

[1] [ سورة الأنفال : ٦٠ ] .

[2] [ سورة الفتح : ٢٩ ] .

بيانوى فرمائى : ﴿ لَوْ أَنفَقْتَ مَا فِي ٱلْأَرْضِ جَمِيعًا مَّآ أَلَّفْتَ بَيْنَ قُلُوبِهِمْ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ أَلَّفَ بَيْنَهُمْ ۚ إِنَّهُۥ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٦٣﴾ ﴾ [1] " كه چرته تا هغه څه چه پدې زمكه كې دى دا ټول خرچ كړے وې نو تابه محبت نه وې راوستې په مينځ د زړونو د دوى كې لكن الله تعالىٰ د دوي په مينځ كې محبت راوستلو ځكه چه هغه زورور ذات دے او حكمتونو والا ذات دے " ، نو اسلام د دومره پورے اهتمام ددې خبرے كوى ، دارنګه ددې خبرے اهتمام دپاره رسول الله ﷺ اوفرمائيل : « **إِذَا بُويِعَ لِخَلِيفَتَيْنِ فَاقْتُلُوا الْآخِرَ مِنْهُمَا** » [2] " كله چه بيعت شروع شى د دوو خليفګانو دپاره په علاقه كې نو هغه روستنې ترينه قتل كړه " ، دا اسلام د اجتماعيت د ساتلو دپاره اوكړل ، چه د مسلمانانو اجتماعيت چرته خراب نشى ، هم دغه وجه ده چه اسلام بل امر اوكړو : « **من خرج شبراً من الجماعة فقد مات ميتة الجاهلية** » " څوک چه خارج شو په اندازه د يوے وليشت د جماعت دمسلمانانو نه نو دا مړ شو په مرګ د جاهليت باندې " په بل ځائى كې راځي « **مَنْ خَرَجَ مِنَ الْجَمَاعَةِ قِيدَ شِبْرٍ فَقَدْ خَلَعَ رِبْقَةَ الْإِسْلَامِ مِنْ عُنُقِهِ** » [3] " څوک چه د جماعت د مسلمانانو نه په اندازه د يو لويشت جدا شو نو دۀ د اسلام رسئ د خپل څټ نه ويستله " ، نو دا زورنه چه اسلام وركړه صرف ددې دپاره چه د مسلمانانو اجتماعيت په يو ځائى باندې پاتى شى ، او فرقې پكې پيدا نشى ، دغه شان په اسلام كې چه د بغاتو قتال واجب شو نو هغه هم ددې وجې نه واجب شو چه پدې سره د مسلمانانو مشن خرابيږى، هم دا وجه ده چه خليفه د مسلمانانو وى نو اسلام تاته امر كوى چه د خليفه د مسلمانانو اتباع كوه اګر كه هغه فاسق ولى نۀ وى ، البته : « **الا ان تروا كفرا بواحاً** » " مګر كه چرته تاسو وليدل چه دا ښكاره او صريح كفر كوى نو بيا ترينه بغاوت

---

1) [ سورة الأنفال : ٦٣ ] .

2) [ رواه مسلم ، رقم الحديث : ٣٤٤٤ ] .

3) [ مسند احمد ، رقم : ١٧١٣٢ ] .

اوکړئ "، نو خروج على الامام دپاره صرف دا شرط کيخودلو چه کفر بواح ئې اوکړو نو بيا خروج کولے شی ، ددې وجه نه ابن بطال رحمه الله وائی : « **ولو طرأ عليه الفسق لا ينعزل** » " که چرته په بادشاه باندې فسق طاری شو نو بيا به دا نۀ معزوله کيږی "، نو اسلام ددې دپاره دا خيال اوکړو چه د مسلمانانو اجتماعيت خراب نشی ، هم دغه شان شامی ملا وائی : چه کله د جهاد اعلان وشی نو تاسو اوځی سواء کان مستنصر عدلا او فاسقا برابره خبره ده که دغه امير عادل وی او که فاسق وی ، دغه شان يو حديث کې هم راځی فرمائی : « **جاهدوا مع كل بر وفاجر** » " د نيک سړی او فاجر سړی په صف کې تاسو قتال او جهاد کوئ " نو اسلام مسلمانانو ته د تفرق راتللو لار بنده کړه .

هم دې وجې نه د فقهى علماؤ دويمه جمعه په مسجد کې منع کړه ځکه چه د مسلمانانو په مينځ کې اختلافات پيدا کيږي ، او هم دا وجه ده چه د علامه ابن تيميه رحمه الله نه تپوس اوشو چه يو صف دے چه د هغې مجاهدين ټول فاجران او فاسقان دی نو مونږ د هغوی سره پدغه صف کې لاړ شو او که لاړ نشو ؟ نو هغه ورته په جواب کې اوفرمائی چه : « **وعدم الغزو مع عسكری الفجوری مذهب الحروريه ، فئة من فئة الخوارج** » [ مجموعة الفتاوىٰ ] "چه غزا نه کول ددې وجه نه چه دا عسکر او دا مجاهدين فجور کوی نو دا مذهب د حروريؤ دے او دا حروريه يو ډله ده د ډلو د خوارجو نه " ، نو اسلام د اتفاق او د اتحاد د مسلمانانو دومره خيال ساتی .

**دويمه خبره چه قومی غيرت دې**: نو ديته په اسلام کې حمية الجاهلية وئيلی شوے دے، لکه په قرآن کريم کې الله تعالىٰ فرمائی : ﴿ إِذْ جَعَلَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ فِى قُلُوبِهِمُ ٱلْحَمِيَّةَ حَمِيَّةَ ٱلْجَٰهِلِيَّةِ فَأَنزَلَ ٱللَّهُ سَكِينَتَهُۥ عَلَىٰ رَسُولِهِۦ وَعَلَى ٱلْمُؤْمِنِينَ وَأَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ ٱلتَّقْوَىٰ وَكَانُوٓا۟ أَحَقَّ بِهَا وَأَهْلَهَا ﴾ [1] " کله چه اوګرځولو هغه کسانو چه کافران وو په زړونو خپلو

[1] [ سورة الفتح : ٢٦ ] .

کې غیرت هغه غیرت د جاهلیت .... "، حمیت : غیرت ته وائی چه سړی پرې خپل حفاظت کوی نو پدې وجه باندې ورته غیرت وائی ، او جاهلیت څه ته وائی : نو چه کله رسول الله ﷺ مبعوث کیدو نو په دغه وخت کې هم وو او ددغه نه مخکې چه کوم دور وو نو هغې ته هم جاهلیت وائی ، څکه چه خلقو کې جهل پروت وو تیاره پکې پرته وه ، او الله تعالیٰ په قرآن کریم کې دیته جاهلیت اولی ویلې دے لکه فرمائی : ﴿ وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ ٱلْجَٰهِلِيَّةِ ٱلْأُولَىٰ ﴾ [1] " دا ښځې دې په خپلو کورونو کې کینی او دوی دې نه راوځی پشان د راوتلو د جاهلیت اولی " ، اوس دا خبره چه اوس بل جاهلیت شته او که نهٔ ؟ نو د حضرت ابن عباس ﷺ نه چا تپوس اوکړو چه آیا بل جاهلیت هم شته دے ؟ نو هغه ورته اوفرمائیل : « **مارأیت الاولی الا وله اخری** » " ما چرته داسې شی ندې لیدلې چه د هغې اول دې وی او بل دې نهٔ وی " ، اوس دا اول جاهلیت به مونږ څنګه پیژنو ؟ نو ددې د پیژندلو دپاره سید قطب په خپل کتاب کې د قرآن کریم نه استدلال کړے دے او هغه فرمائی : چه د جاهلیت دپاره څلور ارکان دی ، چه دا څلور ارکان کله هم موجود شو نو جاهلیت به بیا موجودیږی ، ۱/ حمیة الجاهلیة ، ۲/ حکم الجاهلیة ، ۳/ ظن الجاهلیة ، ٤/ تبرج الجاهلیة ، نو دا څلور ارکان چه چرته هم موجودیږی نو جاهلیت به هلته موجودیږی .

**۱/حمیة الجاهلیت** دیته وائی : چه هغه قومی غیرت دے ، لکه تا مخکې اوپیژندلو په مخکنی آیت کې .

**۲/ حکم الجاهلیة** : لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ أَفَحُكْمَ ٱلْجَٰهِلِيَّةِ يَبْغُونَ ۚ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ ٱللَّهِ حُكْمًا لِّقَوْمٍ يُوقِنُونَ ۝٥٠ ﴾ [2] " آیا دوی طلب کوی فیصلې د جاهلیت او څوک ډیر ښائسته دے د الله نه په اعتبار د حکم ( فیصلې ) سره دپاره د قوم یقین کونکی " ، **حکم الجاهلیت**

---

[1] [ سورة الأحزاب : ٣٣ ] .

[2] [ سورة المائدة : ٥٠ ] .

ديته وائى : چه د الله تعالىٰ د قانون نه په بل څۀ باندې فيصلې كول ديته حكم الجاهليت وائى ، دې وجې نه حسن بصرى ﷫ فرمائى : « **من حكم بغير الله فقد حكم بالجاهلية** » " چاچه د الله د قانون نه په بل څۀ باندې فيصله اوكړه نو ده فيصله اوكړه په جاهليت باندې " .

**٣/ ظن الجاهلية** ديته وائى : چه د حق په باره كې د قلت ( كم والى ) د وجه نه ته دا ووائى چه الله د دوى امداد نه كوى ، لكه هغوى ويل : ﴿ يَظُنُّونَ بِٱللَّهِ غَيۡرَ ٱلۡحَقِّ ظَنَّ ٱلۡجَٰهِلِيَّةِۖ يَقُولُونَ هَل لَّنَا مِنَ ٱلۡأَمۡرِ مِن شَيۡءٍ ﴾ [1] " په الله باندې گمان كولو پشان د گمان د جاهليت او دا به ئى ويلې چه آيا شته دے زمونږ دپاره نصرت نه څۀ شى " ، نو په معمولى شان تكليف باندې په الله تعالىٰ باندې بدگمانى كول دا ظن الجاهليت دے .

**٤/ بل دې تبرج الجاهلية** : لكه د ښځو راوتل شو چه هغه مخكې آيت كې تاته دا خبره معلومه شوه ، نو دا څلور اركان په جاهليت كې موجود وو ، نو دغه اركان چه كله په يوه معاشره كې موجود شى نو دا بيا جاهليت اخرىٰ دے ، نو اوس حمية الجاهليت ته گوره چه په قوم كې هم شته او په حكمران طبقه كې هم شته ، لكه اكثر دوى دا خبره كوى چه د ټولو نه اول مُلک او وطن دے نو ددې وجه نه نن دغه نام نهاد اسلامى ملكونو حكمران طبقه كې دغه قوميت راغلے دے ځكه خو د خپل مُلک جوړولو دپاره بل ملک ورانوى دغه حمية الجاهلية دے او نو پدې سره وحدت د مسلمانانو ختميږى او ددې ډير مثالونه دي كه نن صبا ته گورے كنه دغه مسلمانان ملكونه خپل مينځ كې څومره وران دي او د يو بل خلاف استعماليږي او په هر وخت كې ددې مثال شته . فتدبر ! !

بل حمية الجاهلية دا ډير نقصانى څيز دے ، لكه علامه ابن تيميه ﷫ عليه فرمائى : « **كل ما خرج عن دعو الاسلام والقرآن ، من نسب ، او بلد او جنس او مذهب او طريقة فهو من عذاء الجاهلية** » .

---

[1] [ سورة آل عمران : ١٥٤ ] .

" هر هغه شی چه هغه خارج وی د دعوے د اسلام نه او د دعوې د قرآن نه ، که هغه نسبي دعوه وی ، یا د ښار دعوه وي ، یا د جنس دعوه وی ، یا د مذهب دعوه وی ، او یا یوے لارے او طريقه دعوه وی نو دا د نسبت جاهلی نه دے " ، بیا وروسته پخپله فرمائی : «
**بل لما اختصم مهاجری وانصاری فقال المهاجری یا علی المهاجرین وقال الانصاری یا علی الانصار فقال النبی صلی الله علیه وسلم اتدعوا الجاهلیة وانا بین اظهرکم وغضب لذالک غضباً شدیداً »**

" بلکه هر کله چه جګړه وکړه یو مهاجری او انصاری نو مهاجر اووئیل : اے مهاجرینو راشی زما مدد اوکړئ ، او انصاری اووئیل : اے انصارو راشی زما مدد اوکړئ ، نو نبی کریم ﷺ اوفرمائی : آیا په دعوه جاهلیت باندې تاسو بلنې شروع کړے او زه ستاسو په مابین کې موجود یم او غصه شو پدې باندې سخت غصه " ، نو په حمية الجاهلیت باندې رد اوکړو.

نبی کریم ﷺ فرمائی : « **لَيْسَ مِنَّا مَنْ دَعَا إِلَى عَصَبِيَّةٍ وَلَيْسَ مِنَّا مَنْ قَاتَلَ عَلَى عَصَبِيَّةٍ وَلَيْسَ مِنَّا مَنْ مَاتَ عَلَى عَصَبِيَّةٍ** » [1] " زمونږ نه ندي هغه څوک چه عصبيت طرف ته دعوت ورکوی او هغه څوک چه جنګ کوی په عصبيت باندې" ، بل ځائی کې پيغمبر عليه السلام اوفرمائيل : « **إِنَّ اللَّهَ أَوْحَى إِلَيَّ أَنْ تَوَاضَعُوا حَتَّى لَا يَبْغِيَ أَحَدٌ عَلَى أَحَدٍ وَلَا يَفْخَرَ أَحَدٌ عَلَى أَحَدٍ** » . [2]

٣/ **نقصان** : **الفخر والغرور والتكبر بغير حق** : بل نقصان د قوم پرستئ هغه فخر دے غرور دے تکبر دے بغير د حق نه ، لکه رسول الله ﷺ فرمائی : « **إِنَّ اللَّهَ قَدْ أَذْهَبَ عَنْكُمْ عصبِّيَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ وَفَخْرَهَا بِالْآبَاءِ إِنَّمَا هُوَ مُؤْمِنٌ تَقِيٌّ أَوْ فَاجِرٌ شَقِيٌّ النَّاسُ كُلُّهُمْ بَنُو آدَمَ وَآدَمُ خُلِقَ مِنْ تُرَابٍ** » [3] " تاسو نه الله تعالیٰ د جاهلیت هغه عصبيت ختم کړو، او هغه فخر په پلارانو

---

1 [ سنن أبي داؤد ، رقم : ٤٤٥٦ ] .

2 [ سنن أبي داؤد ، رقم : ٤٢٥٠ ] .

3 [ سنن الترمذي ، رقم : ٣٨٩٠ ] .

ئ درنه ختم کړو يا به اوس يو مؤمن وی تقوی دار به وی او يا به فاجر وی بدبخته به وی ، ټول خلق د آدم عليه السلام اولاد دی او آدم عليه السلام الله د خاورے نه پيدا کړے دے نو نشته فضيلت د عربي په عجمی باندې مګر په تقوی ".

ددې وجه نه نبی کريم ﷺ اتفاق طرف ته اشاره کولو کې فرمائی : «**الْمُؤْمِنُ لِلْمُؤْمِنِ كَالْبُنْيَانِ يَشُدُّ بَعْضُهُ بَعْضًا وَشَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ**» [1] " يو مؤمن د بل مؤمن دپاره داسې دے لکه ابادی د بعضو دپاره د بعضو او تشبيک ( د يو لاس ګوتې بل لاس ګوتو کې ) ئ اوکړو " نو د ايمان اتحاد پکار دے ، دغه شان لکه څنګه چه ويلی کيږی چه « الکفر ملة واحد » نو دا رنګه د اسلام په باره کې نبی کريم ﷺ فرمائی : «**مَثَلُ الْمُؤْمِنِينَ فِي تَوَادِّهِمْ وَتَرَاحُمِهِمْ وَتَعَاطُفِهِمْ مَثَلُ الْجَسَدِ إِذَا اشْتَكَى مِنْهُ عُضْوٌ تَدَاعَى لَهُ سَائِرُ الْجَسَدِ بِالسَّهَرِ وَالْحُمَّى**» [2] " د مسلمانانو د يو بل سره د محبت او د رحمت او د يو بل ته د نرمئ مثال داسې دے لکه مثال د يو بدن دے چه يو اندام هم په تکليف باندې وی نو ټول بدن د هغې دپاره ويخ وی او په تکليف وی " نو دا د اتفاق او اتحاد د وجې نه ، نو دغه شان اتفاق په مؤمنانو کې پکار دے .

دغه شان په يو روايت کې راځی چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل : « **ان الله امر يحی بن الزکريا بخمس ان يعمل بهن ويأمر بنی اسرائيل ان يعملوا بهن فذکرها ، ثم قال وانا آمرُکم بخمس الله امرنی بهن : السمع والطاعة ، والجهاد ، والهجرة ، والجماعة ، فان من فارق قيد شبرا فقد خلع ربقة الاسلام من عنقه الا ان يراجع ومن دعا بدعوا الجاهلية فهوا من جثا جهنم قيل يارسول الله وان صلی وصام ؟ قال : وان صلی وصام وزعم انه مسلم فادعوا بدعوا الله ياخيل الله ارکبی الذی سماکم المسلمين المؤمنين عباد الله يامعشر قريش اشتروا انفسکم من الله لا**

---

[1] [ رواه البخاري ، رقم : ٢٢٦٦ ، ومسلم ، رقم : ٤٦٨٤ ] .

[2] [ رواه مسلم ، رقم : ٤٦٨٥ ] .

اغنى عنكم من الله شيئا » .

” يقيناً الله تعالىٰ امر کړے وو يحىٰ عليه السلام ته چه څوی د زکريا عليهم السلام وو په پنځه څيزونو باندې چه پدې باندې ښځپله هم عمل اوکړی او بنی اسرائيلو ته هم امر اوکړی چه هغوي پدې باندې عمل اوکړی او بيا پيغمبر عليه السلام هغه ذکر کړل ، بيا ئې اوفرمائيل : او زه هم تاسو ته امر کوم په هغه پنځه څيزونو باندې چه الله تعالىٰ ماته په هغه پنځه څيزونو باندې امر کړے دے ، ( نو هغه پنځه څيزونه دا دي : ١/ خبره اورئ او اطاعت کوئ ( يعنی د امير اطاعت کوئ ، د خليفه اطاعت کوئ ، د پيغمبر اطاعت کوئ د الله اطاعت کوئ ) ، ٢/ او جهاد کوئ ( يعنی جهاد مهٔ پريږدئ ) ٣/ بل هجرت کوئ ( يعنی کوم ځائی کې چه تاسو ته د دين په دائره کې زندګی ګرانه شی نو د هغه ځائی نه هجرت اوکړئ ) ٤/ او د جماعت سره متفق اوسيږئ ( يعنی اختلافات مهٔ کوئ ) ځکه هغه څوک چه هغه جدا شو په اندازه د يو لويشت د جماعت نه نو هغهٔ د خپل څټ نه د اسلام رسئ اوباسله ، مګر که چرته دا واپس شی جماعت ته ، او چا چه قوميت طرفته بلنه اوکړه نو هغه د جهنم سکروټه ( سکروټه يعنی لرګې اوسوزوے او کوم څيز چه ترينه پاتی شی هغې ته جڼ وائی ) نو د رسول الله ﷺ نه تپوس اوشو اګر که هغه انسان مونځ کوی او روژه نيسی ؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل : اګر که دا مونځ کوی او روژه نيسی او دا ګمان کوی چه زهٔ خو مسلمان يم ، نو دعوت کوئ تاسو الله تعالىٰ طرف ته ، او وائی : اے د الله شاه سوارانو سواره شئ ، هغه ذات چه نوم ئې درکړے دے د مؤمنانو او مسلمانانو اے د الله بندګانو ، او رسول الله ﷺ اوفرمائيل : اے د قريشو ټولګيه ! په الله باندې خپل نفسونه خرڅ کړئ په بدل د جنت کې ځکه چه زه تاسو د الله تعالىٰ د عذاب نه نشم بچ کولې “ ، نو فخر او تکبر او غرور اسلام ختم کړو او د جهنم سکروټه ئې ترينه جوړه کړه ، او وائی : تواضع اوکړئ لکه چه دا خبره مخکې مونږ واضحه کړه، او تکبر پدې باندې مهٔ کوئ .

**٤/ نقصان**: **انها سلّمٌ الی موالات الکفار القومیین والاستنصار بهم علی العدو القومیین من المسلمین وغیرهم** : بل نقصان د قوم پرستئ هغه دا دے چه دا زینه ( اندرپایا ، پوړئ) ده د کافرانو دوستئ طرفته هغه چه قومی کافران او ته به د دوی مدد کوے په دشمن د قومی باندې د مسلمانانو او وغیره د هغوی نه ، نو دا د قوم پرستئ د وجه نه راځی ، ځکه ته به د قوم تابعداری کوے نو پدې سره حکم الجاهلیة راځی او د الله تعالیٰ قانون به پاتی شی .

**٥/ نقصان** : چه په قوم پرستئ سره حکم الجاهلیت راځی د الله په کتاب باندې به فیصلې ستا نه پاتی کیږی ، ځکه چه کله ته قومیت طرف ته دعوت ورکوے او خلق راجمع کړے د قومیت د جهنډے د لاندې نو یو اجتماع به جوړه شی او په هغې اجتماع کې به تاسره قومی کافران وی لکه زمونږ او ستاسو ملکونو کې ورته اقلییاتو والا وائی ، او هغه قومی کافران دا نهٔ خوښوی چه د الله په قانون دې فیصله اوشی ، ځکه چه هغه خو د الله تعالیٰ د قانون نه منکر دے ، نو تهٔ به د دوی دپاره داسې یو قانون کورے چه دا ددې قومیت د جنډې نه منتشر ( خور وور ) نشی ، نو په قرآن خو فیصله ځکه نشی کولے چه قرآن خو هغوئ نهٔ منی ، نو د الله د قانون نه بغیر په بل قانون به تهٔ فیصلې شروع کړے ، نو لوی نقصان د قومیت د وجه نه راغلې ، نو کله چه قومیت په انسان کې راشی نو د الله قانون د انسان نه بیا پاتی کیږی .

**بعضی اشکالات او د هغې جوابات: ١/ اشکال او اعتراض** : چه بعضی خلق دا وائی : چه مونږه دا خلق د قومیت د جهنډې د لاندې ځکه راجمع کوو که چرته مونږه د جهنډې د اسلام د لاندې راجمع شو نو په مونږ باندې به د اسلام دشمنان غصه شی او مونږ سره به ئی کینه پیدا شی او مونږ ته بیا خپل حقوق نهٔ راکوی ، او هغوی به بیا په مونږ باندې جنګ شروع کړی ددې دپاره چه هسی نهٔ چه دوی د اسلام د حریت دپاره استعداد جوړ نکړی ، نو ددې وجه نه مونږ د اسلامی جهنډې د لاندې نهٔ راجمع کیږو او قومیت طرف ته دعوت ورکوو .

**١/ جواب**: دا خبره چا کړے چه د اسلام دشمنان مهٔ غصه کوه ، الله تعالیٰ خو فرمائی :

﴿ يُعۡجِبُ ٱلزُّرَّاعَ لِيَغِيظَ بِهِمُ ٱلۡكُفَّارَ ﴾ [1] الله فرمائي : چه كافران غصه كړه ، نو دوى وائي كه چرته مونږ كافران غصه كړل نو مونږ نه به خپل حقوق منع كړى ، خو مونږ وايو چه نۀ حقوق درنه نشى منع كولے ، ځكه چه كله د مسلمانانو اجتماع راشي په اسلام باندې او د الله په رسئ باندې منګولې اولګوى او د الله شريعت حاكم كړى ، او د خپلو دشمنانو نه جدا شى او هغوى ته په عداوت او بغض سره صراحت اوكړى چه زمونږ تاسو سره دشمنى ده نو دا د الله جل جلاله د امداد سبب دے او په دغه وخت كې د الله امداد راځي ، او دا وسيله ده چه الله تعالىٰ د كافرانو په زړونو كې رعب اوغورځوى ، او بيا په دغه رعب سره ته د دوى نه خپل حقونه حاصل كړے ، لكه زمونږه اكابرو ( صحابه كرامو او تابعينو ) چه حاصل كړى وو ، هغوى د دوى نه د قوميت په نعرے سره د دوى نه حقونه نه وو حاصل كړى بلكه په زور سره ئې ترينه غوښتى وو او د اسلام د جهنډې د لاندې ولاړ وو .

**۲/ اعتراض**: په عربو كې يوه پالټى ده عرب نشنليزم هغوى ناشنا اعتراض كوى : وائي چه دا كوم خلق چه مونږ پدې قوميت باندې بد ګڼرى نو دا په حقيقت كې د دوى عرب ندى خوښ او عربو ته خو الله فضيلت وركړے دے ځكه چه عربو خو د اسلام دپاره ډيرے زياتې قربانئ وركړى دى ،

**جواب**: مونږ ورته دا وايو چه مونږ خو د عربو د قربانيو نه انكار ندے كړے په فضيلت د عربو باندې امت اجماع كړے ده ، او بيا په فضيلت د قريشو باندې امت خصوصى اجماع كړيده ، چه عرب افضل دى ، خو ليكن دا عربيت ته افضليت د اسلام د وجې نه راغلې وو، او ددې وجه نه دا فرق خو نبي كريم ﷺ پخپله ختم كړيدے فرمائي : « **لافضل لعربي على عجمى ولا لعجمى على عربي** » او بيا رسول الله ﷺ فرمائي : « **لاتسبوا العرب لأَنِّي عَرَبِيٌّ**،

---

[1] [ سورة الفتح : ۲۹ ] .

**وَالْقُرْآنَ عَرَبِيٌّ، وَلِسَانَ أَهْلِ الْجَنَّةِ عَرَبِيٌّ»** [1] "عربو ته كنځل مه كوئ ځكه چه زۀ يکې راغلې يم او قرآن هم عربئ ژبه کې دے او د جنتيانو ژبه به هم عربي وى "، نو عربو ته چه فضيلت ملاؤ شو نو دا د قوميت د وجې نه ندې ملاؤ شوے بلكه دا خو د اسلام د وجه نه ورته ملاؤ شوے دے .

او دا كوم خلق چه دا اعتراض كوى نو هغوى بيا يو حديث پيش كوى چه حديث کې راځي : « **اذا ضلت العرب ضل الاسلام** » "كله چه عرب ذليله شي نو اسلام به هم ذليله شي" وائى : اوګوره چه د عربو په ذلت باندې د اسلام ذلت راځي نو ددې نه معلوميږى چه د عربو قوميت دا صحيح قوميت دے ؟

**جواب**: ددې حديث په سند کې يو راوى دے محمد بن خطاب او دده په باره کې علامه ذهبي رحمه الله په " الميزان " کې فرمائى : قال ابو حاتم : لا اعرفه ، " ابو حاتم فرمائى : چه دا محمد بن خطاب خو زۀ نۀ پيژنم چه دا لاخوک دے " ، او د محدثينو دا علامه ده چه كله يو سړے ضعيف ګرځوى نو د هغې په باره کې داسې جمله استعمالوى ، دغه شان علامه ازدى رحمه الله فرمائى : « **منكر الحديث** » "چه دا حديث خو منكر دے " چه دا دحديثو يوه مرتبه ده، چه حديث د ثقه راويانو سره مخالف راشي نو هغې ته منكر وائى ، نو ددې راوى چه محمد بن خطاب دے چه هميشه حديث د معتمد راويانو نه مخالف راوړى ، نو پدې وجه باندې دې حديث لره اعتبار نشته ، او بل ددې حديث په سند کې يو بل راوى دے چه زيد بن جدعان نوم ئې دے ، او ددې زيد بن جدعان په باره کې راځى چه ، دا «**ضعيف عند جمهور المحدثين** » چه د اكثريت محدثينو په نيز باندې دا راوى ضعيف دے ، او د محمد بن خطاب په باره کې صرف علامه حبان رحمه الله وائى : چه دا راوى ثقه دے ، خو ابن حبان لره محدثين اعتبار نۀ وركوى ځكه چه دا د متساهلينو نه دے ، چه دا په حديثو کې تساهل كوى او اكثر په راوى

[1] [ المستدرک على الصحيحين للحاكم ، رقم : ٧٠٠٠ ] .

باندي ستركي پتې كړی ، او دا نور محدثين نقد په صحيح طريقي سره كوی چه دا صحيح دے او دا غلط دے ، او هر چه زيد بن جدعان دے نو د هغه په باره كې راځی چه : «**لايحتج بحديثه لو سلم الاسناد من غيره**» " چه دده په حديثو باندي استدلال نهٔ كيږي حجت پرې نشی نيولې، او كه چرته نور سند برابر وو او دا پكې وو نو بيا هم په هغې سند باندي استدلال نهٔ كيږی" ، نو حديث ددې وجه نه ضعيف دے او كمزورے دے .

**۲/ جواب**: دا حديث خو د نصوص نه هم مخالف دے ځكه قرآن كې الله تعالىٰ فرمائی :

﴿ وَإِن تَتَوَلَّوۡاْ يَسۡتَبۡدِلۡ قَوۡمًا غَيۡرَكُمۡ ﴾ [1] " كه چرته تاسو اعراض اوكړو نو بيا به زه بل قوم راولم " ، يو كتاب دے " القومية العربيه فى ضوء الاسلام واقح " كې دا ليكلی دی : چه دا خو عجيبه خبره ده چه دوی د قوميت دعوت چلوی او بيا فرمائی : چه اسلام به ذليله كيږی د عربو په ذلت سره نو دغه عرب په بدر كې ( مشركين ) ذليله شو او بيا هم اسلام ته عزت ميلاؤ شو ، بيا په احد كې دغه عرب زورور شو ظاهری عزت ئې واغستلو او اسلام په ظاهری شكل كی كمزوريت واخستلو ، نو دا خبره خطا ده چه د عربو په ذلت سره د اسلام ذلت راځی ، نو دا د قوميت هغه دا عيان دی چه خپل قوم طرف ته دعوت وركوی ، دا يوازے عرب دا خبره نه كوی بلكه په نورو خلقو كې هم دا مرض پروت وی ، اعاذنا الله من ذلك .

نو دا مخكې چه كوم نقصانات ذكر شو نو دا هغه نقصانات دی چه د قوم پرستئ د وجه نه په انسانانو كې راځی او پيدا كيږی ، او پدې سره دې موضوع ته اختتام وركوو .

وبالله التوفيق .

* * * * * * *

---

[1] [ سورة محمد: ٣٨ ] .

## 5 / موضوع

## منهج الدين بناء على الحق لا على الكثرة

## د اكثريت پرستۍ موضوع ( اوله حصه )

د دين دا طريقه او دا منهج په حق باندې بناء دے ، په کثرت او په تعداد باندې ندے بناء، لکه څرنګه چه موجوده انتخاباتو والا خلق کوی ، نو دا په کمال او په عقل او حقانيت باندې بناء دے، او دی موضوع ته په اردو کې مونږ نوم ورکوو " اکثريت پرستی يا حق پرستی " چه مونږ به اکثريت پرستی کوو او که حق پرستی ، لکه اکثر خلق ديته ګوری چه دې طرف ته خلق ډير دی نو بس دا غالبه دی نو هم هغه طرف ته اوړی ، نو دا هم يو پاټک دے په لاره د حق کې چه هغه اکثريت پرستی ده نو خيال کوه چه چرته پدې لاره باندې روان نشی ځکه دا لاره هم بل خواته تلې ده ، ته خپل مقصود ته نۀ رسيږے پدې لاره باندې ، نو مونږ غواړو چه پدې موضوع باندې څۀ نا څۀ رنړا واچوو ترڅو چه مونږ او تاسو پدې باندې خبر شو چه دا لاره هم خطاء ده .

او هر چه دا موضوع ده " اکثريت پرستی " نو دا د يو غټ نظام په شکل کې موجوده ده ، خو دا موضوع به ان شاء الله تعالیٰ لږه مفصّله ذکر کوو ځکه چه نن صبا دا ډيره زياته موجوده ده زمونږ او ستاسو پدې زمانه کې ، او بل دا چه ددې نه مخکې څۀ دی چه هغه پدې موضوع پسې خاص ندی خو خلق ئې پدې موضوع کې استعمالوی نو هغه به ورسره هم څۀ ناڅۀ واضحه کړو د الله په توفيق سره .

لکه مثلاً : مسئله د طاغوت شوه ، يا مسئله د تحکيم القوانين شوه ، يا هغه مسئله د سيکولرزم شوه ، يا مسئله د ډيموکراسی شوه ، نو دا به ورسره ورسره هم واضحه کوو ان شاء الله .

اکثريت پرستی ديته وائی : چه د اکثريت تابعداری کول ، دا د انسان د بزدلۍ علامه ده چه چرته ډير مومی نو بيا دا هغه طرف ته زور کوی ، لکه د ماشومانو مثال ئې دے چه کله يو

نر ماشوم میدان ته راشي نو وائی چه ماسره به څوک وی ، او چه کله یو بزدله ماشوم میدان ته راشی نو وائی چه زۀ به د چا سره یم ، نو دا خبره د بزدلۍ یوه علامت ده د اکثریت پرستی .

او دا اکثریت پرستی په حقیقت کې د فطرت اسلامی نه هم مخالفه ده ، الله سبحانه وتعالیٰ چه کله انسان دې دنیا ته رالیږلو نو دا خو بطور خلیفه راولیږلو ، نو د خلیفه کار خو به تنفیذ الاحکام وی او ددې دپاره دا لازمی ده چه دا دې یو حکومت جوړ کړی ، او بیا دا نظام او حکومت به بیا دا په کومه طریقه باندې چلوی ، ددې د چلولو دپاره دۀ ته نقشه پکار ده ، اوس دغه نقشه الله تعالیٰ دۀ ته ورکوی او ددۀ پدې بدن کې ورته ورکوی ، ځکه منطقیان وائی چه د انسان په خپل بدن باندې علم حضوری دے ، نو دا نقشه ورته پدې بدن کې دننه ایږدی او دا ځکه چه د دۀ علم پرې هر وخت راتلې شی ، او چه دا چرته دهوکه نشی نو ځکه ورته الله تعالیٰ دا نقشه ددۀ په دې بدن کې ایږدی ، او دا بدن وړوکې عالَم دے لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَفِيٓ أَنفُسِكُمۡۚ أَفَلَا تُبۡصِرُونَ ﴾ [1] ، او یو شاعر وائی :

**تظن بأنک جِرمٌ صغیر ... وفیک انطوی العالَمُ الاکبرُ**

" ستا په ځان باندې دا ګمان دے چه زۀ خو یو وړوکې غونته جسم یم ، په تاکې یو غټ عالَم رابند شوے دے " ، او که د دغه عالَم تفصیلات ګورئ نو بیا تفسیر کبیر اوګورئ ، چه د دغه آیات د لاندې هغه بیا ډیر زیات تفصیلات شروع کړیدی او ډیر زیات ئې بیان کړیدی، خو اوس پدې انسان کې الله تعالیٰ نقشه کیخودله په انسان کې ئې دوه څیزونه کیخودل ، ۱/یو طرف ته نفس شو ، چونکه د ده به خارجی عالَم کې مقابله وی نو په نفس کې هم ورته مقابله کیخودله ، ځکه خارجی عالَم کې هر څۀ کې تقابل دے ، لکه رڼا نو ورسره مخامخ تیاره هم شته دے ، که علم شته نو مقابله کې ورسره جهل هم شته ، که اسلام شته نو په مقابله کې ورسره کفر هم شته ، ددې وجه نه علماء کرام فرمائی : چه دنیا مجموعه د اضداد ده چه د هر شی خپل ضد شته دے ، نو دغه شان په انسان کې نفس او عقل پریوتل د دوی

---

[1] [ سورة الذاریات : ۲۱ ] .

مقابله شوه ، يو وائي چه په بدن باندې زۀ حکومت کوم ، بل وائی چه نۀ دغه حکومت ستا حق ندې دا به زۀ کوم ، نو دواړو خپل مينځ کې اختلاف شروع شو ، لکه دلته اوس مونږ سره دوه نظامونه دی يو نظام د جمهوريت دے اکثريت پرستئ نظام دے ، او يو نظام د خلافت دے چه هغه مبنی دے په کمال باندې ، اوس چه ته اوګورے چه په نظام د جمهوريت او اکثريت کې نو نفس کې غضب شته قوت غضبانی ، نو دا ووټ نفس لره ورکوی ، ځکه چه غضب راشی نو عقل ختميږی نو دا د نفس سره ولاړ دے ، دارنګه قوت شيطانی دا هم د نفس سره ولاړ دے ، قوت شهوانی دا هم د نفس سره ولاړ دے ، قوت حيوانی لکه خوراک سکاک وغيره دا هم د نفس سره دے ، دا ټول د نفس سره ولاړ دی ، او عقل دا قوت عقلانی دے يکې يو دے نور ورسره هيڅوک هم نشته ، نو که په اکثريت باندې فيصله کوے نو حاکم د بدن هغه نفس ګرځی.

**اوس راشه چه قرآن څه فيصله کوی** ، په قرآن کې الله تعالیٰ فيصله کوی لکه قرآن کې چه الله تعالیٰ خطاب کوی نو عقل ته ئې کوی ځکه خلق چه خبره کوی نو د حاکم سره ئې کوی نو ځکه الله تعالیٰ فرمائی چه : « **افلا تعقلون** » او نفس په هيڅ کې هم نۀ حسابوی ، دارنګه فرمائي : ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَذِكْرَىٰ لِأُولِي ٱلْأَلْبَٰبِ ﴾ [1] " پدې آيتونو کې نصيحت دے دپاره د صاحبانو د عقل " نو د الله تعالیٰ ددې کلام نه مونږ ته پته اولګيدله چه حاکم په بدن باندې عقل شو اکثريت ته هيڅ اعتبار ميلاؤ نشو .

**اوس راشه احاديثو مبارکوؤ ته** ، پيغمبر عليه السلام فرمائی : « **ان اعدی عَدُوِّکَ نفسک الذی بين جنبيک** » " يقيناً لوئی دشمن په دشمنانو کې هغه ستا نفس دے چه په مابين د دوه جانبينو کې راګير دے " نو دا نفس ډير خطرناک څيز دے ، نبي کريم ﷺ ستا دشمن اوګرځولو چه دا ستا دشمن دے او دشمن خو څوک په ځان باندې حکمران نۀ ګرځوی ، نو

---

[1] [ سورة الزمر: ٢١ ].

د دغه ځائی نه پته اولګیدله چه د نفس حکمرانی نشته ، اګر چه اکثریت د ده تابع دے لکه خواهشات ، شهوات ، قوت شیطانی وغیره خو بیا هم اکثریت رد شو .

**اوس راشه چه عقلاء څه وائی** : عقلاء فرمائی : « **طوبى لمن كان نفسه اسيرا وعقله اميرا** » ''مبارکی ده هغه چالره چه هغه خپل نفس بندی ګرځولې وی او عقل ئی امیر او بادشاه ګرځولې وی ، او بیا وائي : « **سوءا لمن كان عقله اسيرا ونفسه اميرا** » '' بدبختی ده هغه چا لره چه عقل ئی بندیوان وی او نفس ئی امیر وی '' ، نو ددې نه مونږ ته معلومه شوه چه اکثریت څۀ فائده نشی کولے ، لکه د نفس سره ډیر اکثریت وو خو الله ورلره هیڅ اعتبار ورنۀ کړو .

اوس الله تعالیٰ عقل هم داسی نۀ پریږدی بلکه دۀ ته به د خارجی رنړا ضرورت وی نو د خارجی رنړا دپاره ئی ورته قرآن او پیغمبران راولیږل ، او ورته ئی اووئیل : چه د دغه پیغمبرانو او د قرآن مطابق تۀ حکومت کوه ، او که صرف په خپل ځان باندې اعتبار کوے نو بیا به تباه کیږے ، لکه یو شاعر وائی : « که په عقل لار موندې شوه بې د فضله ... چا به ضال نۀ ویلې ابو علی سیناء ته » ابو علی سیناء څومره عاقل انسان وو خو لاړو ګمراه شو ځکه چه د الله معرفت ئی د پیغمبر د واسطې نه بغیر حاصلولو نو الله پاک هلاک کړو ، نو صرف په عقل باندې به هم کار نۀ چلوے هغې ته به د خارجی آئیـن ضرورت وی ، نو هغه آئین به ورلره الله رالیږی ، نو مونږ چه پدې خپل بدن کې سوچ اوکړو نو اکثریت پرستئ ته هیڅ ضرورت نشته په اسلام کې ، ځکه اکثریت پرستی باطل شے دے ، ته ګمراهی ته رسوی .

او کمال په اسلام باندې حاصلیږی ، نو دا د اکثریت پرستئ متعلق بحث وو چه تا ولیدلو دا صرف ددې موضوع ابتداء وه ، چه اکثریت پرستی د فطرت اسلامی خلاف څیز دے .

**اوس په اکثریت پرستئ باندې د انبیاء کرامو د نهج نه دلائل**: د قرآن کریم نه دلائل پیش کول ، بیا د صحابه کرامو نه ، بیا د تابعینو او تبع تابعینو نه دلائل پیش کول د دې په بطلان باندې چه اکثریت پرستی باطل شی دے :

۱/ نهج د انبیاء کرامو علیهم السلام نه دلائل : نوح علیه السلام ته اوګوره چه ( 950 ) کاله دعوت ئې وچلولو ، او ددې دومره دعوت باوجود د نوح علیه السلام سره ۸۲ کسان مسلمانان شول او باقی ټوله دنیا کافره ده ، اوس که چرته اکثریت پرستی وے او نوح علیه السلام ووټونه کولے نو ووټونه به قوم ګټلې وے ، که د رائې خبره راغلې وے نو رائې خو قوم ګټله ، نو نوح علیه السلام د اکثریت تابع نشو ، بلکه د کمال او د حقانیت تابع شو ، نو د اکثریت پرستئ بوټ اولنې نوح علیه السلام مات کړے دے .

اوس ابراهیم علیه السلام ته اوګوره چه یک تنها دے او د خپل قوم سره مناظره کوی او یکې یواځې خپل قوم ته دعوت د لاإلٰه الا الله چلوی ، نو که د اکثریت پرستئ تابعداری ئې کولے نو ټول قوم د هغه خلاف وو تردې چه مور او پلار ئې هم خلاف او ابراهیم علیه السلام یواځې دے .

دارنګه لوط علیه السلام اوګوره : په خپل قوم کې یکې یواځې دے او دعوت ئې ورکولو ، دغه شان د هود علیه السلام قوم مخالف دے ، دغه شان صالح علیه السلام اوګوره : چه ټول قوم ترې مخالف دے او ورته وائې : ﴿ قَالُواْ يَٰصَٰلِحُ قَدۡ كُنتَ فِينَا مَرۡجُوّٗا قَبۡلَ هَٰذَآۖ أَتَنۡهَىٰنَآ أَن نَّعۡبُدَ مَا يَعۡبُدُ ءَابَآؤُنَا وَإِنَّنَا لَفِي شَكّٖ مِّمَّا تَدۡعُونَآ إِلَيۡهِ مُرِيبٖ ۝٦٢ ﴾ [1] ، نو اوګوره صالح علیه السلام یواځې هغوی د هغهٔ د عقل نه هم انکار اوکړو ددې دعوت په باره کې ، چه د دومره اکثریت په مقابل کې ته د یو اجنبی طرف ته خلق را دعوت کوے ، نو دا د اکثریت پرستئ مقابله وه چه صالح علیه السلام کوله .

---

[1] [ سورة هود : ٦٢ ] .

دغه شان موسى عليه السلام اوګوره : چه يواځې دے او مقابل کې فرعون او د هغه لښکر دے ، موسیٰ عليه السلام د دعوت دپاره راځې ټول دربار مخالف او موسیٰ عليه السلام يواځې ودريږى او ورور ورسره دے او دوى دعوت ورکوى فرعون او د هغه دربار والاؤ ته ، نو که بالفرض فرعون ورته وئيلى وے : چه راځئ ووټونه کوو نو فرعون نه چا ګټلے فرعون به ګټلے وے .

اصحاب کهف والا ته اوګوره : چه ځوانان يو څو کسان دى ، او د بادشاه په دربار کې ودريږى او څومره په غيرت سره خبره کوى هغوى د دليل تابعدارى کوله د اکثريت تابعدارى ئې نۀ کوله ، او ددې اصحاب کهف بيان ته اوګوره چه د قوميت او اکثريت په باره کې خبره نۀ کوى چه قوم ټول مخالف دے ، او تاريخ دا خبره ليکلے ده چه کله دوى د بادشاه په دربار کې ودريدل نو ټول قوم د دوى تماشى ته راجمع شوے وو ، او چه کوم ځوان پکې تقرير کوى نو فرمائي : ﴿ هَٰٓؤُلَآءِ قَوۡمُنَا ٱتَّخَذُواْ مِن دُونِهِۦٓ ءَالِهَةٗۖ لَّوۡلَا يَأۡتُونَ عَلَيۡهِم بِسُلۡطَٰنِۭ بَيِّنٖۖ فَمَنۡ أَظۡلَمُ مِمَّنِ ٱفۡتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبٗا ۝١٥ ﴾[1] ، ددې دې غيرتى بيان ته اوګوره چه وائى دا ټول زمونږ قوم دے او د الله نه بغير ئى نور آلهه نيولى دى نو دوى دې ښکاره دليل راوړى چه دا په حق معبودان دى ، نو که اکثريت دليل وے نو دوى به دا خبره کړے وه چه دا دومره ډير خلق راجمع دى نو دا دليل دے ، خو دوى د اکثريت دليل رد کړو او ورته ئى اووئيل : چه مونږ ته دې پدې باندې واضح دليل وښائى اکثريت بالکل دليل نشى کيدلې ، نو بادشاه ورته په غُصه شو او دا خلق حکومت ته مطلوب شول نو تر نن پورے ورک دي .

دارنګه عيسیٰ عليه السلام ته اوګوره : چه په خپل قوم کې يک تنها دے ، مريم چه د عيسیٰ عليه السلام مور ده ، ټول قوم ورته مخالف شو چه دا تا څۀ وکړل ( والعياذ بالله ) ، نو عيسیٰ عليه السلام ورته جواب ورکوى ، او بيا دغه عيسیٰ عليه السلام په خپل قوم کې تن تنها پاتې شو .

---

1) [ سورة الکهف : ١٥ ] .

راشه اوس پیغمبر علیه السلام ته : چه د خپل کور نه یواځې دے ، او چه کوم یو ترینه مخالف دے نو عقیدتاً او عملاً ترینه مخالف دے ، بلکه عملاً د دۀ خیال ساتی لکه د دۀ ترۀ خو عقیدتاً ترینه بیا هم مخالف دے ، که بالفرض په دغه وخت کې ورته اهل مکه وئیلی وے : چه راشه مونږ سره ووټونه اوکړه نو بیا خو ووټونه ابو جهل ګټلی وو ، نو بیا خو به نعوذ بالله نبی کریم ﷺ خپل مشن پریخودے وے د اکثریت په مقابله کې ، نو دا د انبیاء کرامو علیهم السلام نهج وو او طریقه ئی وه ، چه هغوی د اکثریت تابعداری نۀ کوله هغوی حقانیت او کمال ته ئی کتل .

۲/ قرآن کریم ته راشه : چه قرآن کریم د اکثریت په باره کې څۀ وائی ؟ چه د اکثریت تابعداری څنګه ده ؟ او اکثریت څۀ شی دے ؟ ، نو د اکثریت په باره کې قرآن کریم بار بار داسی وائی : « **ولکن اکثرهم لایعقلون** » " لیکن اکثر د خلقو نه عقل نۀ لری " ، یعنی اکثریت د خلقو بې عقله دی ، نو دا ډیر بې عقله چه راجمع کړی نو مشر به ئی د ټولو نه غټ بې عقله وی ، ددې وجه نه علامه اقبال په فارسۍ کې وائی : ګریز از طرز غلام پخته کاری شو که از مغز دو صد خر فکر انسانی نمے آید ، " وائی دا جمهوری طرز پریږده او د پخته طریقی د خلافت غلام شه ځکه چه د دوو سوو « ۲۰۰» خرو د فکر نه د یو انسان فکر نۀ جوړیږی " نو که ډیر خرۀ راجمع شی نو غټ خر به ترې جوړ شی انسان خو ترې نۀ جوړیږي ، نو قرآن پدې ګواهی اوکړه چه اکثریت بی عقلی وی ، بل ځائی کې الله تعالیٰ فرمائی: ﴿ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴾[1] " اکثریت د خلقو دوی علم نۀ لری " نو په علم اخروی چه حقیقی علم دے نو دا خلق پرې نۀ پوهیږي ، نو د اکثریت تابعداری دا په سړی کې بې علمی راپیدا کوی ، او علم یو رنړا ده چه دا درسره نوی نو بس په یوه کنده کې به غورځیږے، نو انسان چه انسان دے نو په عقل او علم باندې انسان دے چه کله ترینه عقل او علم اووتل نو الله تعالیٰ بیا د

[1] [ سورة الطور: ٤٧ ] .

داسې انسان په باره کې فرمائی : ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ كَٱلْأَنۡعَٰمِ بَلۡ هُمۡ أَضَلُّ ﴾ [1] " دا پشان د ځناورو دی بلکه د ځناورو نه هم بدتر دی "، بل ځائی بیا الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَمَآ أَكۡثَرُ ٱلنَّاسِ وَلَوۡ حَرَصۡتَ بِمُؤۡمِنِينَ ١٠٣ ﴾ [2] " اے پیغمبر ! که ته ډیر حرص هم اوکړے نو اکثریت د خلقو مؤمنان نهٔ جوړیږی "، په اکثریت د خلقو کې کفر پروت دے، نو په اکثریت د خلقو کې بل صفت د کفر شو ، بل صفت پکې هغه دا دے لکه الله فرمائی : ﴿ وَلَقَدۡ ضَلَّ قَبۡلَهُمۡ أَكۡثَرُ ٱلۡأَوَّلِينَ ٧١ ﴾ [3] " د دوی نه مخکې هم اکثر گمراه وو"، نو معلومیږی چه اکثریت قبلُ او بعدُ دا تباه دے ، او دا تاریخ پاتې شوے دے نو دغه تاریخی گمراه پاتې شویدے او چه تاریخی گمراه بنی اسرائیل دی ، نو دا د قرآن کریم د اکثریت پرستئ په باره کې گواهی شوه ، بل ځائی کې بیا الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَإِن تُطِعۡ أَكۡثَرَ مَن فِي ٱلۡأَرۡضِ يُضِلُّوكَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِۚ إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا ٱلظَّنَّ وَإِنۡ هُمۡ إِلَّا يَخۡرُصُونَ ١١٦ ﴾ [4] "که چرته ته تابعداری اوکړی د اکثریت چه په زمکه کی دی نو گمراه به کړی تالره د لاری د الله تعالیٰ نه ، دوی تابعداری نه کوی مگر د گمان او نه دی دوی مگر اټکل (اندازه ) ویونکی دی "، تفسیر کبیر کی علامه فخر الدین الرازی رحمه الله لیکی : دا آیت دلالت کوی پدې خبره چه اکثریت د اهل الارض هغه گمراهان دی ځکه دلته الله وائی : یضلوک عن سبیل الله ، اضلال راغلې دے ، یعنی گمراه کونکی دی دا ، او گمراه کول دا فرع د گمراه کیدلو ده چه دا به پخپله گمراه وی نو ځکه بل گمراه کوی ، نو معلومیږی چه اکثریت د خلقو پخپله هم گمراه دی ، نو بل صفت هغه د دوی

---

1 [ سورة الأعراف : ١٧٩ ] .

2 [ سورة يوسف : ١٠٣ ] .

3 [ سورة الصافات : ٧١ ] .

4 [ سورة الأنعام : ١١٦ ]

ضلال شو، بیا وائی دا ګمراهی د دوی په دری څیزونو کې راګیره ده : ١/ هغه مباحث دی چه هغه متعلق دی په توحید او په شرک پورے، نو په توحید کې حد او پوله یوه وی، او باطل کې پکې کثرت وی د باطل کثرت په اعتبار د افرادو سره هم وی او په اعتبار د ډلو سره هم وی، نو څوک چه توحید منی نو هغه یوه ډله ده، خو که څوک توحید نه منی نو ډیرے زیاتې ډلی دی، لکه یوه هغه ډله ده : ﴿ وَجَعَلُواْ لِلَّهِ شُرَكَآءَ ٱلْجِنَّ وَخَلَقَهُمْ ﴾[1] چه د جناتو عبادت کوی، بل هغه ډله ده چه هغوی عبادت د ستورو کوی، بله هغه ډله ده چه هغوی د بوتانو عبادت کوی، بله هغه ډله ده چه هغه د ملائکو عبادت کوی، نو ګمراهی پکې ډیره شوه په مقابله د حق باندې چه حق یوه ډله ده، او د ګمراهئ بلا ډلې دی او بلا زیات افراد ئی هم دی.

٢/ هغه مباحث دی چه متعلق دی په نبوت پورے، نو د نبوت منونکی یوه ډله ده، او نه منونکی ډیرے ډلی دی، لکه حق یوه ډله ده چه محمد رسول الله ﷺ منی چه دا نبی دے، او هر چه باطل دی نو هغه ډیرے ډلی دی : لکه یوه هغه ډله ده چه الله منی خو نبوت بالکل نهٔ منی، دویمه هغه ډله ده چه نهٔ الله منی او نهٔ نبوت منی، دریمه ډله هغه ده چه بعضی انبیاء منی او بعضی نهٔ منی لکه یهودیان ډله شوه چه هغوی موسیٰ علیه السلام منی نه عیسیٰ علیه السلام او نهٔ نبی کریم ﷺ، عیسایان بیا بله ډله شوه چه هغوی موسیٰ علیه السلام هم منی او عیسیٰ علیه السلام هم منی خو نبی کریم ﷺ نهٔ منی، نو حق یوه ډله شوه او باطلې ډیرے ډلې شوے.

٣/ هغه مباحث دی چه متعلق وی په احکامو پورے او دا وائی چه هغه هم ډیر دی هغه په هغې کې هم باطل ډیر دی او حق پکې یو دے، حق پکې هغه دی چه د الله تعالیٰ حلالو ته حلال وائی او حرامو ته حرام وائی نو دا یوه ډله شوه، او باطل ته ګوره : بعضی کافران بحیره او سائبة او وصیلة او حام دا به ئی حرامول، او مرداره به ئی حلالوله او دا ګمان به ئی کولو چه دا په حق باندې دی او په حق باندې به ئی دا ګمان کولو چه دا باطل دی، او بیا پدې کې بلا

---

[1] [ سورة الأنعام : ١٠٠ ].

ډلې جوړے شوے ، بیا بعضی هغه دی د احکامو په متعلق باندې چه مونځ منی زکات هم منی ، بعضی هغه دی چه مونځ نهٔ منی او وائی چه مونږ په ذکر باندې کار کوو ، بعضی هغه دی چه مونځ ، روژه ، زکات ، حج ټول منی خو جهاد نه منکر دی ، بعضی هغه دی چه هر څه به درسره اومنی خو په تحریم او تحلیل کې به درسره خبرے کوی چه بعضی څیزونه به د ځان نه حراموی ، نو احکاماتو سره چه کوم متعلق مباحث دی نو په هغې کې هم باطل ډیر او حق کم دی ، نو ددې وجې نه الله تعالیٰ وائی چه که په زمکه کې دې د اکثریت تابعداری اوکړې نو د الله د لارے نه به دې گمراه کړی .

**خلاصه** : دا شوه چه اکثریت د خلقو بې عقله ، اکثریت د خلقو بې علمه ، اکثریت د خلقو کافر ، اکثریت د خلقو په تاریخ کې گمراه تیر شوی دی ، اکثریت د خلقو په موجوده دور کې هم گمراه دی ، نو اوس فیصله په تا شوه چه اکثریت د خلقو به تالره فائده درکړی ؟ نو چرته هم نشی درکولې ، نو دې وجې نه مونږ وایو : چه پریږدئ دا مغربی جمهوریت ځکه پدیکې اکثریت لره اعتبار ورکول کیږی .

وبالله التوفیق .

❊❊❊❊❊

## داکثریت پرستۍ موضوع (دویمه حصه)

په مخکې حصه د دې موضوع کې دا خبره واضحه کړے شوه چه اکثریت پرستی اختستل د الله جل جلاله په احکاماتو او د هغه مخالفت کول دا صحیح ندی دا باطل دی پدې باندې خبره شروع وه داسی هم نه چه مونږه په هر ځائی مطلق کې اکثریت ته باطل وایو، بلکه مونږ وایو چه اکثریت په مقابله د کتاب الله، یا سنت رسول الله ﷺ، یا د ادله ؤ شرعیؤ کې اختستل دا باطل دی او پدې باندې مونږ معیار د قرآن کریم نه بیان کړو چه د اکثریت معیار یا لاعلمی ده یا بې عقلی ده، یا د اکثریت معیار ضلالت دے، یا د اکثریت معیار کفر دے نو دا خبره په اولنۍ حصه ددې موضوع کې واضحه کړے شو.

**اوس راشه چه د اکثریت مخالفت د صحابه کرامو رضي الله عنهم په دور کې څه وو ؟:**

نو صحابه کرامو د اکثریت نه نظر بنکته کړے وو، لکه ابو بکر صدیق رضي الله عنه چه کله نبی کریم ﷺ وفات شو نو د هغې نه پس د اکثریت رائی دا وه چه د اسامه بن زید لښکر دې پاتی کړے شی، لیکن ابو بکر صدیق رضي الله عنه هغه رائی اونۀ منله او رد ئی کړله، او د حضرت اسامه بن زید رضي الله عنهما لښکر ئی اولیږلو، دارنګه د مرتدینو په قتال کې هم د اکثریت رائی دا وه چه قتال دې اونۀ کړے شی، لیکن بیا هم ابو بکر صدیق رضي الله عنه د اکثریت رائی رد کړه او هغه قتال ئی اوکړو.

حضرت عمر فاروق رضي الله عنه یو ځل یوے علاقې ته د نهر په کنستلو باندې امر صادر کړو چه تاسو نهر اوکنۍ پدې خپله علاقه کې، نو هغوئ ټال مټول شروع کړو او دا کار ئی نۀ کولو، نو عمر فاروق رضي الله عنه د اکثریت رائی ته اونۀ کتلې بیا ئی ورته خط اولیکلو که چرته تاسو پریښودلې شوئ دې خبرے د وجه نه نو تاسو به خپل اولاد او بچی هم خرڅ کړئ، نو فوراً دغه نهر اوباسئ نو هغه نهر ئی پرې اوکنستلو نو که اکثریت وې نو عوام اکثر مخالف وو خو دیته ئې ونه کتل، نو صحابه کرامو په مفاد عامه کې هم د اکثریت رائی ته ندی کتلی، ددې وجې نه په احادیثو مبارکوؤ کې داسې احادیث هم شته چه په هغې کې دا خبره شویده چه کله فتنې زیاتې شی نو اکثریت د خلقو به خو په فتنو کې مبتلا وی خو نبی کریم ﷺ

حذیفه ﷺ ته فرمائی چه : « **فاعتزل الفرق** » " بیا تهٔ د فرقو نه جدا شه او په کور باندې کینه " ، نو دلته یو سړی ته وائی چه تهٔ یواځې شه حالانکه اکثریت د خلقو خو به په فتنو کې مبتلا وی ، دغه شان بل ځائی کې فرمائی : چه کله د خلقو امام او جماعت ختم شی نو تهٔ ترینه بیا جدا شه او دا خلق پریږده او د تورے مخ په کاڼړی باندې ووهه چه مات شی ، او که بل طرف ته اوګورے نو قلت فائده ورکړیده او د هغې صفت بیان شوے دے ، لکه قرآن کریم کې الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَقَلِيلٌ مِّنْ عِبَادِيَ ٱلشَّكُورُ ﴾ [1] " لږ شان خلق زما د بندګانو نه شکر ګذار دی " ، بل ځائی کې الله تعالیٰ بیا فرمائی : ﴿ فَقَلِيلًا مَّا يُؤْمِنُونَ ﴾ [2] " لږ غوندې خلق ایمان راوړی " ، نو د اکثریت اعتبار پاتی نشو ، اعتبار په کمال باندې راغلې ، اعتبار په ایمان باندې راغلې ، نو که دلته تهٔ د اکثریت تابعداری کوے نو بیا خو تهٔ په کفر پسې روانیږے ، نبی کریم ﷺ پخپله فرمائی:

« **بدأ الاسلام غریبا فطوبی للغرباء ، قیل من الغرباء یارسول الله؟ فقال: هم قوم صالحون قلیل فی ناس سوء کثیر** » نو د اکثریت نظام دا باطل نظام دے او اکثریت همیشه د باطلو خلقو وی لکه مخکې د تفسیر کبیر هغه خبره بیان کړے شوه ، بل دا چه اکثریت همیشه په ګمان باندې وی لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا ٱلظَّنَّ ﴾ [3] " دوی تابعداری نهٔ کوی مګر د ګمان " او تفسیر کبیر په دغه آیات کې فرمائی : « **المراد ان هولاء الکفار الذین ینازعونک فی دینک ومذهبک غیر قاطعین بصحة مذاهبهم بل لایتبعون الا الظن وهم خراصون کذابون فی ادعاء القطع ، وکثیرٌ من المفسرین یقولون بأن المراد من ذلک ظن رجوعهم فی اثبات مذاهبهم الی تقالید اسلافهم لا الی تعلیل من اسلاف** » " دا کوم کافران چه

---

1 [ سورة سبأ : ١٣ ] .

2 [ سورة البقرة : ٨٨ ] .

3 [ سورة الأنعام : ١١٦ ] .

تاسره په دین او مذهب کې جنګ کوی د دوی په خپل مذهب باندې یقین نشته قطعی دلیل پرې نیشته دوی تابعداری نهٔ کوی مګر د ګمان تابعداری کوی دوی اندازے لګوی دروغ وائی چه زمونږه خبره یقینی خبره ده ، ډیرو مفسرینو دا رائی ورکړیده چه ددې نه مراد چه دا ان یتبعون الا الظن چه صرف په ګمان باندې دوی روان دی ، او د ګمان نه مراد دا دے: چه دوی په خپلو اسلافو پسې روان دی او محض تقلید کوی هیڅ قسمه علت او دلیل د دوی سره نشته " او دغه شان په اکثریت کې هم وی لکه نن صبا دغه اکثریتی نظام چه مونږه او تاسو په ملکونو کې رائج دے او حدود او تعزیرات ئې د هند وغیره نه راخستے دي دارنګه د وکالت په کتابونو کې قطعی خبرے نشته ، د وکالت فیصلې په امثالو باندې وی د مخکنو تیرو شوو واقعاتو باندې وی ، لکه یو سړی باندې یوه دفعه ولګیدله نو دوی عمومی قواعد ګوری نو دې به وائی چه یره پدیکې عدالت 5 کالو نه واخله تر 10 کالو پورے سزا ورکولے شی نو اوس وکیل به څه ګوری نو وکیل به دا کوشش کوی چه یره زه یوه مخکنۍ فیصله پیدا کړم نو کله چه ورته پیدا شی بیا به وکیل ووائی : آو په فلانکی سن کې فلانی جج یوه فیصله کړے ده چه پدې دفعه کې ضمانت کیدلې شی نو پس د دهٔ ضمانت دې وشی ، نو دوی د اسلافو اتباع کوی څکه ورته الله تعالیٰ په قرآن کریم کې فرمائی : چه دوی په اټکل پسې روان دي .

نو په محض اکثریت باندې روانیدل ندی پکار په دې کتابونو کې د جمهورو رائی یو طرف ته وی او محققه رائی بل طرف ته وی ، او د جمهورو په رائی باندې کله کله فتوی ورنهٔ کړی ، او فتوی په محقق قول باندې ورکړی ، نو هغوی هم د اکثریت تابعداری نه کوی بلکه د حق تابعداری کوی .

**۱/ اعتراض دا کثریت په باره کې**: چه تا دا خبره اوکړه چه د اکثریت تابعداری به نهٔ کوے ، نو سوال دا شو چه اجماع د مسلمانانو نه مخالفت کول کفر دے ، او اجماع په اکثریت باندې موقوفه وی ، نو بیا ستا دا خبره خطاء ده چه اکثریت دا معیار ندے ؟

**جواب**: مونږ د اکثریت محضه نه انکار کوو ، چه د محض اکثریت تابعداری کول حرامه ده ، او هر چه هغه اکثریت دے چه په هغې کې ورسره د کمال لحاظ ساتلې شوے وی نو هغه

اکثریت لره اعتبار شته دے ، ځکه د اجماع په باره کې راځي چه : « **اجماع علماء مجتهدی هذه الامة** » " اجماع د علماؤ د مجتهدینو ددې امت " نو دا اجماع معتبره ده ، او پدې اجماع کې شرطونه دی :

۱/ د هذه الامة سره د اسلام شرط راغي ، چه مسلمان به وی ، نو دا اسلامی اکثریت دے، او ددې په مقابله کې هم اکثریت شته خو هغه جمهوری اکثریت دے .

۲/ پدیکې شرط د علم راغي ، چه لاعلمه به نهٔ وی ، ځکه چه د غیر عالم سرې اجماع نده معتبره ، او هر چه اکثریت جمهوری دے نو په هغې کی دا شرط نشته که عالِم وی او غیر عالِم وی .

۳/ بل په اجماع کې دا شرط دے چه مجتهد عالِم به وی غیر مجتهد عالِم به نهٔ وی ، او ددې په مقابله کې د اکثریت جمهوری کې خو بالکل عالِم نهٔ وی نو مجتهد او غیر مجتهد ته بالکل څهٔ تعرض ( لحاظ ) نه کوی ځکه چه د دهٔ خو د علم سره کار نشته نو اجتهاد او عدم اجتهاد سره به ئی څهٔ کار پیدا شی ، نو که پدې شرطونو باندې اجماع راشی نو د محض اکثریت په مقابله کې دا بیا اقلیت او کم خلق شو پدې خبره کې لګ سوچ وکړئ ځکه دا ډیره کمه خبره به وی چه مسلمان دې هم وی ، عالمان دې هم وی ، او مجتهد دې هم وی نو داسې خلق په زمانه کې ډیر وی او که کم خلق وی کم خلق وو کنه ، نو پدیکې د اکثریت تابعداری اډو د سره نشته ، تاسو زما خبرې ته لګ سوچ وکړئ نو پوهه به شئ .

**۲/ اعتراض** : چه د خلافت ابتداء د اکثریت نه شویده ځکه چه د حضرت عمر ﷺ په لاس باندې ټولو خلقو بیعت اوکړو نو د دغه بیعت د وجې نه ابو بکر صدیق ﷺ خلیفه مقرر شو ؟

**جواب** : مونږ وایو چه نهٔ ، د خلقو رائی خو داسې نهٔ وه بلکه د خلقو رائی دا وه ، چه خلقو ویل : « **منا امیر و منکم امیر** » " چه یو امیر به د مهاجرینو نه مقرر شی ، او یو امیر به د انصارو نه هم مقرر شی " ، نو د خلقو رائی خو پدې باندې جوړیدله ، لیکن حضرت ابو بکر

صديق ﷺ ورته حديث پيش کړو چه : « **الائمة من قريش** » " امام به د قريش نه وی " نو د دغه حديث د وجې نه خلقو د ابو بکر صديق ﷺ په لاس باندې بيعت اوکړو ، نو دلته د خلافت ابتداء د اکثريت د وجې نه ندې راغلې چه د اکثريت خلقو رائې دا وه چه ابو بکر صديق ﷺ دې خليفه مقرر شي ، بلکه د حديث د وجې نه راغله چه حديث پيش شو ، نو که بالفرض دلته اکثريت هم راشي نو دا خو د حديث د وجې نه راغلې دے ، او نن صبا خو د اکثريت رائې چه روانه ده نو دا په ووټينګ باندې روانه ده او دغه بيعت وو او په ووټينګ او بيعت کې د زمکې او آسمان فرق دے ، ځکه چه په ووټينګ کې سړے پخپله ځان نمائنده جوړوی د خلقو نه مطالبه د ووټينګ کوی چه مالره ووټ راکړئ ، او په بيعت کې دا ممنوع ده چه پخپله دا سړے خلافت اوغواړی ، بيعت د دنيا او د آخرت کاميابئ دپاره کيږی ، او ووټينګ کې صرف د دنيا په کاميابئ کې روان وی ، بيعت سرعام د خلقو په مخامخ باندې کيږي ، او ووټينګ خو پټ کيږي هر سړے خپل ووټ پټ اچوی چه بل رانه خبر نشی، نو په اکثريت او بيعت کې د زمکې او آسمان فرق دے ، روستو به تفصيل کوو ، ان شاء الله .

بيا وائی چه په بل روايت کې راځي چه : « **اتبعوا سواد الاعظم** » " تاسو د مسلمانانو د زياتې ډلې تابعداری کوئ " نو وائی چه پديکې په اکثريت باندې امر راغلې دے .

**جواب**: او په سواد اعظم کې د مسلمانانو ډله راغلې دے اکثريت محضه ترينه ندې مراد، بله خبره دا چه علامه ابن القيم ﷫ په هداية المستفيد کې ليکلی دی : چه سواد اعظم دا کله کله په يو عالم کې هم راجمع کيږی چه کله په حق باندې ولاړ وی ، د سواد اعظم نه اکثريت مراد ندې بلکه حق مراد دے .

درانګه د عبدالله بن المبارک ﷫ نه تپوس وشو د سواد اعظم په باره کې ، نو ابن المبارک ﷫ ورته په جواب کې د هغه زمانې يو عالم ياد کړو چه هغه محمد بن اسلم طوسی ﷫ دے دغه سواد اعظم او يو جماعت دے .

دارنګه عبدالله بن مسعود ﷺ خپل شاګرد ميمون بن مهران ته وفرمائيل : « **الجماعة**

**ما وافق الحق وإن كنت وحدك** » [ بيهقى ] چه جماعت هغه دے چه د حق موافق وى اګر که ته يواځې وے .

دارنګه الله تعالىٰ د ابراهيم عليه السلام په باره کښې فرمائى : ﴿ إِنَّ إِبْرَٰهِيمَ كَانَ أُمَّةً قَانِتًا لِّلَّهِ حَنِيفًا وَلَمْ يَكُ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ ۝١٢٠ ﴾[1] " يقينا ابراهيم عليه السلام يو فرد دے خو الله ورته امت وائى ".

دارنګه په يو حديث کښې د معاذ بن جبل ﷺ په باره کښې راځى : « يبعث أمة وحده » .

**٣/ اعتراض** : دوى وائى چه په حديث کښې راځي : « **من شذ شُذ فى النار** » " څوک چه د اکثريت نه يو طرف ته شى نو دا به په اور کښې اوسوزى " نو د دې نه بيا اکثريت ثابت شو ؟

**جواب** : ددې حديث نه مراد اسلامى جماعت دے چه کله اسلامى اجتماعيت په يو امير باندې موجود وى او څوک ترينه جدا شى نو هغه به په اور کښې سوزى ، لکه حذيفه ﷺ ته نبي کريم ﷺ پخپله د جدا کيدو امر کړے دے چه ته په هغه وخت کښې د جماعت نه جدا شه .

**٤/ اعتراض** : بعضى پکښې دا هم وائى : « **لا يجتمع امتى على الضلال** » وائى چه دا مسلمان چه کوم ووټونه کوى نو دا خو صحيح دى ، که مغربى جمهوريت خو زه خير دے غلط دے او اسلامى جمهوريت خو صحيح دے ځکه دغه حديث کښې دا ثابت شوه چه رسول الله ﷺ فرمائى : چه زما امت په ګمراهئ باندې نۀ جمع کيږى ، نو د مسلمانانو اکثريت چه په څۀ کښې وى نو دا ددې خبرے دليل دے چه دا خبره حقه ده ، نو بيا د اکثريت نه تاسو ولې انکار کوئ ؟

**جواب** : مونږ دا خبره کوو چه ددې حديث چرته هم دا مطلب ندې چه دا کوم تاسو بيان کړو، ځکه زمونږ او ستاسو مشائخ دا وائى : چه ددې حديث دا مطلب دے چه زما ټول امت

[1] [ سورة النحل : ١٢٠ ] .

په ګمراهئ باندې نشی جمع کیدلې ، یو نه یو به پکې خامخا مخالفت کوی نو چه کوم یو پکې مخالفت اوکړو نو دا خو کم شو ټول خو نشو نو دا خو اکثریت نشو اقلیت شو ، نو ددې حدیث نه استدلال کول چه ددې نه اکثریت مراد دے دا استدلال غلط دے ، او بعضی خلق د جمهور الفقهاء لفظ نه اخذ کوي چه موجوده جمهوریت حق دے او چه په کتابونو کې راځی چه دا د جمهور علماؤ رائی ده ، نو مونږ وایو چه دا خو هم د رائی په شکل کې راځی کنه چه د نصوص شرعیه سره موافق شی او که د نصوص نه خلاف وی بیا خو ئې نه راخلی یعنی د دوی محضه رائی ته اعتبار نوی او بل دا چه دغه جمهور علماء خو په نسبت سره ټول مسلمانانو او عوام الناس ته کم دي کنه دوی سوچ نوی بس اعتراض کوي .

نو دا د اکثریت متعلق بعضی اشکالات وو چه د هغې جوابات د الله په فضل او توفیق سره اوکړے شو ، او ددې تفصیلی بحث به ان شاء الله تعالیٰ د جمهوریت په بحث کوو خو صرف هغه مبادی ذکر شول .

❊ ❊ ❊ ❊ ❊

## د اکثریت پرستئ نقصانات

د اکثریت پرستئ نقصانات خو ډیر زیات دي خو بعضی د هغې نه په مختصر انداز سره دلته ذکر کوو :

**۱/ نقصان** : قرآن کریم کې اوګوره : چه د بلقیس واقعه راغلې ده چه کله سلیمان علیه السلام بلقیس ته خط اولیږلو او په خط کې ئې ورته دا لیکلي وو چه : ﴿ أَلَّا تَعْلُوا عَلَيَّ وَأْتُونِي مُسْلِمِينَ ۝٣١ ﴾ [1] نو کله چه بلقیس خط اوکتلو نو خپل وزراء ئې راجمع کړل او د هغوی نه ئې رائې اغستله چه څۀ کول پکار دی ، ماته خو داسې یو خط راغلې دے لکه قرآن کریم هغه واقعه تفصلی ذکر کړیده ، خو بلقیس خپلو وزیرانو ته اووئیل : چه ستاسو څۀ رائې ده ؟ نو دلته د اکثریت رائې راغله ، او بلقیس خو ډیره اوخیاره زنانه وه که چرته بلقیس د اکثریت په رائې باندې عمل کړے وے نو سلیمان علیه السلام لره الله تعالیٰ ډیر زیات قوت ورکړے وو نو سره د بلقیس به ئې ټول ختم کړی وے د الله په امر سره ، خو بلقیس د اکثریت رائې وانۀ خستله ، ځکه چه په اکثریت کې ډیر نقصان وو د بلقیس ټول قوم به خطره کې پریوتل او تباه کیدل .

**۲/ نقصان** : د اکثریت غټ نقصان دا دے چه مونږ ئې د اسلامی حکومت نه محرومه کړی یو، چه تر اوسه پورے مونږ اسلامی نظام په سترګو اونۀ لیدلو .

او داسې نور ډیر زیات نقصانات ئي دی چه ان شاء الله ځائی په ځائی به د هغې نشاندهی کیدلې شی د الله په توفیق سره .

وبالله التوفیق .

✻✻✻✻✻

[1] [ سورة النمل : ٣١ ] .

## 6 / موضوع : طـــاغـــوت

مونږ د اکثريت پرستئ موضوع شروع کړې وه او دا مو ذکر کړي وو چه ددې اکثريت پرستئ سره چه کوم متعلق مضامين دي هغه به ورسره ورسره ذکر کوو لکه مسئله د طاغوت شوه چه دا اوس دلته ذکر کوو ، بيا ورپسې مسئله د سيکولرازم شوه ، او بيا تحکيم القوانين شوه ، او بيا په آخر کې د جمهوريت نه به تفصيلي بحث کوو چونکه دا موجوده نظام ددې اکثريت پرستئ موضوع په شکل کې موجود دے او دا يو مستقل طاغوت هم ګرځيدلې نو ددې وجه نه اوس مونږه د طاغوت مسئله ذکر کوو چه طاغوت اوپيژنو چه دا چاته وائی ، نو اول به طاغوت لغوی تحقيق او بيا په قرآن کريم کې د طاغوت استعمال او بيا اصطلاحی تعريف دا به واضحه کړو :

**طاغوت په لغت** کې : طاغوت يا خو ناقص يائی دے د طغیٰ يَطْغیٰ نه ، يا طَغِيَ يَطْغیٰ نه مصدر ئې طُغْيَان دے ، او يا خو ناقص واوی دے د طَغیٰ يَطْغُوْا نه مصدر ئې طُغْوَان دے ، نو اصل د طاغوت بناء بر احتمال اول طَغْيُوْتٌ دے ، او بنا بر احتمال ثانی طَغْوُوْتٌ دے ، بيا قلب مکانی وشو د لام کلمی چه « يا » يا « واو » دے مقدم کړے شو او « عين » کلمه چه « غين » دے دا مأخر کړے شوه ، نو طَيْغُوْتٌ يا طَوْغُوْتٌ شو ، بيا حرف علت ته حرکت ورکړې شو ماقبل متحرک مفتوح نو هغه په الف سره بدل شو نو طاغوت شو .

نو طاغوت په وزن د فَعْلُوْتٌ او بعد القلب فَلعُوْتٌ شو لکه په شافيه کې دا قاعده ذکر ده چرته په موزن کې قلب وی نو په وزن کې به هم قلب راځی .[1]

لکه قرآن کريم کې الله تعالیٰ فرمائی :﴿ كَلَّآ إِنَّ ٱلْإِنسَٰنَ لَيَطْغَىٰٓ ۝٦ ﴾[2] "داسې نده يقيناً انسان د خپل حد نه تجاوز اوکړو" ، نو دا د طاغوت لغوی معنی ده .

---

[1] [ شافيه لابن حاجب ، صـ ٥ ] .

[2] [ سورة العلق : ٦ ] .

## استعمال د طاغوت په قرآن كريم كې

نو طاغوت په قرآن كريم كې په ډېرو ځايونو كې راغلې دے خو بعضې به د هغې نه دلته رانقل كړو ، لكه الله فرمائي : ﴿ ٱللَّهُ وَلِيُّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ يُخْرِجُهُم مِّنَ ٱلظُّلُمَٰتِ إِلَى ٱلنُّورِ ۖ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ أَوْلِيَآؤُهُمُ ٱلطَّٰغُوتُ يُخْرِجُونَهُم مِّنَ ٱلنُّورِ إِلَى ٱلظُّلُمَٰتِ ﴾ [1]

" الله تعالى دوست د هغه كسانو دے چه ايمان ئې راوړے دے راوباسى دوي لره ( الله تعالى ) د تيارو نه رنړا ته ، او هغه كسان چه كفر ئې كړېدے دوستان د دوي شيطانان دي راوباسى دوي لره شيطانان د رنړا نه تيارو ته " .

دغه شان بل ځائې كې الله فرمائى : ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ ءَامَنُوا۟ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُوٓا۟ إِلَى ٱلطَّٰغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوٓا۟ أَن يَكْفُرُوا۟ بِهِۦ ﴾[2]

" آيا ته نۀ ګورے هغه كسانو ته چه ګمان كوي چه يقينا دوي ايمان راوړے دے په هغه څه چه نازل كړې شويدي تاته او په هغه څه چه نازل كړې شويدي مخكې ستا نه غواړي دوي چه فيصلې ويسى طاغوت ( شيطانانو ) ته او په تحقيق سره حكم شويدے دوي ته چه كفر دې وكړي پدې باندې " .

﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ نَصِيبًا مِّنَ ٱلْكِتَٰبِ يُؤْمِنُونَ بِٱلْجِبْتِ وَٱلطَّٰغُوتِ وَيَقُولُونَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا۟ هَٰٓؤُلَآءِ أَهْدَىٰ مِنَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ سَبِيلًا ۝٥١ ﴾[3]

" آيا ته نۀ ګورې هغه كسانو ته چه وركړې شويده ورته څه حصه د كتاب نه چه ايمان لري په جبت او طاغوت او وائى هغه كسانو ته چه كفر ئې كړېدے دا كسان ( چه ايمان په

---

[1] [ سورة البقرة : ٢٥٧ ] .

[2] [ سورة النساء : ٦٠ ] .

[3] [ سورة النساء : ٥١ ] .

جبت او طاغوت لري ) ډير په هدايت دي د هغه کسانو نه چه ايمان لري ( په الله په رسول ) په اعتبار د لارې سره ".

﴿ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ يُقَٰتِلُونَ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِۖ وَٱلَّذِينَ كَفَرُواْ يُقَٰتِلُونَ فِي سَبِيلِ ٱلطَّٰغُوتِ فَقَٰتِلُوٓاْ أَوۡلِيَآءَ ٱلشَّيۡطَٰنِۖ إِنَّ كَيۡدَ ٱلشَّيۡطَٰنِ كَانَ ضَعِيفًا ٧٦ ﴾[1]

بل ځائې کې الله فرمائي : ﴿ وَلَقَدۡ بَعَثۡنَا فِي كُلِّ أُمَّةٖ رَّسُولًا أَنِ ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ وَٱجۡتَنِبُواْ ٱلطَّٰغُوتَ ﴾[2].

" او يقينا ليږلي وو مونږه هر امت ته رسول دا چه بندګی دې وکړي صرف د يو الله تعالىٰ او ځان دې بچ کړي د طاغوت نه ".

دغه شان بل ځائې کې فرمائي : ﴿ فَمَن يَكۡفُرۡ بِٱلطَّٰغُوتِ وَيُؤۡمِنۢ بِٱللَّهِ فَقَدِ ٱسۡتَمۡسَكَ بِٱلۡعُرۡوَةِ ٱلۡوُثۡقَىٰ لَا ٱنفِصَامَ لَهَا ﴾[3].

﴿ قُلۡ هَلۡ أُنَبِّئُكُم بِشَرّٖ مِّن ذَٰلِكَ مَثُوبَةً عِندَ ٱللَّهِۚ مَن لَّعَنَهُ ٱللَّهُ وَغَضِبَ عَلَيۡهِ وَجَعَلَ مِنۡهُمُ ٱلۡقِرَدَةَ وَٱلۡخَنَازِيرَ وَعَبَدَ ٱلطَّٰغُوتَۚ أُوْلَٰٓئِكَ شَرّٞ مَّكَانٗا وَأَضَلُّ عَن سَوَآءِ ٱلسَّبِيلِ ٦٠ ﴾[4]

﴿ وَٱلَّذِينَ ٱجۡتَنَبُواْ ٱلطَّٰغُوتَ أَن يَعۡبُدُوهَا وَأَنَابُوٓاْ إِلَى ٱللَّهِ لَهُمُ ٱلۡبُشۡرَىٰۚ فَبَشِّرۡ عِبَادِ ١٧ ﴾[5]

**نو دا په قرآن کريم کې الله تعالىٰ د طاغوت دا لفظ استعمال کړيدے ، اوس دا طاغوت**

---

1) [ سورة النساء : ٧٦ ].

2) [ سورة النحل : ٣٦ ].

3) [ سورة البقرة : ٢٥٦ ].

4) [ سورة المائدة : ٦٠ ].

5) [ سورة الزمر : ١٧ ].

څۀ ته وائي : دا صرف شيطان ته وائی ، او که صرف بتانو ته وائی ، او که نۀ نو د طاغوت څۀ معنی ده ، نو دغه معانی به ان شاء الله واضحه کړو .

❋❋❋❋❋❋

## د طاغوت اصطلاحي تعريفات

نو د طاغوت د پيژندګلو دپاره لغوی تعريف مخکې تير شو ، اوس اصطلاحی تعريفات د طاغوت کوو چه په اصطلاح د شرع کې طاغوت چا ته ويلې کيږي نو علماء کرامو مختلف تعريفات کړيدی بعضی د هغې نه دا دی :

**١/ تعريف د طاغوت** هغه دا دے چه : « **الطاغوت الشيطان اوالاصنام واهل الكهانة ورؤوس الضلالة** » .

" طاغوت شيطان دے بوتان دی کاهنان او ساحران دی او د ګمراهۍ چه کوم مشران وی نو هغه په طاغوت کی راځي " .

**٢/ تعريف** : « **الطاغوت الساحر الكاهن والشيطان ومايعبد من دون الله** » .

" طاغوت ساحر او کاهن ته وائی او شيطان ته وائی او د الله نه غير چه د چاهم عبادت کيږی نو هغې ته طاغوت وائی".

**٣/ تعريف** : « **الطاغوت : كل معبود من دون الله او مطاع في معصية الله** » . [1]

" چه د الله تعالیٰ نه غير چه کوم معبود وی يا د الله په معصيت او نافرمانۍ کې د چا اطاعت کوے نو بس دغه ستا طاغوت دے ديته طاغوت وائی ".

---

1) [ فتح القدير : ٢ / ١٦٠ ] .

**٤/ تعريف** : « **الطاغوت : الانداد والاوثان ومايدعوا اليه الشيطان من عبادة كل مايعبد من دون الله** »[1]

" شريكان د الله سره او بتان او کوم څيز طرف ته چه شيطان بلنه ورکوی د عبادت د هر هغه څيز نه چه د الله نه سوا ئی عبادت کیږی نو دیته طاغوت وائی " .

**٥/ تعريف** : « **الطاغوت : من عدل عن الكتاب والسنة والتحاكم الى ماسواهما الى الباطل** »[2]

" چا چه اعراض اوکړو د کتاب او سنت نه او فیصلې وړی سوا د کتاب او سنت نه باطل ته نو دیته طاغوت وائی " .

**٦/ تعريف** : قال مجاهد رحمه الله : « **الطاغوت : الشيطان فى صورة انسان يتحاكمون اليه وهو صاحب امرهم** »[3]

"چه طاغوت شیطان دے خو په صورت د انسان کې وی خلق ورته فیصلې وړی او هغه صاحب د امر یعنی مشر ئی وی " . لکه نن صبا جمهوری نظام کې ججان او قاضیان .

**٧/ تعريف** : « **الطاغوت : كل ما عبد من دون الله او صد عن عبادة الله** » .[4]

" هر هغه څوک چه د الله نه سوا ورته عبادت کیږی او یا خلق بندوی د الله د عبادت نه نو دغه ته طاغوت وائی".

**٨/ تعريف** : « **الطاغوت : يطلق لكل باطل معبود او غيره** » .

" طاغوت هر هغه څيز ته وائي چه اطلاق په کولی شی د هر باطل معبود دپاره او غير د هغې نه " .

---

1 [ تفسير ابن كثير : ١ / ٦٨٣ ، سورة البقرة : تحت آية ٢٥٦ ] .

2 [ تفسير الوسيط لطنطاوى : ٣ / ١٩٧ ، سورة النساء ] .

3 [ تفسير ابن كثير : ٢ / ٣٣٤ ، و التفسير الطبري : ٨/ ٤٦٢ ، و الدر المنثور : ٢ / ٥٨٢ ] .

4 [ تفسير بغوى : ١ / ٣١٤ ] .

نو دا مختلف قسمه تعريفونه علماؤ كړيدی ، خو د طاغوت د پيژندګلونه مخکې دا پيژندل پکار دی چه عبادت څۀ ته وائی : آيا عبادت صرف مونځ ، روژه ، زکوة دارنګه حج او ذکر اذکار ته وائی ؟ نۀ عبادت صرف پدې مذکوره امورو کې منحصر ندے بلکه کامل دا دے چه ددې امورو سره سره ټول احکامات اوامر او نواهي منل او ورسره د الله قانون منل نو دا هم عبادت دے او د هغه په قانون باندې فیصله کول هم عبادت دے ، او د بل چا قانون منل دا د هغه عبادت دے ، حاکمیت اعلی صرف الله جل جلاله ته حاصل دے او د الله نه سوا بل چاته حاکمیت اعلی ندے حاصل ، ددې وجه نه الله تعالیٰ چه د اولی الامر د اطاعت خبره کوی نو په هغې کې یوه عجیبه نکته ذکر کوي لکه الله فرمائي : ﴿ أَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُواْ ٱلرَّسُولَ وَأُوْلِي ٱلۡأَمۡرِ مِنكُمۡ ﴾ [1] " د الله اطاعت کوئ د رسول الله اطاعت کوئ او د اولی الامر اطاعت کوئ " ، نو پدیکې **اوله نکته** داده : چه د اولی الامرو اطاعت ئې د الله د اطاعت او د رسول الله د اطاعت نه روسته ذکر کړو .

**۲/ پدیکې** دا دے : چه د الله او د رسول د اطاعت سره لفظ د اطیعوا اطیعوا ذکر کوی او د اولی الامرو د اطاعت سره لفظ د اطیعوا نۀ ذکر کوی ، پدیکې اشاره ده دې خبرے ته چه د اولی الامرو اطاعت به هله کوے چه د الله د اطاعت د لاندې راشی ، نو مونږ پدې ځائی کې د عبادت نکته اوپیژنو چه عبادت صرف په مونځ او اودس کې ندې بلکه په حلال ، حرام او په قوانینو د الله کې هم عبادت پروت دے لکه دا خبره به مونږه په سیکولرزم بحث کې کوو ، او دا به مونږ ددې ځائی نه معلوموو چه د یهودو او نصاراؤ په باره کې چه کوم آیات نازل شوے دے خصوصا د نصاراؤ په باره کې : ﴿ ٱتَّخَذُوٓاْ أَحۡبَارَهُمۡ وَرُهۡبَٰنَهُمۡ أَرۡبَابٗا مِّن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ [2] " دوئ خپل علماء او خپل پیران خدایان نیولی وو سوا د الله

---

[1] [ سورة النساء : ٥٩ ] .

[2] [ سورة التوبة : ٣١ ] .

تعالىٰ نه "، نو دغه پيرانو ته خو دوى عبادت نهٔ وو کړے لکه څرنګه چه هغه صحابى بن عدى ﷺ پيغمبر عليه السلام ته اوفرمائيل : چه يارسول الله ! مونږ خو د دوئ عبادت نهٔ وو کړے؟ نو پيغمبر عليه السلام ورته اوفرمائيل : چه هغوئ به ستاسو دپاره تحليل کولو په تاسو به ئې څيزونه حلالول او تحريم به ئې کولو په تاسو باندې به ئې څيزونه حرامول او تاسو به د هغوئ پدې تحليل او تحريم کې تابعدارى کوله نو دغه تابعدارى د هغوئ په تحليل او تحريم کې دا په اصل کې د هغوئ عبادت وو.

دغه شان ددې آيت په باره کې د حضرت حذيفه بن يمان او حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهم نه هم ددې آيت هم دغه تفسير نقل دے ، لهذا امام ابن جرير رحمه الله فرمائى :

**عن أبي البختري قال: قيل لحذيفة: أرأيت قول الله:(اتخذوا أحبارهم) ؟ قال: أمَا إنهم لم يكونوا يصومون لهم ولا يصلون لهم، ولكنهم كانوا إذا أحلوا لهم شيئًا استحلُّوه، وإذا حرّموا عليهم شيئًا أحله الله لهم حرَّموه، فتلك كانت رُبوبيَّته»** [1]

" ابو البختري نه روايت دے چه حضرت حذيفه بن يمان ﷺ نه تپوس اوکړې شو چه د الله رب العزت ددې وينا « اتخذوا أحبارهم » څه معنى او مطلب دے ؟ نو هغوي اوفرمائيل : اهل کتابو ددې علماؤ او مشائخو دپاره د مونځ او روژې پشان عبادت نه کوو ، بلکه هغوي به چه د دوي دپاره د الله د طرف نه حرام شوے څيز حلال اوګرځوو نو دوي به هغه حلال ګنړو، او کله به چه هغوي د دوي دپاره د الله د طرف نه حلال شوے څيز حرام اوګرځوو نو دوي به حرام ګنړو ، نو هم دغه هغوي لره رب جوړول وو ".

امام سدي رحمه الله نه نقل دي چه ددې آيت لاندې ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى :

**«لم يأمروهم أن يسجُدوا لهم ، ولكن أمروهم بمعصية الله ، فأطاعوهم ، فسمَّاهم الله بذلك**

---

[1] [ تفسير طبرى : ١٤ / ٢١١ ] .

**أربابًا»** .[1]

" دې علماؤ او پیرانو اهل کتابو ته دا حکم نوو کړے چه هغوي ته سجده اوکړي ، بلکه هغوي ورته د الله تعالیٰ د نافرمانئ حکم کړے وو .. . او هغوي بیا هم د دوي اطاعت او تابعداري اوکړه ، او هم په دغه وجه الله تعالیٰ هغوي ( علماء ) ته د دوي « رب » اوئیل » .

**په دې فهم او پوهه باندې د سلفِ صالحين او امامانو د اسلام اجماع ده ، د نمونې دپاره د هغې نه بعضی اقوال دلته نقل کوو :**

**امام ابو بكر الجصاص الحنفي رحمه الله فرمائی :**

**« وإنما وصفهم الله تعالیٰ بأنهم اتخذوهم أربابا ، لأنهم أنزلوهم منزلة ربهم وخالقهم في قبول تحريمهم وتحليلهم لما لم يحرمه الله ، ولم يحلله ولا يستحق أحد أن يطاع بمثله إلا الله تعالیٰ الذي هو خالقهم ، والمكلفون كلهم متساوون في لزوم عبادة الله واتباع أمره وتوجيه العبادة إليه دون غيره »** .[2]

" الله تعالیٰ ددې اهل کتابو په باره کې وئیلي : چه دوي خپل علماء او پیران رب جوړ کړل ، ځکه دوي د ځیزونو د حرامولو او حلالولو ګرځولو په معامله کې هغوي له د خپل رب او خالق پشان مقام ورکړے وو ، ( نو دوي به د خپلو علماؤ او مشائخو حلال کړي حلال او د هغوي حرام کړي حرام ګڼړل ) که الله تعالیٰ حلال ګرځولي وو او که نه وو ، حالانکه داسې د ( بې شرطه ) اطاعت او تابعدارئ حقدار خو الله تعالیٰ نه علاوه بل څوک نشته ، مکلفين خو ټول په ټوله صرف د یو الله تعالیٰ د عبادت کولو ، د هغه د حکمونو تابعداري کولو، او ټول عبادات صرف د هغه دپاره د خالص کولو پابند دي " .

---

1) [ تفسير الطبري : ١٠ / ١١٤ ، د نورو حوالو دپاره اوګورئ : فتح القدير : ٢/ ٣٥٥ ، تفسير ابن كثير : ٢/ ٣٥٠] .

2) [ أحكام القرآن للجصاص : ٢ / ٢٩٧ ] .

امام طبري رحمه الله فرمائی :

« ( أربابا من دون الله ) ، يعني : سادةً لهم من دون الله ، يطيعونهم في معاصي الله ، فيحلون ما أحلُّوه لهم مما قد حرَّمه الله عليهم ، و يحرِّمون ما يحرمونه عليهم مما قد أحلّه الله لهم . . .

**و أما قوله : ( وما أمروا إلا ليعبدوا إلٰها واحداً ) فإنه يعني به : وما أمر هؤلاء اليهود والنصارى الذين اتخذوا الأحبار والرهبان والمسيحَ أربابًا ، إلا أن يعبدوا معبودًا واحدًا ، و أن يطيعوا إلا ربًا واحدًا دون أرباب شتّى ، وهو الله الذي له عبادة كل شيء ، وطاعةُ كل خلق ، المستحقُّ على جميع خلقه الدينونة له بالوحدانية والربوبية « لا إله إلا هو » يقول تعالىٰ ذكره : لا تنبغي الألوهية إلا للواحد الذي أمر الخلقُ بعبادته ، ولزمت جميع العباد طاعة ( سبحانه عما يشركون ) يقول : تنزيهًا وتطهيراً لله عما يُشرك في طاعته » .**

" ( د الله تعالىٰ نه علاوه د رب جوړلو ) نه مراد دا دي : چه دوي به هغوي ( علماؤ ) لره د الله په مقابله کې سردار ګرځول ، او د الله په نافرمانئ کې به ئې د دوي اطاعت کوو ، نو هغوي به د الله حرام کړے شوي څيزونه د دوي دپاره حلال ګرځول ، او د الله حلال کړے شوي څيزونه به ئې د دوي دپاره حرام ګرځول . . . . .

هم دغه شان د الله تعالىٰ دا فرمان : ( او دوي ته خو ددې خبرې حکم کړے شوے دے چه صرف د يو معبود بندګي کوئ ) نو ددې معنى او مطلب دا دے : چه علماء ، پيرانو او مسيح عليه السلام لره رب ګڼرونکو يهودو او نصارى ته هم دغه حکم وو چه دوي دې د يو معبود عبادت اوکړي جُدا جُدا ارباب ( ربونه ) دې پريږدي او صرف د يو الله بندګي دې اوکړي ، د هغه الله اطاعت او تابعداري اوکړئ چه د کوم عبادت هر څيز کوي او چه د کوم د اطاعت او تابعدارئ ټول مخلوق پابند دي ، چه کوم ددې خبرې حقدار دے چه ټول مخلوق د هغه دين اختيار کړي ، او صرف د هغه وحدانيت او ربوبيت ته سر ښکته کړي ( د هغه نه علاوه بل إلٰه نشته ) يعنې د الوهيت لائق صرف هم د هغهٔ ذات يکې يو دے چا چه مخلوق ته د خپل عبادت حکم ورکړے دے ، او په ټولو بندګانو چه د چا تابعداري لازم ده .

بيا ئې اووئيل : ( پاک دے هغه د هغه څه نه چه دوي ورسره شريکان ګرځوي ) يعنى الله تعالىٰ منزه او پاک دے ددې خبرې نه چه د اطاعت او تابعدارئ په معامله کې د هغه سره څوک شريک او برخه دار کړے شي " . [1]

امام قرطبي رحمه الله فرمائى :

**« قوله تعالىٰ : « ولا يتخذ بعضنا بعضاً أرباباً من دون الله » أي لا نتبعه في تحليل شي أو تحريمه إلا فيما حلله الله تعالىٰ ، وهو نظير قوله تعالىٰ : « اتخذوا أحبارهم ورهبانهم أربابًا من دون الله » [2] معناه أنهم أنزلوهم منزلة ربهم في قبول تحريمهم و تحليلهم لما لم يحرمه الله ولم يحله الله » .[3]**

" ارشاد رباني دے : ( او په مونږ کې دې څنې څنو لره رب نه جوړوي ) يعنى د څۀ څيز په حلالولو کې دې د هغوي تابعداري نه کوي ، بې د هغه څيزونو نه چه الله پخپله حلال ګرځولي دي ، دا قول مبارک د الله تعالىٰ د يو بل قول پشان دے ، ارشاد رباني دے : ( هغوي خپلو علماؤ او پيرانو لره د الله نه علاوه رب جوړ کړي وو ) يعنى هغه څيزونه چه الله تعالىٰ حلال يا حرام نۀ وو ګرځولي ، اهل کتابو د هغه څيزونو په حلالولو او حرامولو په معامله کې خپل علماؤ او پيرانو لره د رب مقام ورکړے دے " .

**ابن حزم رحمه الله د الله تعالىٰ ددې قول او وينا « ولا يتخذَ بعضنا بعضا أرباباً من دون الله»** " او په مونږ کې دې څنې څنو لره رب نۀ جوړوي " **په باره کې فرمائى :**

**«لما كان اليهود والنصارى يحرمون ما حرم أحبارهم ورهبانهم ويحلون ما أحلوا كانت هذه ربوبية صحيحة وعبادة صحيحة قد دانوا بها وسمي الله تعالىٰ هذا العمل اتخاذ أرباب من دون**

---

1 [ تفسير الطبري : ١٠ / ١١٤ ـ ١١٥ ] .

2 [ سورة التوبة : ٣١ ] .

3 [ تفسير القرطبي : ٤ / ١٠٦ ] .

**الله وعبادة وهذا هو الشرک بلا خلاف** » .[1]

" چه کله یهود او نصاراو د خپلو علماؤ او پیرانو حرام کړے شوي څیزونه حرام او د هغوي حلال کړے شوي څیزونه حلال اوګنړل نو هم دغه خبرې ته په صحیح توګه ربوبیت او عبادت وئیلے کیږي ، او الله تعالیٰ هم دغه عمل « د الله نه علاوه رب جوړولو » او « د غیر الله عبادت کولو » سره تعبیر کړے دے ، او بې شکه ددې عمل په شرک کیدلو کې هیڅ اختلاف نشته ".

شیخ الإسلام ابن تیمیه رحمه الله د حضرت عدي بن حاتم رضي الله عنه د تذکرې نه روستو فرمائی:

**فقد بين النبي صلى الله عليه وسلم أن عبادتهم إياهم كانت في تحليل الحرام وتحريم الحلال لا أنهم صلوا لهم وصاموا لهم ودعوهم من دون الله فهذه عبادة للرجال وتلک عبادة للأموال وقد بينها النبي صلى الله عليه وسلم وقد ذکر الله أن ذلک شرک بقوله : « لا إله إلا هو سبحانه عما يشرکون » .**[2]

" نبی کریم صلی الله علیه وسلم خبره واضحه او ښکاره کړه چه حرام حلال ګنړل او حلال حرام ګنړل د هغوي عبادت وو ، داسې نه چه دوي د هغوي دپاره مونځونه کول یا د هغوي دپاره ئې روژې نیولې یا ئې ورته د الله تعالیٰ نه علاوه را مدد شه وئیل ( حلال او حرام ګنړلو په معامله کې د الله نه علاوه د انسانانو تابعداري کول ) په اصل کې د انسان عبادت کول دي ، او الله تعالیٰ په ښه وضاحت او صفا بیان سره واضحه کړه چه دا شرک دے ، لهذا فرمائیلې ئې دي : (نشته دے لائق د بندګئ سیوا د هغه نه ، پاک دے هغه د هغۀ څه نه چه دوي ورسره شریکان ګرځوي " .

دغه شان ابن کثیر رحمه الله فرمائی :

**وقوله تعالیٰ : « وإن أطعتموهم إنکم لمشرکون » أي : حيث عدلتم عن أمر الله لکم وشرعه**

---

[1] [ الفصل : ٣/ ٦٦ ] .

[2] [ مجموع الفتاوی : ٧/ ٦٧ ] .

**إلى قول غيره ، فقد متم عليه غيره فهذا هو الشرك ، كما قال تعالىٰ : « اتخذوا أحبارهم ورهبانهم أرباباً من دون الله » . . . وقد روي الترمذي في تفسيرها ، عن عدي بن حاتم أنه قال : يا رسول الله ! ما عبدوهم ، فقال : بل إنهم أحلوا لهم الحرام وحرموا عليهم الحلال ، فاتبعوهم فذلك عبادتهم إياهم » .** (1)

” الله تعالىٰ قول دے : ( او كه چرې تاسو د هغوي تابعداري اوكړه نو يقينا تاسو به مشركان يئ ) يعنی كله چه هم تاسو د الله حكمونه او د هغه شريعت پريخودو او د بل چا قول او وينا دې اختيار كړه او هغه دې د الله په شريعت باندې مقدم ( مخكې ) اومنله نو هم دغه عين شرك دے ، لكه څنګه چه الله تعالىٰ فرمائی : ( هغوي خپلو علماؤ او پيرانو لره د الله نه علاوه رب جوړ كړي وو ) ، امام ترمذي رحمه الله ددې آيت په تفسير كې د حضرت عدي بن حاتم رحمه الله روايت نقل كړے دے ، چه هغوي عرض اوكړو ، چه اے د الله رسوله ! دوي ( اهل كتابو ) خو د هغوي ( خپلو علماؤ او پيرانو ) عبادت نه وو كړے ، نو رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل : ولې نۀ ، د دوي عالمانو او پيرانو حرام څيزونه حلال او حلال څيزونه حرام ګرځولي وو ، او دوي بيا هم د هغوي تابعداري كوله ، او هم دې ته عبادت وئيلے شي “ .

دغه ددې لاندينی آيت په تشريح كې امام ابن كثير رحمه الله ليكي :

« اتخذوا أحبارهم ورهبانهم أربابا من دون الله » ( هغوي خپلو علماؤ او پيرانو لره د الله نه علاوه رب جوړ كړي وو ) .

**وقال السدي : استنصحوا الرجال ، وتركوا كتاب الله وراء ظهورهم ، ولهذا قال تعالىٰ : و ما أمروا إلا ليعبدوا إلها واحدا ] أي : الذي إذا حرم الشيء فهو الحرام ، و ما حلله حل ، وما شرعه اتبع ، وما حكم به نفذ ، [ لا إله إلا هو سبحانه عما يشركون ] أي : تعالى وتقدس وتنزه عن الشركاء والنظراء ولأعوان والأضداد والأولاد ، لا إله إله هو ، ولا رب سواه .** (2)

1 [ تفسير ابن كثير : ٢/ ١٧٢ ] .

2 [ تفسير ابن كثير : ٢/ ٣٥٠ ] .

" امام سدي ﷫ فرمائي : ( د آيت مباركه مقصد دادے ) چه دوي په انسانانو باندې د خپلې خيرخواهۍ ګمان اوکړو نو هغوي ته متوجه شو او د الله تعالیٰ کتاب ئې وروستو اغورځوو ، ددې وجه نه الله تعالیٰ اوفرمائيل : ( او دوي ته خو ددې خبرې حکم کړے شوے چه د يو الله عبادت اوکړئ ) يعنی هغه يواځې إلٰه چه څه څيز حرام کړي نو هغه به حرام وي او هغه چه څه څيز حلال کړي نو هغه به حلال وي ، هغه ذات چه د هغه شريعت واجب الاتباع دے ، او چه د چا حکم نافذ العمل دے ( د هغه نه علاوه بل إلٰه او معبود نشته ، هغه پاک دے د هغه څه نه چه دوي ورسره شريکان ګرځوي ) يعنی الله تعالیٰ د دوي د مقرر شوو شريکانو او معبودانو نه ، د مددګارانو ، او اضدادو اولادو نه پاک دے او اوچت دے د هغه نه علاوه بل حق معبود نشته او نه د هغه نه علاوه څوک پروردګار شته ".

**ځکه چه د تحليل او تحريم اختيار خو د الله تعالیٰ سره دے دا خو د الله تعالیٰ صفت دے او قانون په اصل کې عبارت دے د تحليل او تحريم نه ځکه چه قانون وائی ديته چه دا څيز حلال دے دا کوه ، او دا څيز حرام دے دا مه کوه او سزا او جزا هم پدې مرتب وي نو د دغه آيات نه مونږ ته معلومه شوه چه د الله د قانون نه بغير د بل چا قانون ته غاړه کيخودل او يا بل چاته فيصلې وړل دا د هغهٔ عبادت دے په حقيقت کې .**

**نو د طاغوت په تعريفاتو کې دا خبره اوشوه چه د الله نه ماسوا د بل چا عبادت کول او د الله په نافرمانئ کې د بل چا اطاعت کول دا طاغوت دے ، نو اوس راشه چه پدې ملکونو کې د قانون په اعتبار سره کوم قانون اطاعت او تابعداري پکې کيږی نن خو زمونږ او ستاسو په ملکونو کې دغه خلق خو په قانون سازئ کې د الله عبادت نهٔ کوی ، ځکه د دوي قانون د الله د قانون نه مخالف دے ، دوی د بل چا په قانون باندې عمل کوی نو دوی په حقيقت کې د هغوی په بندګئ کې شروع شوی دی ، نو دا د دوئ دپاره طاغوت شو .**

امام طبری علامه ابن جرير ﷬ په خپل تفسير کې فرمائي : « **الطاغوت : انه كل ذى طغيان على الله فعبد من دونه إما بقهر منه لمن عبده ، وإما بطاعة ممن عبده له ، انساناً كان**

**ذلک المعبود او شیطاناً او وثنا او صنما او کائن ما کان له** » . [1]

" چه هر سرکشئ واله ځيز چه تجاوز کړی وی په الله باندې چه عبادت کولې شی د الله نه غير ، يا خو په عبادت کونکی باندې په زوره سره عبادت کوی ، او يا عبادت کونکې په خپلې خوشحالئ سره د دهٔ عبادت کوی نو دغه ته طاغوت وائی ، بيا وائی : که دا معبود انسان وی ، او که شيطان وی ، او يا بت وی ، يا که هر څه وی چه دا ورلره عبادت کوی " .

علامه بيضاوی رحمه الله هم تعريف د طاغوت کړے دے فرمائی : «**کل ما عبد من دون الله او صد عن عبادة الله**» " هر هغه چه د الله نه غير د هغه عبادت کيږی او يا د الله د عبادت نه انسان منع کوی نو هغه طاغوت دے " ، امام مالک رحمه الله هم دغه تعريف کړے دے ، ابن القيم رحمه الله په هداية المستفيد صـ ۱۲۱۹ فرمائی : چه هر هغه هستی يا شخصيت طاغوت دے چه د هغه د وجه نه بنده د حد عبادت نه تجاوز اوکړی ، برابره خبره ده که هغه معبود وی ، يا پيشوا وی ، يا يو واجب الاطاعت سړے ( امير ) ولی نهٔ وی نو هغه حد پار کړی يعنی خلق خپل عبادت طرف ته رابلل شروع کړی نو ددهٔ نه طاغوت جوړ شو ، بيا وائی : دا قوم د هغوئ طاغوت هر هغه سړے دے چه د الله او د رسول نه بغير هغه ته فيصلې وړلې شی او هغه د الله په کتاب او په سنت رسول باندې فيصلې نهٔ کوی بلکه په بل قانون باندې فيصلې کوی ، يا الله پريږدی او د هغه انسان عبادت کيږی ، يا د الٰهی بصيرت نه بغير په هغهٔ پسې روان وی، او په داسې امورو کې د هغه اطاعت کوی چه هغه ته معلوم وی چه دا د الله اطاعت ندے نو دغه انسان د دغه قوم طاغوت دے ، شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله فرمائی : چه کله څهٔ دين د الله دپاره شی او څهٔ دين د غير الله دپاره شی نو داسې خلقو سره قتال کول واجب دی، تر هغه پورے به قتال کوے چه ټول دين د الله تعالیٰ دپاره شی « ويکون الدين کله لله » بيا په بل ځائی کې فرمائی : چه الله تعالیٰ د هغه خلقو د ايمان نفی کړيده چه کومو خلقو خپلې فيصلې د طاغوت عدالتونو ته وړی دی ، لکه الله تعالیٰ په قرآن کريم کې فرمائی : ﴿ أَلَمْ تَرَ

[1] [ تفسير طبری : ٥ / ٤١٩ ] .

إِلَى ٱلَّذِينَ يَزۡعُمُونَ أَنَّهُمۡ ءَامَنُواْ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيۡكَ وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبۡلِكَ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُوٓاْ إِلَى ٱلطَّٰغُوتِ ﴾ [1] په دغه آيات كې دا مسئله هغه كړيده، نو دې وجه نه هر هغه حاكم چه د الله د كتاب نه بغير په بل قانون باندې فيصلې كوى نو هغه ته طاغوت ويلى كيږى، او دا خبره شيخ الاسلام په مجموعة الفتاوىٰ كې كړيده، نو دا كوم تعريفونه چه مونږ اوكړل نو دا علماء كرامو د طاغوت په باره كې كړيدى، چه مختلف قسمه تعريفات تاسو اوكتل چه مخكې ذكر شو، او پدې باندې به ان شاء الله ستاسو ذهن خلاص شوے وى چه طاغوت نن سبا موجود دے او كه نۀ ؟ او دا طاغوت صرف په شيطان كې منحصر ندے چه بس صرف شيطان ته طاغوت ويلې شى .

اوس دې خبرے ته راشه چه طواغيت خو ډير زيات دى په هر يو شى كې يو نه يو طاغوت خو موجود وى خو د طاغوت پنځه مشران دى : علامه ابن القيم رحمه الله په هداية المستفيد كې ليكى : چه د طاغوت پنځه مشران دى :

**١/ ابليس لعين دې**، لكه الله په قرآن كريم كې فرمائي : ﴿ أَلَمۡ أَعۡهَدۡ إِلَيۡكُمۡ يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ أَن لَّا تَعۡبُدُواْ ٱلشَّيۡطَٰنَ ﴾ [2] " اے انسانانو ! تاسو نه ما وعده نۀ وه اغستې چه تاسو به د شيطان عبادت نۀ كوئ ؟ " ، نو د شيطان عبادت كيږى چونكه شيطان يا عبادت د الله نه منع كوى يا د هغه په اشارے سره دا ټول كارونه كيږى ، نو د ټولو نه غټ مشر ئې ابليس دے.

**٢/ مشر**: هر هغه سړے دے چه د هغۀ عبادت كيږى او هغه سړے پدې باندې خوشحاله وى نو ديته هم طاغوت ويلې كيږى هغه كه هر سړے وي خو چه پدې خوشحاله وي ، او هغه په دغه مخكې تعاريفو كې واضحه كړے شو ، اوس پدې تعريف سره هغه كسان ووتل چه هغوى خوشحاله نۀ وى او د هغوئ عبادت شوے وى لكه عيسىٰ عليه السلام ، او عزير عليه

---

[1] [ سورة النساء : ٦٠ ] .

[2] [ سورة يس : ٦٠ ] .

السلام د دوی عبادت خلقو کړے دے خو دوی پدې کار باندې خوشحاله نۀ وو ځکه چه پدې باندې قرآن ګواه دے لکه د عیسیٰ علیه السلام په باره کې چه راځی چه الله به ترینه تپوس اوکړی : ﴿ ءَأَنتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ ٱتَّخِذُونِي وَأُمِّيَ إِلَٰهَيْنِ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ [1] ''آیا تا دې خلقو ته امر کړے وو چه زما او زما د مور عبادت اوکړئ سوا د الله تعالیٰ نه '' نو بیا ورته عیسیٰ علیه السلام جواب ورکوی :

﴿ قَالَ سُبْحَٰنَكَ مَا يَكُونُ لِيٓ أَنْ أَقُولَ مَا لَيْسَ لِي بِحَقٍّ إِن كُنتُ قُلْتُهُۥ فَقَدْ عَلِمْتَهُۥ تَعْلَمُ مَا فِي نَفْسِي وَلَآ أَعْلَمُ مَا فِي نَفْسِكَ إِنَّكَ أَنتَ عَلَّٰمُ ٱلْغُيُوبِ ﴿١١٦﴾ ﴾ [2] چه قرآن کریم دا واقعه ذکر کړے ده ، نو دا پدې طاغوت کې نۀ راځی .

**۳/ مشر**: هغه سړے چه خلقو ته په خپل عبادت ا مر کوی اګر که د هغۀ عبادت اونشی، خو دا دعوت ورکوی چه زما عبادت اوکړئ ، لکه فرعون چه وائی :﴿ أَنَا۠ رَبُّكُمُ ٱلْأَعْلَىٰ ﴾ [3] نو د ده خو عبادت اوشو ، نو که داسې یو سړے پیدا شی چه هغه خلقو ته امر وکړی د عبادت کولو او د هغه عبادت اونشی نو دا هم طاغوت دے .

**٤/ مشر**: هغه سړے چه د علم غیب دعوه وکړی چه ماته علم غیب معلومیږی ، او علم غیب خو د الله جل جلاله خاصه ده ځکه چه د الله نه سوا بل چاته علم غیب نشته ، او چه دې دعوه کوی نو دا په حقیقت کې د الوهیت دعوه کوی نو دا هم طاغوت دے .

**۵/ مشر**: هغه کس طاغوت دے چه د الله تعالیٰ د نازل کړده شریعت خلاف فیصلې کوی نو دا هم طاغوت دے ، ځکه چه الله کوم شریعت نازل کړے دے او د هغې نه بغیر په بل قانون باندې فیصلې کوی نو دا هم په طاغوت کې شامل دے ، او دا ځکه طاغوت دے چه الله

---

[1] [ سورة المائدة : ١١٦ ] .

[2] [ سورة المائدة : ١١٦ ] .

[3] [ سورة النازعات : ٢٤ ] .

تعالیٰ دا فیصله په قرآن کریم کې کړیده ، لکه قرآن کریم کې الله تعالیٰ فرمائی :

﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ ءَامَنُوا۟ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُوٓا۟ إِلَى ٱلطَّـٰغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوٓا۟ أَن يَكْفُرُوا۟ بِهِۦ وَيُرِيدُ ٱلشَّيْطَـٰنُ أَن يُضِلَّهُمْ ضَلَـٰلًۢا بَعِيدًا ﴿٦٠﴾ ﴾[1]

لکه کعب بن اشرف یهودی ، چه د دوو کسانو په مینځ کې په څه څیز باندې جګړه راغله چه یو یهودی وو دهٔ ویل چه فیصله به رسول الله ﷺ ته وړو ، او دا بل بشر نوم وو منافق وو چه ځان ته ئې مسلمان ویل نو هغه ویل : چه فیصله به کعب ابن اشرف ته وړو ، خو آخر کې رسول الله ﷺ ته راغلل نو رسول الله ﷺ ورلره فیصله اوکړه خو په هغه فیصله باندې دا بشر منافق راضی نهٔ وو او بل خوشحاله وو ځکه چه د هغه په حق کې فیصله اوشوه چه هغه یهودی وو ، بیا ابو بکر صدیق ﷺ ته لاړل نو هغه ته ئې قصه اوکړه چه مونږ له مخکې رسول الله ﷺ فیصله کړې خو دا ستاسو ملګرے منافق ئې نهٔ منی نو ابو بکر صدیق ﷺ ترینه انکار اوکړو چه زه بیا فیصله نهٔ کوم ، بیا عمر فاروق ﷺ ته لاړل او هغه ته ئې هم دغه اووئیل چه رسول الله ﷺ مونږ لره فیصله اوکړه خو دا منافق ئې نهٔ منی نو عمر ﷺ ورته اووئیل چه رسول الله ﷺ اوکړه دوی اووئیل : چه آو ، بیا عمر ﷺ ورته اووئیل : چه زهٔ رازم ، کور ته لاړو او خپله توره ئې راواغستله او د رارسیدو سره ئې د منافق نه سر قلم کړو بیا ئې اووئیل : چه څوک د الله او د هغه د رسول په فیصله باندې راضي نهٔ وی نو دهغه دپاره بیا زه دا فیصله کوم ، بیا رسول الله ﷺ ته خبر راغلی چه عمر ﷺ مسلمان قتل کړو ، نو الله تعالیٰ آیات نازل کړو : ﴿ فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا۟ فِىٓ أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا۟ تَسْلِيمًا ﴾[2]

---

[1] [ سورة النساء : ٦٠ ] .

[2] [ سورة النساء : ٦٥ ] .

## د ایمان د صحیح کیدلو شرط

نو دا خو د طاغوت ارکان شو او اوس هم چه داسې څوک کوی نو دا ئې حکم دے ددې مذکوره تعریفاتو او د ارکانو نه لنډ مطلب دا راؤوتلو چه د ایمان صحیح کیدلو شرط دا دے چه په خپلو اختلافاتو او منازعاتو کې به فیصله په قرآن او سنت باندې کوی ، یعنی ایمان تش ددې نوم ندے چه صرف سړے مونځ کوی او عبادت کوی نور اخواه په دنیاوی معاملاتو کې خپله خوښه ده چه په څه طریقه او په چا باندې چه فیصله کوی نو کوی دې ، نهٔ د ایمان شرط دا دے او د ایمان تقاضا دا ده چه اوس به په خپلو معاملاتو کې په خپلو دنیاوی امورو کې فیصله کوی او که اختلافات حل کوی نو هغه به په قرآن او سنت باندې کوی چه دا ئې ایجابی تقاضا شوه یعنی دا په مسلمان باندې واجب شو ، ورسره سلبی تقاضا دا ده چه د غیر د قانون نه به بائیکاټ وی لا إلٰه إلا الله کې ، لا کې د غیر د قانون نه بائیکاټ شو او إلا الله کې د الله قانون منل شو دا د دې کلمې مقصد دے ددې د وضاحت دپاره یو څو خبرو نشاندهی صرف د قرآن کریم نه کوو ، خو دا به په دوه طریقو سره واضحه کوو : ١/ ایجابی انداز سره ، ٢/ سلبی انداز سره .

## اوله خبره : ایجابی انداز

١/ چه حاکمیت صرف د الله صفت دے ، ٢/ قرآن کریم د الله رب العزت فیصله او قانون دے ، ٣/ په اختلافاتو او منازعاتو کې فیصله کول د الله په قانون چه هغه قرآن او سنت دي ، ٤/ چا چه د الله په قانون فیصله اوکړه نو هغه له ئې لقب د فائز ورکړے دے ٥/ تارکین ( پریخودونکی ) ددې فرائضو په هغوی ئې فتوی لګولے او سزا د دنیا او آخرت .

**اولنۍ خبره**: حاکمیت او حکومت فیصله کونکے دا صفت صرف د الله تعالیٰ دے پدې مسئله باندې ډیر دلائل دي د قرآن کریم نه ، بعضې به دلته ذکر کړو دپاره د فائدے :

**١/ دلیل** : الله سبحانه وتعالیٰ په قرآن کریم کې فرمائی :

﴿ قُلْ إِنِّى عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّى وَكَذَّبْتُم بِهِۦ ۚ مَا عِندِى مَا تَسْتَعْجِلُونَ بِهِۦٓ ۚ إِنِ

ٱلْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ يَقُصُّ ٱلْحَقَّ وَهُوَ خَيْرُ ٱلْفَٰصِلِينَ ﴿٥٧﴾ ﴾ [1]

ندے اختيار د فيصلے او د حكومت مكر صرف د يو الله دے كه د بل چا هر څه وى كه هغه د مادياتو وى او كه د تكوينياتو وى كه د تشريعياتو وى يعنى حاكميت او حكومت دا صفت د يو الله تعالىٰ دے .

**٢/ دليل**: دغه شان سورة اعراف كښ الله فرمائى :

﴿ إِنَّ رَبَّكُمُ ٱللَّهُ ٱلَّذِى خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ فِى سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ ٱسْتَوَىٰ عَلَى ٱلْعَرْشِ يُغْشِى ٱلَّيْلَ ٱلنَّهَارَ يَطْلُبُهُۥ حَثِيثًا وَٱلشَّمْسَ وَٱلْقَمَرَ وَٱلنُّجُومَ مُسَخَّرَٰتٍۭ بِأَمْرِهِۦٓ ۗ أَلَا لَهُ ٱلْخَلْقُ وَٱلْأَمْرُ ۗ تَبَارَكَ ٱللَّهُ رَبُّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٥٤﴾ ﴾ [2]

خبر دار واورئ چه خاص الله تعالىٰ لره پيدائش د هر شى دے او قانون او اختيارات د قانون او فيصله د هر شى دا هم الله تعالىٰ لره دي چه مخلوق د الله دے نو قانون به هم پرې د الله تعالىٰ وى .

**٣/ دليل**: ﴿ مَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِهِۦٓ إِلَّآ أَسْمَآءً سَمَّيْتُمُوهَآ أَنتُمْ وَءَابَآؤُكُم مَّآ أَنزَلَ ٱللَّهُ بِهَا مِن سُلْطَٰنٍ ۚ إِنِ ٱلْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ ۚ أَمَرَ أَلَّا تَعْبُدُوٓا۟ إِلَّآ إِيَّاهُ ۚ ذَٰلِكَ ٱلدِّينُ ٱلْقَيِّمُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٤٠﴾ ﴾ [3]

ندے اختيار د فيصلے مكر د يو الله دے .

**٤/ دليل**: هم دغه شان روسته ورپسې بيا الله فرمائى :

---

1 [ سورة الأنعام : ٥٧ ] .

2 [ سورة الأعراف : ٥٤ ] .

3 [ سورة يوسف : ٤٠ ] .

﴿ وَقَالَ يَٰبَنِيَّ لَا تَدۡخُلُواْ مِنۢ بَابٖ وَٰحِدٖ وَٱدۡخُلُواْ مِنۡ أَبۡوَٰبٖ مُّتَفَرِّقَةٖۖ وَمَآ أُغۡنِي عَنكُم مِّنَ ٱللَّهِ مِن شَيۡءٍۖ إِنِ ٱلۡحُكۡمُ إِلَّا لِلَّهِۖ عَلَيۡهِ تَوَكَّلۡتُۖ وَعَلَيۡهِ فَلۡيَتَوَكَّلِ ٱلۡمُتَوَكِّلُونَ ٦٧ ﴾[1]

**٥/ دليل** : ﴿ أَوَلَمۡ يَرَوۡاْ أَنَّا نَأۡتِي ٱلۡأَرۡضَ نَنقُصُهَا مِنۡ أَطۡرَافِهَاۚ وَٱللَّهُ يَحۡكُمُ لَا مُعَقِّبَ لِحُكۡمِهِۦۚ وَهُوَ سَرِيعُ ٱلۡحِسَابِ ٤١ ﴾[2]

الله فيصله کونکې دے فيصله کوی نشته وريسې کيدونکې په فيصلے د الله پسې بل خوک د الله قانون او فيصله خوک نشی بدلولے .

**٦/ دليل** : ﴿ قُلِ ٱللَّهُ أَعۡلَمُ بِمَا لَبِثُواْۖ لَهُۥ غَيۡبُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِۖ أَبۡصِرۡ بِهِۦ وَأَسۡمِعۡۚ مَا لَهُم مِّن دُونِهِۦ مِن وَلِيّٖ وَلَا يُشۡرِكُ فِي حُكۡمِهِۦٓ أَحَدٗا ٢٦ ﴾[3]

( نۀ شريکوی الله په خپله فيصله کې هيڅ يو تن ) دا قرآن کې په ډيرو ځايونو کې راغلی خو عنوانات ئې مختلف دي يو آيت هم کافی دے چه فيصله کونکې صرف الله تعالیٰ دے حاکميت او حکومت د الله دے .

**دويمه خبره** : **الله رب العزت خپل قانون او فيصله د قرآن په شکل کې مونږه ته رالیږلې دے دا قرآن کريم الله تعالیٰ ددې دپاره نازل کړيدے چه مونږ پدې باندې فيصلے اوکړو ځکه چه دا قرآن کريم د الله تعالیٰ فيصله ده او د الله تعالیٰ قانون دے ، لکه الله فرمائی :**

﴿ إِنَّآ أَنزَلۡنَآ إِلَيۡكَ ٱلۡكِتَٰبَ بِٱلۡحَقِّ لِتَحۡكُمَ بَيۡنَ ٱلنَّاسِ بِمَآ أَرَىٰكَ ٱللَّهُۚ وَلَا تَكُن لِّلۡخَآئِنِينَ خَصِيمٗا ١٠٥ ﴾[4]

---

1) [ سورة يوسف : ٦٧ ] .

2) [ سورة الرعد : ٤١ ] .

3) [ سورة الكهف : ٢٦ ] .

4) [ سورة النساء : ١٠٥ ] .

يقينا نازل کړے مې دے تا ته دا کتاب دپاره د ښکاره کولو د حق او دې دپاره چه ته فيصله اوکړے په مينځ د خلقو کې په هغه څه باندې چه خودلى دى تا ته الله تعالىٰ .

**دارنګه بل ځائى کې الله تعالىٰ فرمائى :**

﴿ وَأَنزَلْنَآ إِلَيْكَ ٱلْكِتَٰبَ بِٱلْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ ٱلْكِتَٰبِ وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ ۖ فَٱحْكُم بَيْنَهُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ ۖ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَآءَهُمْ عَمَّا جَآءَكَ مِنَ ٱلْحَقِّ ۚ لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنكُمْ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا ۚ وَلَوْ شَآءَ ٱللَّهُ لَجَعَلَكُمْ أُمَّةً وَٰحِدَةً وَلَٰكِن لِّيَبْلُوَكُمْ فِى مَآ ءَاتَىٰكُمْ ۖ فَٱسْتَبِقُوا۟ ٱلْخَيْرَٰتِ ۚ إِلَى ٱللَّهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيعًا فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴿٤٨﴾ ﴾[1]

فيصله اوکړه د دوى په مينځ کې په هغه څه چه رالیږلی درته الله تعالىٰ .

**دارنګه وروستې آيت کې بيا الله تعالىٰ فرمائى :**

﴿ وَأَنِ ٱحْكُم بَيْنَهُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَآءَهُمْ وَٱحْذَرْهُمْ أَن يَفْتِنُوكَ عَنۢ بَعْضِ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ إِلَيْكَ ۖ فَإِن تَوَلَّوْا۟ فَٱعْلَمْ أَنَّمَا يُرِيدُ ٱللَّهُ أَن يُصِيبَهُم بِبَعْضِ ذُنُوبِهِمْ ۗ وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ ٱلنَّاسِ لَفَٰسِقُونَ ﴿٤٩﴾ ﴾[2]

او فيصله اوکړه د دوى په مينځ کې په هغه څه چه نازل کړی دى الله تعالىٰ .

﴿ أَفَغَيْرَ ٱللَّهِ أَبْتَغِى حَكَمًا وَهُوَ ٱلَّذِىٓ أَنزَلَ إِلَيْكُمُ ٱلْكِتَٰبَ مُفَصَّلًا ۚ وَٱلَّذِينَ ءَاتَيْنَٰهُمُ ٱلْكِتَٰبَ يَعْلَمُونَ أَنَّهُۥ مُنَزَّلٌ مِّن رَّبِّكَ بِٱلْحَقِّ ۖ فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ ٱلْمُمْتَرِينَ ﴿١١٤﴾ ﴾[3]

آيا بغير د الله تعالىٰ نه زه ولټوم ځانله يو بل فيصله کونکې او الله هغه ذات دے چه

---

1) [ سورة المائدة : ٤٨ ] .

2) [ سورة المائدة : ٤٩ ] .

3) [ سورة الأنعام : ١١٤ ] .

راليږلي ئي دے تاسو دا کتاب بالکل واضحه .

**نو دا کتاب صرف د ختمونو او د ثوابونو دپاره ندے چه بس صرف د سورة یاسین ختم اوکړے او خلاص به شی ، نهٔ بلکه دا د قانون او د فیصلے کتاب دے .**

**دریمه خبره : په اختلافاتو او منازعاتو کښې په مونږ باندې دا خبره فرض کړے شویده چه مونږ به فیصله په قانون د قرآن او سنت باندې کوو قرآن قانون دے او الله تعالیٰ ئې حاکم دے مونږ له ئې اختیار ندے راکړے چه څه کوے نو بس کوه ، نهٔ بلکه مونږ باندې په اختلافاتو او منازعاتو کښې فیصله کول په قرآن کریم او په سنت باندې لازم کړیده او فرض کړیده ، لکه الله تعالیٰ فرمائی :**

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُواْ ٱلرَّسُولَ وَأُوْلِي ٱلۡأَمۡرِ مِنكُمۡۖ فَإِن تَنَٰزَعۡتُمۡ فِي شَيۡءٖ فَرُدُّوهُ إِلَى ٱللَّهِ وَٱلرَّسُولِ إِن كُنتُمۡ تُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِۚ ذَٰلِكَ خَيۡرٞ وَأَحۡسَنُ تَأۡوِيلًا ٥٩ ﴾[1]

که ستاسو اختلاف او جګړه په یو کار کښې راشی نو واپس ئې کړئ دې لره الله او پیغمبر ته ، که الله او آخرت منئ نو فیصله به په اختلافاتو کښې د الله تعالیٰ په قانون باندې کوئ .

**دا رنګه الله تعالیٰ قسم کوی پدې مسئله کښې فرمائی :**

﴿ فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤۡمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيۡنَهُمۡ ثُمَّ لَا يَجِدُواْ فِيٓ أَنفُسِهِمۡ حَرَجٗا مِّمَّا قَضَيۡتَ وَيُسَلِّمُواْ تَسۡلِيمٗا ٦٥ ﴾[2]

داسې نده زما دې قسم وی په رب ستا باندې دوی مؤمنان نشی کیدلې تر دې پورے چه دوی فیصله اوکړی په تا باندې اے نبی زما په هغه اختلاف کښې چه د دوی په مینځ کښې راغلے دے .

﴿ سَمَّٰعُونَ لِلۡكَذِبِ أَكَّٰلُونَ لِلسُّحۡتِۚ فَإِن جَآءُوكَ فَٱحۡكُم بَيۡنَهُمۡ أَوۡ أَعۡرِضۡ عَنۡهُمۡۖ

---

1) [ سورة النساء : ٥٩ ] .

2) [ سورة النساء : ٦٥ ] .

وَإِن تُعۡرِضۡ عَنۡهُمۡ فَلَن يَضُرُّوكَ شَيۡـًٔاۖ وَإِنۡ حَكَمۡتَ فَٱحۡكُم بَيۡنَهُم بِٱلۡقِسۡطِۚ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلۡمُقۡسِطِينَ ﴿٤٢﴾ ﴾[1]

يهوديانو اختلافات راؤړل خو فيصله به تهٔ په قرآن او په سنت کوے د غير مذهب اختلاف دا به د هغوی په قانون نه حل کوے هغه به په خپل قانون حل کوے که ته فيصله کوے د دوی تر مينځه نو فيصله اوکړه په انصاف په قانون د قرآن او سنت باندې .

﴿ وَمَا ٱخۡتَلَفۡتُمۡ فِيهِ مِن شَيۡءٖ فَحُكۡمُهُۥٓ إِلَى ٱللَّهِۚ ذَٰلِكُمُ ٱللَّهُ رَبِّي عَلَيۡهِ تَوَكَّلۡتُ وَإِلَيۡهِ أُنِيبُ ﴿١٠﴾ ﴾[2]

او هغه چه اختلاف کوئ تاسو په دې کې د څه څيز نه نو فيصله ئې الله ته ده

﴿ ثُمَّ جَعَلۡنَٰكَ عَلَىٰ شَرِيعَةٖ مِّنَ ٱلۡأَمۡرِ فَٱتَّبِعۡهَا وَلَا تَتَّبِعۡ أَهۡوَآءَ ٱلَّذِينَ لَا يَعۡلَمُونَ ﴿١٨﴾ ﴾[3]

الله درته شريعت مقرر کړے دے ته به د هغې تابعداری کوے .

**بيا ددې مساوقات او مترادفات ډير زيات دي**

**څلورمه خبره : چه څوک د دې فرضو اداء کونکې وی نو هغه له ئې لقب د فائز (کامياب) او د مفزء ورکړے دے چه دا فرض چا اداء کړل د الله په قانون ئې فيصله اوکړله د الله او د پيغمبر د قانون تابعداری ئې اوکړله نو هغه کامياب دي په دنيا او په آخرت کې ، او دا مسئله د قرآن کريم په ډيرو آيتونو کې ذکر ده ، بعضی د هغې نه دلته ذکر کوو :**

﴿ وَمَن يُطِعِ ٱللَّهَ وَٱلرَّسُولَ فَأُوْلَٰٓئِكَ مَعَ ٱلَّذِينَ أَنۡعَمَ ٱللَّهُ عَلَيۡهِم مِّنَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ وَٱلصِّدِّيقِينَ

---

1) [ سورة المائدة : ٤٢ ] .

2) [ سورة الشورىٰ : ١٠ ] .

3) [ سورة الجاثية : ١٨ ] .

وَٱلشُّهَدَآءِ وَٱلصَّٰلِحِينَۚ وَحَسُنَ أُوْلَٰٓئِكَ رَفِيقٗا ﴿٦٩﴾ ﴾[1]

چه د الله او د پيغمبر قانون اومنلو نو دا به وى د انبياؤ سره د علماؤ سره او د شهيدانو سره .

﴿ إِنَّمَا كَانَ قَوۡلَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ إِذَا دُعُوٓاْ إِلَى ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ لِيَحۡكُمَ بَيۡنَهُمۡ أَن يَقُولُواْ سَمِعۡنَا وَأَطَعۡنَاۚ وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُفۡلِحُونَ ﴿٥١﴾ ﴾[2]

يقينا وه وينا د مؤمنانو چه کله هم راؤبللے شی الله او پيغمبر ته د دې دپاره چه فيصله اوکړی د دوی په مينځ کې نو وائی دوی چه واؤريدل مونږه او اومنل مونږه او دوی کامياب دی چا چه اومنله د الله او د پيغمبر او ويريدو د الله نه او ځان ئې بچ کړو نو دا کامياب دی .

**نو داسې قسمه خلقو ته قرآن کريم دا بهترين لقبونه ورکړيدی چه د الله او د پيغمبر په قانون روان دي او دغه فرض اداء کوی .**

**پنځمه خبره: چه څوک دا فرض نهٔ اداء کوی او د هغې تارکين دي نو په هغوی باندې قرآن کريم فتوی هم لګولے ده او د دنيا او د آخرت سزا ئې ورته هم وئيلې ده ، لکه الله فرمائی:**

﴿ أَلَمۡ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ أُوتُواْ نَصِيبٗا مِّنَ ٱلۡكِتَٰبِ يُدۡعَوۡنَ إِلَىٰ كِتَٰبِ ٱللَّهِ لِيَحۡكُمَ بَيۡنَهُمۡ ثُمَّ يَتَوَلَّىٰ فَرِيقٞ مِّنۡهُمۡ وَهُم مُّعۡرِضُونَ ﴿٢٣﴾ ﴾[3]

آيا تهٔ فکر نه کوے هغه کسانو ته چه ورکړے شويدے هغوی ته څه حصه د کتاب نه چه رابللے کيږی د الله کتاب ته د دې دپاره چه فيصله اوکړی د دوی ترمينځه .

**نو دا ئې د يهودو صفت ذکر کړے دے او د اهل کتابو ئې دا صفت ذکر کړيدے .**

**دا رنګه په سورة النساء کې ئې ورته منافقان وئيلی دی ، الله فرمائی :**

---

1) [ سورة النساء : ٦٩ ] .

2) [ سورة النور : ٥١ ] .

3) [ سورة آل عمران : ٢٣ ] .

﴿ وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْاْ إِلَىٰ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ وَإِلَى ٱلرَّسُولِ رَأَيْتَ ٱلْمُنَٰفِقِينَ يَصُدُّونَ عَنكَ صُدُودًا ﴿٦١﴾ ﴾[1]

كله چه ووئيلې شي دوى ته راشئ هغه څه ته چه نازل كړى دى الله پيغمبر ته وينى به منافقان چه دوى به د قرآن او د سنت قانون نه بنديږى .

**دارنګه په سورة المائده كې وربانديې د كفر او د ظلم او د فسق فتوى لګولے ده :**

﴿ إِنَّآ أَنزَلْنَا ٱلتَّوْرَىٰةَ فِيهَا هُدًى وَنُورٌ ۚ يَحْكُمُ بِهَا ٱلنَّبِيُّونَ ٱلَّذِينَ أَسْلَمُواْ لِلَّذِينَ هَادُواْ وَٱلرَّبَّٰنِيُّونَ وَٱلْأَحْبَارُ بِمَا ٱسْتُحْفِظُواْ مِن كِتَٰبِ ٱللَّهِ وَكَانُواْ عَلَيْهِ شُهَدَآءَ ۚ فَلَا تَخْشَوُاْ ٱلنَّاسَ وَٱخْشَوْنِ وَلَا تَشْتَرُواْ بِـَٔايَٰتِى ثَمَنًا قَلِيلًا ۚ وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْكَٰفِرُونَ ﴿٤٤﴾ ﴾[2]

﴿ وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيهَآ أَنَّ ٱلنَّفْسَ بِٱلنَّفْسِ وَٱلْعَيْنَ بِٱلْعَيْنِ وَٱلْأَنفَ بِٱلْأَنفِ وَٱلْأُذُنَ بِٱلْأُذُنِ وَٱلسِّنَّ بِٱلسِّنِّ وَٱلْجُرُوحَ قِصَاصٌ ۚ فَمَن تَصَدَّقَ بِهِۦ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَّهُۥ ۚ وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴿٤٥﴾ ﴾[3]

﴿ وَلْيَحْكُمْ أَهْلُ ٱلْإِنجِيلِ بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ فِيهِ ۚ وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْفَٰسِقُونَ ﴿٤٧﴾ ﴾[4]

---

1) [ سورة النساء : ٦١ ] .

2) [ سورة المائدة : ٤٤ ] .

3) [ سورة المائدة : ٤٥ ] .

4) [ سورة المائدة : ٤٧ ] .

دارنګه بل ځائې کې ورته الله اعراض کونکی وئیلی دی :

﴿ وَإِذَا دُعُوٓاْ إِلَى ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ لِيَحۡكُمَ بَيۡنَهُمۡ إِذَا فَرِيقٞ مِّنۡهُم مُّعۡرِضُونَ ﴿٤٨﴾ ﴾[1]

کله چه راوبللے شی دوی الله او پیغمبر طرف ته چه فیصله اوکړی د دوی ترمینځه نو دغه وخت کې دوی اعراض کونکی وی د دینه .

او په آخر کې ئې ورته ظالم وئیلی دی ، لکه الله فرمائی :

﴿ أُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴿٥٠﴾ ﴾[2]

مطلب دا شو چه دا پریخودنکي د فرضو دي ، او چه په قانون د قرآن او سنت باندې فیصله نۀ کوی نو په هغوئ ئې فتوی لګولے نو د دنیا او د آخرت سزا ئې ورته بیان کړه ، دا ایجابی طریقې سره وو ځکه الله حاکم دے قرآن ئې فیصله او قانون دے او په مسلمانانو ئې فرض کړیده چه دوی به په قرآن او سنت باندې فیصله کوی نو ددې فرضو اداء کونکی مسلمانان دی او نۀ اداء کونکي ئې کافر دے ، نو پدې باندې ځان پوهه کول او عوام پوهه کول دا ستاسو فریضه ده ځکه دوی یو جانب نه خبر دي چه عبادت د الله تعالیٰ حق دے خو ددې بل جانب نه ندی خبر چه حکومت هم د الله تعالیٰ دے ، دارنګه دا خبره خلق منی چه رکوع او سجده به صرف الله ته کوے خو دا خبره خلق نۀ منی چه حکومت به صرف د الله وی ، دا رنګه خلق دا خبره منی چه خالق الله تعالیٰ دے خو دا خبره نۀ منی چه فیصله کونکي هم الله تعالیٰ دے ، نو عوام پدې مسئله باندې پوهه کول دا په ایمان باندې پوهه کول دی .

---

1) [ سورة النور : ٤٨ ] .

2) [ سورة النور : ٥٠ ] .

## دويمه خبره: سلبی انداز

### ١/ د غیر الله د عبادت نه بائیکاټ:

دا په مسلمانانو باندې فرض دي چه الله ته قانون ساز ووائی چه د الله قانون قرآن دے چه په قرآن سنت باندې فیصله اوکړی ، دویمه دا خبره هم فرض ده چه د غیر د قانون فیصلې نه بائیکاټ اوکړی چه نه پرې فیصله کوی او نه به ئې اوری او نه به د هغوی په فیصله باندې خوشحالیږی دا دویم جزء د کلمې دے او د انبیاؤ علیهم السلام د راتلو دریم مشن وو دا انبیاء چه څنګه دي خبرے له راغلی وو چه خلق الله تعالیٰ طرف ته راوبلئ د الله عبادت او حکومت ته نو انبیاء دي له هم راغلی وو چه هغوی د غیر الله عبادت ، حکومت رد کړی نو دا هم په مؤمنانو باندې فرض دی چه د غیر نه به بائیکاټ کوی ، او پدې باندې د قرآن کریم ډیر آیتونه دلالت کوی بعضی د هغې نه دلته رانقل کوو :

﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ ءَامَنُوا۟ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُوٓا۟ إِلَى ٱلطَّٰغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوٓا۟ أَن يَكْفُرُوا۟ بِهِۦ وَيُرِيدُ ٱلشَّيْطَٰنُ أَن يُضِلَّهُمْ ضَلَٰلًۢا بَعِيدًا ﴿٦٠﴾ ﴾[1]

دوی اراده لری چه فیصله یوسی طاغوت ته او دوی ته وئیلے شویدی چه انکار اوکړئ د دینه .

﴿ وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِى كُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولًا أَنِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ وَٱجْتَنِبُوا۟ ٱلطَّٰغُوتَ ۖ فَمِنْهُم مَّنْ هَدَى ٱللَّهُ وَمِنْهُم مَّنْ حَقَّتْ عَلَيْهِ ٱلضَّلَٰلَةُ ۚ فَسِيرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ فَٱنظُرُوا۟ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلْمُكَذِّبِينَ ﴿٣٦﴾ ﴾[2]

---

[1] [ سورة النساء : ٦٠ ] .

[2] [ سورة النحل : ٣٦ ] .

يقينا ليږلی ی وو په هر امت کې يو پيغمبر پدې مسئله چه عبادت به کوئ د يو الله او ځان وساتئ د طاغوت نه .

﴿ لَآ إِكۡرَاهَ فِي ٱلدِّينِۖ قَد تَّبَيَّنَ ٱلرُّشۡدُ مِنَ ٱلۡغَيِّۚ فَمَن يَكۡفُرۡ بِٱلطَّٰغُوتِ وَيُؤۡمِنۢ بِٱللَّهِ فَقَدِ ٱسۡتَمۡسَكَ بِٱلۡعُرۡوَةِ ٱلۡوُثۡقَىٰ لَا ٱنفِصَامَ لَهَاۗ وَٱللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٥٦﴾ ﴾[1]

چا چه انکار اوکړو د طاغوت نه او منګولے ئې اولګولے په مضبوطه کړئ باندې .

﴿ وَٱلَّذِينَ ٱجۡتَنَبُواْ ٱلطَّٰغُوتَ أَن يَعۡبُدُوهَا وَأَنَابُوٓاْ إِلَى ٱللَّهِ لَهُمُ ٱلۡبُشۡرَىٰۚ فَبَشِّرۡ عِبَادِ ﴿١٧﴾ ﴾[2]

هغه کسان چه ځان ئې بچ کړو د طاغوت نه ( يعنی د بندګئ د طاغوت نه ) او راوګرځيدو الله ته نو دوی لره خوشحالی ده ، زيرے ورکړه بندګانو زما له .

﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمۡ كَرِهُواْ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ فَأَحۡبَطَ أَعۡمَٰلَهُمۡ ﴿٩﴾ ﴾[3]

ددې وجه نه چه دوئ بد اوګڼړلو هغه قانون چه نازل کړے وو الله پس برباد کړل الله د دوی عملونه .

**چه د الله تعالیٰ قانون د چا بدې شو نو بيا هغه ته نۀ مونځ فائده ورکوی او نۀ روژه او نۀ زکاة وغيره .**

﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمۡ قَالُواْ لِلَّذِينَ كَرِهُواْ مَا نَزَّلَ ٱللَّهُ سَنُطِيعُكُمۡ فِي بَعۡضِ ٱلۡأَمۡرِۖ وَٱللَّهُ يَعۡلَمُ إِسۡرَارَهُمۡ ﴿٢٦﴾ ﴾[4]

**دا ددې وجه نه چه يقينا دوی وئيلی وو هغه کسانو ته چه بد ئې ګڼړلی وو هغه قانون چه**

---

1 [ سورة البقرة : ٢٥٦ ] .

2 [ سورة الزمر : ١٧ ] .

3 [ سورة محمد : ٩ ] .

4 [ سورة محمد : ٢٦ ] .

لړ لړ رالیږلے وو الله ، څه به وی حال د دوی چه کله ساه اخلی د دوی نه ملائک وهی به ورته مخونه او شاګاني دا د دې د وجه نه چه یقینا دوی روان وو په هغه څه پسې چه غصه کړے وو الله ، د الله تعالیٰ رضامندتیا ئې بده ګنړلے وه ، د الله رضامندتیا د الله په قانون کې وه او دوی د غیر پسې روان وو.

﴿ ٱتَّبِعُواْ مَآ أُنزِلَ إِلَيۡكُم مِّن رَّبِّكُمۡ وَلَا تَتَّبِعُواْ مِن دُونِهِۦٓ أَوۡلِيَآءَۗ قَلِيلٗا مَّا تَذَكَّرُونَ ۝٣ ﴾[1]

روان شئ په هغه څه پسې چه نازل کړے شویدی تاسو ته د طرفه د رب ستاسو نه او مه روانیږئ د دې نه علاوه په نورو ذمه دارانو پسې که هغه د قبیلې مشر وی که د یو پارټۍ مشر وی او که د قام مشر وی او که هغه اکثریت وی.

﴿ وَلَا تَأۡكُلُواْ مِمَّا لَمۡ يُذۡكَرِ ٱسۡمُ ٱللَّهِ عَلَيۡهِ وَإِنَّهُۥ لَفِسۡقٞۗ وَإِنَّ ٱلشَّيَٰطِينَ لَيُوحُونَ إِلَىٰٓ أَوۡلِيَآئِهِمۡ لِيُجَٰدِلُوكُمۡۖ وَإِنۡ أَطَعۡتُمُوهُمۡ إِنَّكُمۡ لَمُشۡرِكُونَ ۝١٢١ ﴾[2]

که تاسو اومنله د دوی نو یقینا تاسو به مشرکان یئ او حِل او حرمت په مسئلو کې د قانون سازئ په مسئلو کې د مشرکانو دې اومنله نو یقینا خامخا تاسو به مشرکان یئ.

او پدې مسئله کې د فقهائ کرامو اقوال ډیر زیات دي لکه بزازیه ، عالمګیری ،قاضی خان وغیره کتابونو کې شته دے.

یو سړی ته تا اووئیل چه ددې معاملې حکم په شریعت کې داسې دے ، نو هغه درته اووئیل چه شریعت نه منم خو دا خبره به زه په خپل قانون کې د رسم په طور باندې کوم نو د فقهاؤ فتوی ده « یکفر » دا سړے پدې کافر شو.

دا ایمان دے چه بائیکاټ به د غیر د قانون نه کوے اوس په اکثرو ځاینو کې دې له ئې نوم کیخودو د طاغوت.

---

[1] [ سورة الأعراف : ٣ ].

[2] [ سورة الأنعام : ١٢١ ].

ددې وجه نه امام رازى رحمه الله فرمائى : ايمان کې کفر بالطاغوت فرض کړے دے دا کله کله چه وائى : « لا بد فى الإيمان من الكفر » ايمان به هغه ايمان شى چه په ايمان کې د هر قسمه طاغوت نه منکر شى او مخکې چه مونږه څومره تعريفات د طاغوت ذکر کړل او ورسره ارکان هم نو د هغې نه مونږ ته دا معلومه شوه چه کفر بالطاغوت فرض دے .

**اوس ددې نه پس مسئله د کفر بالطاغوت ذکر کوو** : نو کفر بالطاغوت دا فرض دے ، او دا د ايمان د اجزاؤ نه يو جز دے د اسلام بنياد په کفر بالطاغوت باندې پروت دے، لکه لاإلٰه الا الله شو چه پديکې دوه جزونه دى : ١/ د نفى جز دے ، ٢/ جز د اثبات دے ، يو جز د انکار عن الکفر دے او بل جز د اتيان بالايمان دے ، نو لاإلٰه نيشته دے بل معبود که هغه په قانونى شکل باندې وى ، که هغه په عبادتى شکل کې وى د الله تعالىٰ نه غير بل معبود نشته ، نو پدې کلمه کې حاکميت الله تعالىٰ لره ثابت شو نو پدې کلمه کې اولنې کفر بالطاغوت راغلې ، نو د الله نه غير چه څومره هم اٰلهه دى نو هغه ټول طواغيت دى ، نو په لاإلٰه کې کفر بالطاغوت شو او په إلا الله کې ايمان بالله شو ، او ددې کلمې تشريح قرآن کريم پخپله کړيده لکه الله تعالىٰ فرمائى : ﴿ فَمَن يَكْفُرْ بِٱلطَّٰغُوتِ وَيُؤْمِنۢ بِٱللَّهِ فَقَدِ ٱسْتَمْسَكَ بِٱلْعُرْوَةِ ٱلْوُثْقَىٰ ﴾ [1] نو فمن يکفر بالطاغوت لاإلٰه شو ، او ويؤمن بالله دا إلا الله شو ، نو مؤمن کيږے به هله چه کفر بالطاغوت اوکړے او ايمان بالله راوړے نو بيا به مؤمن شى ، که بالفرض تا داسې اوئيل : چه لاإلٰه الا فلان نو بيا دې هم ايمان ندے متحقق ، او که چرته تهٔ ايمان بالله منې خو لا إلٰه کفر بالطاغوت نهٔ کوے نو بيا دې هم ايمان ندے متحقق ، ددې وجه نه د پيغمبر عليه السلام د راتلو سره سمدستى دا انقلابى نعره اولګوله ، او دا د دې وجه نه چه کفر بالطاغوت د ايمان بالله دپاره شرط دے ، لکه نعوذ بالله مونږه مخکې هم دا خبره ذکر کړې وه چه د نبى کريم ﷺ د راتلو سره په هغه وقت کې په کعبه کې 360 بتان

---

[1] [ سورة البقرة : ٢٥٦ ] .

پراته وو او د هیچ چا په مینځ کې اختلاف نوو چه ته زما د بت عبادت ولې نهٔ کوے او بل بل ته وئیلے وے چه ته زما د بت عبادت ولې نهٔ کوے ، نو که چرته نبی کریم ﷺ ورته وئیلے وے چه اے خلقو ! زه هم درته یو معبود خائم او صرف د ایمان دعوت ئې چلولے وے چه په الله تعالیٰ باندې هم ایمان راوړئ او دا به هم ددې نورو سره یو ځائی کړو نو ټول به 361 معبودان شی نو د چا به هم ورسره اختلاف نهٔ راتلو ، خو نهٔ داسې نده ځکه چه نبی کریم ﷺ دعوت عالمي دعوت وو چه لا إلٰه په طاغوت باندې اول کفر کول دي او روستو بیا إلا الله ایمان بالله دے نو که چرته کفر بالطاغوت دې نوي کړے نو ایمان بالله ستا نهٔ صحیح کیږي ددې وجه نه نبی کریم ﷺ دوي جمع نهٔ کړل .

دغه شان ظلال القرآن کې سید قطب رحمه الله لیکلي دی : چه تهٔ د خپلې زمانې سره په لاإلٰه الا الله باندې یقین ساتی که چاته دعوت ورکوے نو لاإلٰه الا الله به د هغه زمانې سره مطابق استعمالوے ، لکه تهٔ اوګوره : چه د مکې مشرکینو عقیده د خلق په باره کې دا وه چه خالق صرف الله دے لکه الله تعالیٰ قرآن کریم کې فرمائی : ﴿ وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ لَيَقُولُنَّ ٱللَّهُ ﴾ [1] " که چرته تهٔ ددې مشرکانو نه تپوس اوکړے چه آسمانونه او زمکه چا پیدا کړیده نو دوی به ووائی چه الله پیدا کړیدی " **نو ددوئ دا عقیده وه چه لا خالق إلا الله ، چه خالق بل څوک نشته مګر یو الله تعالیٰ دے دا دوئ عقیده وه ،** دارنګه بل ځائی کې الله فرمائي که ته ترینه دا تپوس اوکړے چه : ﴿ وَمَن يُدَبِّرُ ٱلْأَمْرَ فَسَيَقُولُونَ ٱللَّهُ ﴾ [2] " چه تدبیر د امورو څوک کوی نو دوی به اوائی چه الله " ، دغه شان د مالک په باره کې هم د دوئ عقیده دا وه چه مالک صرف یو الله تعالیٰ دے ، ځکه چه مشرکانو به کله حج کولو نو دوی به پکې وئیلې: « **لبیک اللهم لبیک لا شریک لک لبیک ان الحمد والنعمة**

---

1) [ سورة لقمان : ٢٥ ] .

2) [ سورة یونس : ٣١ ] .

**لک والملک لا شریک لک الا شریکا هو لک تملکه و ما ملک** » " یعنی یو شریک دے چه د هغه ته مالک ئ هغه پخپله مالک ندے تا ورله ملکیت ورکړے دے " نو دلته ئ مالکیت هم د الله دپاره ثابتولو خو چونکه عبادت ئ د الله تعالیٰ دپاره نه ثابتولو نو پیغمبر علیه السلام ورته دعوت دغه ورکړو چه لاإلٰه نشته دے لائق د عبادت الا الله مګر یو الله تعالیٰ ، پدې زمانه کې خلق خالقیت د الله منی مالکیت د الله منی ، رازقیت د الله منی ، مشکل کشایت د الله منی ، دا هر څه د الله منی خو لیکن صرف حاکمیت د الله تعالیٰ نۀ منی نو نن چه ته په لاإلٰه الا الله باندې دعوت ورکوے نو د حاکمیت د الله دعوت به ورته ورکوے چه حاکمیت اعلیٰ د الله تعالیٰ دپاره ثابت دے حاکمیت اعلیٰ د غیر الله دپاره مۀ ثابتوئ ، نو ته به هم نن د کلمې دغه دعوت ورکوے لکه څرنګه چه رسول الله ﷺ د مشرکانو د معبودیت نه انکار اوکړو نو دغه شان د مشرکانو د رسم نه ئ هم انکار اوکړو ، د دوی د رواج او د دوی د طریقې نه ئ هم انکار اوکړو ، نو چه لاإلٰه الا الله وائې نو پدیکې به د طاغوت قانون ، د طاغوت رسم ، د طاغوت طریقه دا به هم پریږدے حتی چه دا ئ اوئیل : « **من تشبه بقوم فهو منهم** » " نو چه چا ورسره تشبه هم ورکړه د طاغوت سره نو هغه به د هغوئ نه ګنړلې کیږی " او دائ هم وفرمائیل : « **من كثّر سواد قوم فهو منهم** » " چه چا د چا لښکر سوا کړو نو هغه به د هغوی نه وی " او بیا ئ دا هم اووئیل : « **ومن يتولهم منكم فانه منهم** » " چا چې د دوی سره دوستی اوکړه نو هغه به د دوی نه ګنړلے کیږی " ، نو پدغه لاإلٰه الا الله باندې رسول الله ﷺ حق پرستی ښکاره کړه ، نن صبا ډیر خلق ځان ته د حقانیت دعوے کوی خو نفی او اثبات نه کوی بلکه جمع کوی چه زۀ هم ښۀ وایم او تۀ هم بد نۀ وائی ، لکه نن خلق وائی چه مونږه د لا إلٰه دعوت کوو نو دا څنګه د لا إلٰه دعوت دے چه تر اوسه پورے تا پدې جمهوری نظام باندې رد ونۀ کړو ؟ عجیبه دعوت دے ، دارنګه بعضی خلق ځانته د مکی دور نسبت کوی چه مونږ د مکی په دور باندې عمل کوو ، او مونږ مجبوره یو ، نو دغه ته مونږ دا جواب کوو چه صحیح ده چه ته خو مدنی دور ته نۀ ځې جهاد خو نۀ کوے ، خو مکه کې د رسول الله ﷺ جګړه

په څۀ باندې جوړه شوه ، مکې دور کې رسول الله ﷺ په کانړو باندې ولې ویشتلې شو ، په مکې دور کې د رسول الله ﷺ ملګرې ولې حبشو ته لاړل ، پدې باندې لږ سوچ کول پکار دی چه دا ولې وشو ؟ نو دا په مکې دور کې ځکه وشوو : چه په مکې دور کې هغوی نعره د لاإله إلا الله لګولې وه نعره ئې د نفی او اثبات لګولې وه ، نو صحیح ده توره مۀ اوچتوئ خو دا نعره خو دې برابره کړه کنه په حاکمیت د غیر الله باندې خو رد اوکړئ ، او که رد نشې کولې نو انکار خو ترینه اوکړئ ، په حاکمیت د غیر الله باندې خو د کفر اظهار اوکړئ چه ستاسو پدې ملک کې چه کوم نظام دے دا کافرانه باطلانه جابرانه نظام دے دا نظام دې ختم شی ، نو که دا نعره دې ولګوله نو بیا درته پته لګی ته بیا پدې ملک کې وخت نشې تیرولې ، دا دواړه کسان په یو ملک کې د لا إلٰه کلمې دعوت چلوی خو یو په کلمه کې صرف مالکیت او عبودیت نعره لګوی چه الله خالق دے مالک او د سجدے حقدار صرف الله تعالیٰ دے ، او دا بل په کلمه کې د حاکمیت نعره لګوی او بیا هغه نورو د عبودیت نه صرف د سجدے او رکوع واله عبادت اخستے دے او دا نور صفات د الله تعالیٰ نه بیانوی ځکه هغې کې بیا تکالیف دې نو خبره دا ده چه د حق بیان کې تکالیف شته دے ، او د حق په پیژندلو کې مونږه محکې خبره کړے وه چه علی ﷺ به فرمائیل : چه د باطل غشی کوم طرف ته روان وی نو بس هلته حق وی ، نو ته سوچ وکړه چه د باطل غشی اوس کوم طرف ته روان دے ، ولې نن ته د دوی په مینځ کې وخت تیرولې شئ او د دعوت دپاره هر چرته تلې شئ تر دې چه پارلمان ته هم تلې شئ ، او دیخوا یو بل مسلمان دے هغه هم د لاإلٰه إلا الله دعوت ورکوی خو هغه په غرۀ کې هم وقت نشی تیره ولے دا څه وجه ده ؟ دا فرق د کوم ځائی نه راغے ؟

فرق ئې دا دے : چه «**فمن یکفر بالطاغوت ویؤمن بالله**» هغه کفر بالطاغوت کړے دے او ته کفر بالطاغوت نۀ کوے او اسلام دې منحصر کړیدے په یو څو څیزونو کې ، نو اول کفر بالطاغوت وکړه د حق پرستئ علامه هم دا ده چه ته د کلمې په دواړو جزونو باندې عمل وکړے د طاغوت نه انکار او په الله تعالیٰ باندې ایمان نو د لا إلٰه إلا الله دغه مطلب شو .

**٢/ د كفر بالطاغوت په باره کې بل مثال** : ابراهيم عليه السلام كفر بالطاغوت كوى لكه قرآن كريم كې الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ إِذْ قَالُوا۟ لِقَوْمِهِمْ إِنَّا بُرَءَٰٓؤُا۟ مِنكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ [1] نو دلته ابراهيم عليه السلام يو قطع الموالات اوكړو ، چه ورته ئى اووئيل : زهٔ بيزاره يم ستاسو نه او ستاسو د معبودانو نه چه د الله نه سوا ورته تاسو عبادت كوئ ، زمونږ دغه نظريه او فكر نشته دے كوم چه تاسو د ځان دپاره جوړ كړے دے ، نو تهٔ به هم نن اعلان كوے چه زه ستاسو د قانون او نظام جمهورى نه بيزاره يم ، نو دوي د خپل قانون تعظيم لازم كړيدے نو په تا باندې د هغه توهين لازم دے ، لكه څنګه چه ابراهيم عليه السلام د هغوي د نظرياتو او معبودانو توهين كړے وو نو دغه كفر بالطاغوت دے .

دارنګه بل ځائى كې ابراهيم عليه السلام بيا د مشركانو توهين كوى فرمائى چه تاسو عبادت كوئ : « **مالاينفعك ولايضرك** » چه نه درته نفع دركوى او نهٔ درته ضرر دركوى " او دهغه چا عبادت كوئ چه هغوى خبرے هم نشي كولے ، بيا ابراهيم عليه السلام وائى : «**كفرنا بكم** » نو ابراهيم عليه السلام كفر بالطاغوت هم اوكړو ، يعنى مونږ ستاسو پدې نظريه باندې كفر كوو ، نو په طاغوت او په اولياء الطاغوت دواړو باندې ئى كفر اوكړو ، بيا ورته وائي : ﴿ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ ٱلْعَدَٰوَةُ وَٱلْبَغْضَآءُ أَبَدًا حَتَّىٰ تُؤْمِنُوا۟ بِٱللَّهِ وَحْدَهُۥٓ ﴾ [2] " چه زمونږ ستاسو په مابين كې به دشمنى وى او بغض به هم وى " نو دلته دشمنى او بغض دواړه ئى ياد كړل ، داسې نهٔ چه ته وائى چه زما ورسره بغض شته او بس ، نهٔ دا بغض به ظاهروے او ددې د ظاهرولو دپاره علامه عداوت دے ، نو ابراهيم عليه السلام كفر بالطاغوت اوكړو او په طاغوت باندې د كفر فتوى الله تعالیٰ اولګوله لكه فرمائي : ﴿ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ يُقَٰتِلُونَ فِى سَبِيلِ

---

1) [ سورة المتحنة : ٤ ] .

2) [ سورة المتحنة : ٤ ] .

ٱللَّهِۖ وَٱلَّذِينَ كَفَرُواْ يُقَٰتِلُونَ فِي سَبِيلِ ٱلطَّٰغُوتِ فَقَٰتِلُوٓاْ أَوۡلِيَآءَ ٱلشَّيۡطَٰنِۖ إِنَّ كَيۡدَ ٱلشَّيۡطَٰنِ كَانَ ضَعِيفًا ﴿٧٦﴾ ﴾ [1] نو الله دلته صفونه جدا جدا کړل ، چه دوه قسمه صفونه دی : یو قتال د الله دپاره کوی ، او بل قتال د طاغوت دپاره کوی ، نو چه قتال د الله دپاره کوی نو په هغې باندې فتوی ولګوله چه دا مؤمنان شو ، او چه کوم خلق قتال د طاغوت دپاره کوی نو په هغوي باندې فتوی اولګوله چه کافران دی .

**بیا د طاغوت تکفیر څه شی دې**: د طاغوت تکفیر په باره کې علامه ابن جریر رحمه الله فرمائي : « **فمن يجحد ربوبية كل معبود من دون الله فيكفر ، ويؤمن بالله ويصدق بالله انه الهه وربه** » " هغه څوک چه د الله نه ماسوا چې څومره هم معبودان دی د هغوی د ربوبیت نه انکار اوکړی نو دغه سړی په طاغوت باندې کفر اوکړو ، او صرف ایمان په الله راوړی ، او تصدیق اوکړی په الله باندې چه دا زما إله او دا زما رب دے " ، زه به صرف د دهٔ قانون او دستور منم او د غیر الله قانون نه انکار کوم ، او دا به بیا په عمل کې هم ښکاره کوے د ابراهیم علیه السلام پ شان لګ الله تعالیٰ د هغه کسانو نه د ایمان نفی وکړه چه فیصله به کعب بن اشرف ته ویسو ځکه هغوي د الله قانون پریخودو او طاغوت ته لاړل ایمان ئې په الله وو خو کفر بالطاغوت ئې نهٔ وو.

نو کفر بالطاغوت دا فرض دے ، لکه الله تعالیٰ فرمائی چه څومره رسولان هم مونږ رالیږلی دی نو هغوی ټولو کفر بالطاغوت کړیدے ، لکه فرمائی : ﴿ وَلَقَدۡ بَعَثۡنَا فِي كُلِّ أُمَّةٖ رَّسُولًا أَنِ ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ وَٱجۡتَنِبُواْ ٱلطَّٰغُوتَ ﴾ [2] " یقینا ما رالیږلی دی په هر امت کې رسولان (هغوی د څهٔ دپاره راغلی دی ؟ ) چه د الله عبادت اوکړئ ( نو صرف په الله عبادت نه خلاصیږے هسې نه چه په شرک سره عبادت کوے ) د طاغوت د عبادت نه ځان

[1] [ سورة النساء : ٧٦ ] .

[2] [ سورة النحل : ٣٦ ] .

بچ کړئ " بیا الله تعالیٰ بل ځائی کې فرمائی : ﴿ وَٱلَّذِينَ ٱجۡتَنَبُواْ ٱلطَّٰغُوتَ أَن يَعۡبُدُوهَا وَأَنَابُوٓاْ إِلَى ٱللَّهِ لَهُمُ ٱلۡبُشۡرَىٰۚ فَبَشِّرۡ عِبَادِ ۝١٧ ﴾ [1] " هغه کسان چه ځان بچ کوی د عبادت د طاغوت نه او رجوع کوی الله تعالیٰ ته نو دوی دپاره زیرے دے د جنت ... " نو د جنت زیرے ئی موقوف کړو په کفر بالطاغوت باندې ، نو په طاغوت باندې کفر کول او د طاغوت خلاف قتال کول دا د امت یوه اهمه فریضه ده ، باقی ددې تفصیلی بحث به ان شاء الله په تحکیم القوانین کې راشی .

اوس هغه خلق چه هغوي په طاغوت کې داخل دي نو هغوي سره هم قتال جائز دے .

نو ټولو نه اول خو اقوام متحده دا ددې دور یو مستقل طاغوت دے دوي عالمي قوانین جوړوی او هغه د ملکونو مشران چه د دوي جوړ کړې شوي قوانین منی او دستخط ئې ورسره کړے دے ، او دوی وائی کنه چه مذهبی جنګ به نوي یعنی جهاد به نوی دارنګه غلامان به نه جوړه وو د یو بل نه ، درانګه نور ډیر کفری قوانین ئې جوړ کړي دي ، او دارنګه هر هغه خلق چه هغوي د قرآن او سینټ نه بغیر خلقو دپاره قوانین جوړ وي ، لکه پارلمان شو قانون ساز اسیملي ، دارنګه سینټ واله ، ځکه دوي قوانین جوړه وي او نظریاتي کونسل واله په کې هم داخل دي ځکه چه دوي هم په دې وضعی قوانینو باندې نظر ثاني کوي او راضی وي پرې ، دارنګه د ملک صدران هم دوي ورباندې بیا توثیق کوي ، نو دا قسمه خلق بنیاد د طاغوت دے ، دویم نمبر کې بیا هغه خلق چه دې دضعی قوانینو ته عملی جامه وراچوي لکه وکیلان ، ججان ځکه چه مونږه د طاغوت په تعریفاتو کې یو تعریف دا امام مجاهد نه نقل کړے وو چه « الطاغوت الشیطان في صورة الأنسان یتحاکمون الیه و هو صاحب امرهم » دا خلق هم د الله تعالیٰ دین ته رکاوټ دے .

او دریم قسم هغه خلق چه بیا دغه وضعی قوانین په خلقو باندې په زور او قوت سره

---

[1] [ سورة الزمر : ١٧ ] .

تنفيذ کوي او ددې نه دفاع هم کوي ، نو الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ يُقَٰتِلُونَ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِۖ وَٱلَّذِينَ كَفَرُواْ يُقَٰتِلُونَ فِي سَبِيلِ ٱلطَّٰغُوتِ فَقَٰتِلُوٓاْ أَوۡلِيَآءَ ٱلشَّيۡطَٰنِۖ إِنَّ كَيۡدَ ٱلشَّيۡطَٰنِ كَانَ ضَعِيفًا ٧٦ ﴾[1]

**څلورم پديکې هغه خلق دی** : چه هغه پدغه فيصلو باندې خوشحاله وی ، او دغه فيصلی په خوشحالئ سره د دوی عدالتونو ته ورې ، يو سړے مجبور شو نو پدې باندې د اکراه صورت راغلې هغه ځان ته مسئله ده هغه به روسته وايو ان شاء الله ، او يو سړے په خوشحالئ سره د غير الله قانون ته فيصلی ورې ، نو دا سړے هم په طاغوت کې ورداخل شو مونږ يو تعريف کړې وو کنه چه : « الطاغوت : من عدل عن الكتاب والسنة والتحاكم إلى ما سواهما إلى الباطل » نو دغه ټول خلق د الله قانون ته رکاوټ دي او څومره تعريفات او ارکان د طاغوت چه مونږه ذکر کړل هغه دلته نظر کې ساته .

نو دا څلور قسمه خلق دی چه دوی په طاغوت کې ورداخل دی .

❋❋❋❋❋❋

[1] [ سورة النساء : ٧٦ ] .

## 7 / موضوع: دين او سيکولرزم [اوله حصه]

ددې موضوع هم په اصل کې د اکثريت پسندئ سره تعلق دے او دا موجوده نظام هم پدې شکل کې موجود دے نو پدې موضوع کې به مونږ يو څو خبرے کوو :

١/ دين څۀ ته وائی ؟ او سيکولرزم څۀ ته وائی ؟ او د دې دواړو په مينځ کې فرق ؟

٢/ بيا سيکولرزم په دين باندې حمله څنګه اوکړه ؟ د هغه حملې تفصيلی شکل به واضحه شی .

٣/ د سيکولرزم خومره نقصان دے ؟

٤/ او د سيکولرزم مقابله به څنګه کولې شی ؟

**تفصيل: ١/ دين څه ته وائی**: دين ديته وائي : كل ما جاء به محمد صلى الله عليه وسلم ، هر هغه شريعت چه په هغې باندې پيغمبر عليه السلام راتلل کړی وی برابره خبره ده که هغه عبادات دی او که هغه معاملات دی ، او که هغه عقوبات دی نو دا ټول په دين کې ورشامل دی ، دا نۀ چه عبادات په دين کې داخل دی او معاملات پکې ندی داخل ، معاملات پکې داخل دی او عقوبات او سزاګانې پکې ندی داخل ، بلکه دا درے واړه د دين حصه ده ځکه چه پدې ټولو باندې پيغمبر عليه السلام راتلل کړی دی ، تاسو به چرته هم د احاديثو داسې يو جامع کتاب اونۀ وينئ چه هغه په جوامعو کتابونو کې شامل وی چه په هغه کتاب کې دې عبادات وی او عقوبات دې پکې نۀ وی ، يا پکې عبادات وی او معاملات پکې نۀ وی، ددې وجه نه دين دغه ټول دين دے الله سبحانه وتعالیٰ چه قرآن کريم نازل کړے دے نو په قرآن کريم کې هم دين دغه ټولو ته ويلې شوی دی ، لکه الله تعالیٰ قانون ته هم دين ويلی دی ، ځکه قانون خو هم دغه عقوبات او سزاګانې وی کنه نو دا ټول دين دی ، روستو به مونږ اوايو چه دغه جمهوريت دا نن يو مستقل دين دے دا نه چه دا خو يو سياسی انداز دے نۀ نۀ دغه سياست هم په دين کې داخل دے ، لکه د يوسف عليه السلام په باره کې الله

تعالیٰ فرمائی : ﴿ مَا كَانَ لِيَأۡخُذَ أَخَاهُ فِي دِينِ ٱلۡمَلِكِ إِلَّآ أَن يَشَآءَ ٱللَّهُ ﴾ [1] " نهٔ وو دا یوسف علیه السلام چه نیولې ئی وے دې وررور خپل لره په دین د بادشاه کې مکر هغه چه الله تعالیٰ ئی اوغواړی " ، **نو دلته فی دین الملک نه مراد قانون د بادشاه مراد دے ، لیکن الله ورته دین اووئیلو ځکه د دین او قانون ترمینځ فرق نشته ، دغه شان الله جل جلاله د کفارو په باره کې فرمائی :** ﴿ أَمۡ لَهُمۡ شُرَكَـٰٓؤُاْ شَرَعُواْ لَهُم مِّنَ ٱلدِّينِ مَا لَمۡ يَأۡذَنۢ بِهِ ٱللَّهُ ﴾ [2] " آیا شته دے دوئ دپاره شریکان چه هغوی د دوئ دپاره دین جوړ کړے دے هغه دین چه الله ورته اجازت ندے ورکړے " ، **نو د دوئ خو بل دین نهٔ وو بلکه دین ئی هغه وو چه ځان دپاره ئی رسم او رواج او طریقې جوړی کړی وی او دیته الله دین اووئیلو ، او په باب د رسومو باندې پیغمبر علیه السلام رد اوکړلو ، دارنګه که د اسلام د رسومو او عقوباتو سره څهٔ کار نوے نو بیا ئی ولې دوئ ته اووئیلو :** « **ليس منا من ضرب الخدود وشق الجيوب ودعا بدعوى الجاهلية** » ، **او په بل روایت کې راځي چه رسول الله ﷺ فرمائي : چه زما په امت کې څلور څیزونه داسې دی چه هغه د جاهلیت د دور نه پاتې دی ، نو جاهلیت ځانته یو دین دے د اسلام په مقابله کې ، اسلام ځان ته دین دے او جاهلیت ځان ته دین دے ، ددې وجې نه اسلام کې د امام کبریٰ یو ځان له مقام دے چه اسلام د هغې تعین اوکړو ، او قانون په دین کې ورداخل څیز دے ، ددې وجې نه رسول الله ﷺ په فیصلې ښځپله باندې کولے ځکه چه د قانون مقتضیٰ وو ، او بله خبره دا ده : چه مونږ د فقه د کتابونو نه معلوم کړو چه د فقهې کتابونه مونږ ته دین راښائی ، نو د فقهې په کتابونو کې چه څرنګه د عباداتو بابونه دی ، نو دغه ورپسې د عقوباتو بابونه راوړی او په هغې کې هم قانون ذکر شوے وی ، نو معلومیږي چه دین دغه ټولو ته شامل دے ، نو په قرآن کې چه الله فرمائی :** « **وان اقم وجهک للدين** »

---

1) [ سورة يوسف : ٧٦ ] .

2) [ سورة الشورى : ٢١ ] .

يا « **وان اقيموا الدين** » نو ددې مطلب دادے : چه عبادت هم قائم کړئ ، زکات او حج هم قائم کړئ ، معاملات دې هم صحیح کړه په دين باندې ، او قانون دے هم د دين اسلام مطابق کړه، نو دين دې ټولو ته ورشامل دے ، نو دا يو مختصر شان تعريف د دين شو ، او دين واضحه شو چه دين څۀ ته وائي .

**۲/ سيكولرزم څه شی دی**: سيكولرزم وائی چه د دين او د سياست تر مينځ تفرقه ده د دين د سياست سره کار نشته او سياست د دين سره کار نشته ، او دوی دا بنياد پدې باندې ايږدی : « ما كان لله كان لله وما كان للقيصر كان للقيصر » " يعنى چه څۀ د الله وی نو هغه به د الله وی ( عبادت د الله وی نو مونږ به دغه سر ښکته کول بل چاته نۀ کوو ) او څۀ چه د بادشاه وی نو هغه به د بادشاه دپاره وی ( يعنى د بادشاه د سياست سره کار دے نو پديکې به د الله کار نۀ وی ) " ، او عبادت د الله دے دې سره به بادشاه څه کار نوي ځکه نن تا ته به عبادت باندې څه هم نۀ وائی ، او که چرته اسلام قانون او نظام ياده وې نو بيا دې خير نشته دے ځکه بيا خو ته د بادشاه او حکومت ته لاس واچولو نو ديته ته سيكولر وائی .

اوس دا فارموله ئی د کوم وخت نه راويستله ددې تاريخ د راوسيتلو څۀ دے ؟ ، نو ددې تاريخ په حقله باندې مؤرخين حضرات ليکی : چه په **1300** ء کې په فرانس د عيسايانو په خپل مينځ کې د فرانسينو انقلاب راغلې وو ، او په عيسايانو کې مخکې بعضی داسې ادوار يعنی دورونه تير شوی دی چه د بادشاهت سره به ئی تعلق وو ، بعضی داسې بادشاهان تير شوی وو پکې چه مکمل د کنيسا ( عيسايانو عبادت گاه ) تابعدار وو ، نو د دغه کنيسا تابعداری به خلقو کوله ، نو چونکه پدې کنيسا کې خو بدل دين وو او ددې کنيسا چه کوم پاپان مشران وو ، نو هغوی داسې کار اوکړو چه په خلقو باندې به ئی د خپلې خوښې احکامات تطبيق کول ، د غريب سړی دپاره به يوشان احکامات وو او د مالداره دپاره به بل شان احکامات وو ، نو په خلقو باندې کنيسا د زندگئ دائره راتنګه کړه ، او د کنيسا د ظلمونو او جبرونو نه خلق تنګ راغلل ، نو د کنيسا او د عوامو په مابين کې جنګ اونختلو د پاپانو خلاف خلق راپاڅيدل او جنګ شروع شو نو حکومت يو طرف ته او عوام بل طرف ته او دا جنګ د ډيرې

مودې پورے قائم او دائم روان وو او په آخرى کې دوئ فيصله اوکړه، او يوه محاکمه او صلحه ئې اوکړه ، چه د کنيسا له دې خپل حق ورکړے شي ، او بادشاه له دې خپل حق ورکړے شي ، نو کنيسا ته خپل حق ميلاؤ شو نو پاپ ته ئې اووئيل : چه ستا د خپل عبادت سره کار دے ، او بادشاه ته ئې اووئيل : چه ستا د سياست سره کار دے ، تهٔ به د کنيسا په کارونو کې ګوتې نهٔ وهے ، او چه کله دغه صلح د دوئ په مينځ کې اوشوه نو ديته دوى سيکولرزم اووئيل چه دائې په سيکولرزم باندې مسمیٰ کړله ، نو د دين او دنيا ترمينځه فرق راوستل ديته سيکولرزم وائې ، او دې سيکولرزم ته په عربئ کې ويلې کيږي علمانيت ، لکه تاسو ته به په بعضې د عربئ په کتابونو کې د علمانيت لفظ راشي نو دغه علمانيت سيکولرزم ته وائې ، او هر چه پختانه دى نو هغه ددې اصطلاح نه بالکل ناآشنا ( ناخبر ) دى نو د دوې په ژبه کې ورته مستقله نامه پيدا نشوه نو دوى ورته لادينيت او بې دينې نوم ئې ورته کيخودلو .

**۳/ د سيکولرزم نقصانات** : نو د سيکولرزم نقصان يو دادے : چه کميونيزم يا بل يو نظام هغه به ډارک ( زر ) ستا په عقيده باندې حمله کوله چه ستا عقيده به ئې د مينځ نه لرے کوله او ستا په عقيده باندې به ئې رد کولو ، او هر چه دا سيکولرزم دے نو دا د هر سړى سره د هغه عقيده تسليموى چه عقيده دې منم خو دده په عقيده کې بعضې داسې طريقې را اوباسى چه حقيقى بنياد ئې دده سره مخالف وى ، نو ظاهراً پدې باندې خلق دهوکه کيږي چه يره پديکې خو زما د دين خيال هم ساتل شوے دے ، او دې سيکولرزم ته عيسايانو ضرورت ځکه محسوس کړو چه د هغوى دين خو محرف وو تحريف پکې شوے وو نو هغوى ته ئې فائده دا شوه چه د هغوى په دين کې ئې تنګسيا ختمه کړه ، او زمونږ امت مسلمه ته د سيکولرزم هيڅ ضرورت نشته ځکه چه زمونږ دين په حقيقت کې وحى الٰهى وه نو هغې مونږ ته داسې مشکلات نهٔ رامينځ ته کول چه مونږ د هغې نه تنګ راغلې وے او د زندګئ د ټولو طريقونه ئې مونږ بند کړے وے نو مونږ ته هغه مشکلات نهٔ وو ، او دې خلقو دا سوچ اوکړو چه که چرته دغه نظريه دوى ته ورداخله شي او د دوى نه اسلام اخوا شي نو بيا مونږ ته په دوى باندې غلبه آسانه ده ، نو د دغه نظرئې د خورولو دپاره په مسلمانانو کې دې خلقو

مستشرقين( يعنی طلب د شرق علومو ) پیدا کړل چه هغه به په حقیقت کې یا یهودی وو یا به نصرانی وو نو هغهٔ د دین علم حاصل کړو او هغه به مستشرق وو او پرده به ئی په ځان باندې راواچوله د اسلام ، او دا ډیر زیات خلق وو ، او دوی مسلمانانو ته راغلل او دوي دا کوشش شروع کړو چه پدې مسلمانانو کې سیکولرزم شروع کړی ، او پدیکې داسې خلق هم وو چه دوی د اسلام غټو غټو مدارسو ته ځان ورسولو ، لکه مدرسه د اظهر شوه ، نو پدیکې ډیر داسې وو چه په هغې کې یهودی علماء رادننه شوی وو ، لکه په تخصص فی الحدیث کې یو کتاب وئیلې کیږی چه په هغه کې یو دا واقعه لیکلی شوے ده چه هغه فرمائی: زما یو استاذ وو چه هغه به په ابو هریره ﷺ باندې جرح کوله ، حالانکه رسول الله ﷺ فرمائي : « **اصحابي كلهم عدول** » " زما صحابه کرام ټول عادلان دی " نو چه کله ما دغه جرح واؤریدلې ، نو ما د ابو هریره ﷺ په تعدیل باندې اقوال راجمع کړل او په عربو کې دا طریقه ده چه یو سړے وائی چه زهٔ په احادیثو باندې تحقیق کوم نو په هغې باندې منع نشته ، نو ما یو کاغذ په جامع اظهر کې ولګولو چه زهٔ به صبا په احادیثو باندې تحقیق کوم نو دغه تحقیق ته دې شائقین حضرات راجمع شی ، نو پدیکې زما استاذ هم راغلے وو ، او په احادیثو باندې ما تحقیق شروع کړو او خاص په ابو هریره ﷺ باندې مې تحقیق شروع کړو ، نو د ابو هریره ﷺ په باره کې چه څومره اشکالات دهٔ کړی وو نو په هغې مې رد اوکړو ، بیا وائی : استاذ راپاڅیدو او زهٔ ئی په تندی باندې ښکل کړم ، او بیا ئی راته اووئیل: چه دا لیکل ماته هم راکړه، نو ما ورته د هغه لیکلو نه یو فوټسټیټ ورکړو او بیا ئی راته اووئیل : چه دا ما چه کومه جرح کړیده نو دا ما د خپل استاذ نه اوریدلې ده د فلانی نه او چه کله د هغه استاذ په باره کې معلومات اوشول نو هغه یهودی وو ، نو دغه یهودو علماؤ دومره لوئ لوئ مقاماتو ته ځان رسولې وو ، او ددغه په باره کې یوه بله واقعه هم شته : چه کله خلافت عثمانیه ته دوی راغلل یهودیانو اووئیل : چه په مونږ باندې زمکه خرڅه کړئ ؟ نو د خلافت عثمانیه چه په دغه دوران کې کوم مشر وو نو هغه دغه یهودیان د دربار نه وشړل او رد بد ئې ورته اووئیل چه په تاسو باندې به مونږ زمکه خرڅو ؟ نو چه کله دوی ووتل نو دوی دا پخه اراده وکړه چه مونږ

به ستا دا خلافت هم ختموو او په دغه ځائی کې به مونږ دا آبادی هم جوړوو ، نو دې یهودیانو په خپل مینځ کې دغه خلافت عثمانی مقابله ته څه افراد خاص کړل او تیار ئې کړل او هغه د فری میسن خلق وو نو په دغه کسانو کې ئې مصطفی کمال اتاترک هم وو د دهٔ په لاس ئې خلافت عثمانی ختم کړو ، دې بل خوا دوی راغلل او په اظهر مدرسه کې کسان ورداخل کړل او د افتا درجے ته ئی ورسول نو هغوی مفتیان شول او په جامعه اظهر کې د افتا په منصب باندې کیناستل او دا فتوی ئې ولیکله د ظاهری مسلمانانو په لاس چه مونږ ته په فلسطین کې په یهودو باندې زمکه خرڅول څنګه دی ؟ نو هغه کسانو ورته فتویٰ د جواز ورکړه او دستخط ئی ورته اوکړو چه آو بالکل ئی پرې خرڅولې شئ ، یو کس نیم انکار اوکړو خو د هغې خبرے ته چا فکر ورنهٔ کړو ، نو هغه فتوی ئی عوامو ته ورکړه چه اوګوره چه د اظهر مفتیانو دا فتوا ورکړیده چه په یهودو باندې زمکې خرڅول دا جائز دی ، نو په فلسطین کې دوی ځان له ځائی پیدا کړو پدې طریقه باندې او بیا هلته کې دوی رائج شول ، نو دا هغه مستشرقین وو ، او نن صبا هم ډیر زیات مستشرقین موجود دی په سعودی او حرمینو کې هم شته ، او داسې په نورو ځایونو کې هم شته ، او دغه سیکولرزم نن مونږ ته هم رانقل شو ځکه بعضی وائی هلکه د مولا په سیاست کې څهٔ کار دے ، صحیح ده د مولا په دغه مغربی سیاست کې کار نشته خو دا مولا به دغه سیاست مغربی رنګوی او د هغې په ځائی به سیاست نبوی قائموی ، خو نن دغه سوچ زمونږ د ذهن نه وتلی دے . نو دا د سیکولرزم په باره کې مختصر شان خبره اوکړے شوه .

❊❊❊❊

## دين او سيكولرزم [ دويمه حصه ]

مخکې ددې موضوع یوه حصه ذکر شوه چه دین او سیکولرزم کې څهٔ فرق دے ، او دا په مونږ کې څنګه راغلې نو د هغې وجه ذکر کړې شوه ، چه مستشرقین پیداء شو او دوی په مختلفو طریقو سره کوششونه شروع کړل او هغوی داسې یوه نظریه او فکر سوچ زمونږه معاشرې ته را دننه کړو چه زمونږه او د اسلام تر مینځه ئې فرق پیدا کړو چه بس امام او مولا دے د جماعت پورے منحصر پاتې شی او د جماعت د امورو سره به ئې کار وي ، او بادشاه او وزیر یا صدر به د حکومت او پارلمان سره کار وي ، نو دغه اصطلاح مسمیٰ شوه په سیکولرزم سره او په عربۍ کې ورته علمانیت وائي او مونږه تاسو ورته لادینیت او بې دینی وایو ، نو اوس بعضی خلق وائي چه مونږه سیکولر نظام نه منو نو مونږ ورته وایو چه سیکولر نظام خو دې په خپله په ځان مسلط کړے ته څنګه وائی چه زه سیکولر نظام نه منم او جمهوریت منې نو جمهوریت خو د سیکولر نظام اهم شاخ او رکن دے .

ځکه چرته هم باطل د باطل په شکل کې نهٔ راځی چه تاته ووائی چه زهٔ باطل یم ، دغه شان که صبا دجال راشی نو هغه به تاته دا نهٔ وائی چه زهٔ دجال یم ما اومنه ، دجال چه راځی نو د هغې هغه مراحل په احادیثو کې راغلی دی چه اول به د مصلحت پسند او امن پسند بادشاه په شکل کې به راشی ، او بیا به د نبوت دعوه کوی او بیا د خدائی دعوه کوی ، نو چرته باطل دا نعره نهٔ لګوی چه زهٔ باطل یم زه باطل یم ، نو دغه سیکولرزم ئی نن په مونږ کې رادننه کړو او دا بعضی مولیان خو ورته تقارب الادیان کانفرنسونه هم کوی ، چه دا ټول دینونه یو بل ته نزدې دي نفرتونه مه کوئ محبت کوئ . افسوس

دغه د تقارب الأدیان کانفرسونو والا ټول ګمراه دي او د وژلو لائق دي ، ځکه دوی پدې سیکولر نظام کې حصه اغستے ده شیعه ځان سره ودروی عیسائی ځان سره ودروی ، یهودی ځان سره ودروی دغه د سیکولر سوچ دے چه دین او اسلام نه داسې شکل جوړ کړی ، زه ټیک شوه چه تاسو ډیر کوشش وکړو چه دین او اسلام نه سیاست نهٔ جدا کیږی او که چا

جدا کړو نو نور خلق داسی راپاخيدل چه هغوی په هغو باندې رد وکړو .

نو اوس يوه بله طريقه کوو اسلام د هغه عقوباتو والا سيستم چه کوم دے چه په هغې کې مجرم لره سزا ده د هغې هغه امور سلطانية چه ورته وئيلے کيږی په هغې کې به ترميم کوو هغه امور سطانية به ئې بدل کړو ، اوس به داسې يو اسلام راو ړاندے کوو چه نورو دينونو سره به د هغې اختلافات نوی دغه شان د بل نظام سره به د هغې اختلافات نوی عيسايت سره به ئې اختلافات نوی ، دغه شان د بل نظام سره به د هغې اختلافات نوی هغه به عالمی او بين الأقوامی قانون چه کوم دے د هغې قانون مطابق به مونږه اسلام جوړ کړو ، نو د تقارب الأديان کانفرسونو مقصد دغه دے ، او دغه تقارب الأديان کې ډير غټ غټ خلق او قاضيان دي دا ددې مشران هم دي او دغه کانفرنس دے چه بعضو مولیانو پديکې حصه اغستے ده او دغه د تقارب الأديان کانفرنسونه دي چه په دې کې ايران شيعه ګان هم وي او هغې سره اتحاد کوی او دغه د تقارب الأديان کانفرسونه په هر ځائی کې کيږي تردې چه يو په سعودي کې هم شوے وو د مکې سره په علاقه کې وو او کله چه دغه کانفرس وشو نو په آخره کې دغه د سعودي شيخ ودريدو او وې وئيل دا يو مبارک مجلس او محفل دے ګوره ته سوچ وکړه دې تقارب الأديان کانفرس ته دا مبارک مجلس وائی او ورپسې وائی چه الله تعالیٰ ددې اتفاق او وحدت دا آواز د بيت الله د جِوار نه پورته کړو ، نعوذ بالله من ذلک هغه دومره په ديکې مبالغه کوی دغه د تقارب الأديان وجه ده چه سعودی کعبې امام بعضی نام نهاد اسلامی ملکونو ته ورځی او د هغه بادشاه سره کينی او د هغه سيکولر نظام ته دعا کوی تاسو به اوريدلی وی وائی : « اللّٰهُمَّ أنصر إخواننا في فلان لا سيما رئيس فلان وفلان . .. الخ » دا دعاء به تاسو اوريدلی وی دا د هغه الفاظ دي چه هغوی ورته دعاء کړے وه .

نو د هغه د تقارب الأديان په نوم باندې دغه سيکولر نظام نظريه ده اوس د دغې تقارب الأديان او ددې متعلق چه کومه خبره ده دا نوے اسلام او نوے دين د جوړولو خبره ده په اصل کې د دغې متعلق يو کتاب ليکلے شويدے چه مونږ به د هغې نه څه حصه ووايو .

اوس پدې موضوع کې مونږ د انګلش يو کتاب دے چه زنانه ليکلې دے د هغې ترجمه

ذکر کوو ، او دا ښځه يو امريکنۍ ښځه ده چه د امريکې يوه موسسه د هغې مشره ده او د دغه موسسې او انجيوز نوم دے " رينډ کارفوريشن " چه دا په دغه انجيوز کې مشره يا کار کنه ده ، او ددې ښځې نوم دے " چيريل بناډ « **Cheryl Benard** » " او دا د افغانستان زلمی خليلزات ښځه ده ، او دا يهودنړه ده د فری ميسن غټه کارکنه ده ، او دې زلمی خليل زاد سره د امريکې نشنليټی هم ورسره ده ، او ددې ښځې يو کتاب دے چه د هغې نوم " سويل ډيمکريټيک اسلام پارټنر ريسورسيز اينډ سټرټيجيز « **Civil Demacratic Islam Partner Resources and strategies**»" دے ، يعنی يو متمدن اسلام يو ډيمکريټيډ اسلام د هغې ملګرے دهغې منابع يعنی د هغه وسائل او زرائع او د هغې سټراټيجی يعنی لائحه عمل هغه ځنګه طريقې سره برابريږی " ، نو ددې ښځې دا کتاب په ۸۳ صفحو باندې مشتمل دے ، او ددې رسالې تائيد کړے دے تقريباً د نهو ۹ ملکونو مستشرقينو ، او زلمی خليل زاد خو پکې پيش پيش دے دې خو خامخا تائيد کوی، او دا ښځې يهود دا هميشه فری ميسن دپاره استعمالوی چه دا يو يهودی تنظيم دے ، او دا انډرګراونډ ( خفيه ) تنظيم دے ، يعنی داسې تنظيم دے چه په خارج کې ددې په ښکاره باندې څه شکل ندې معلوم يعنی تاسو به دا چرته نۀ وی ليدلے چه دا د فری ميسن دفتر دے ، او ددې تفصيلات تاسو بيا چه د ابو لبابه شاه منصور کتاب عالمی يهودی تنظيمی ليکلې دے په هغې کې تاسو کتلې شئ ، او هغه دا تفصيلات د کوم ځائې نه معلوم کړل ؟ ځکه چه دې يهودو دا خبره بالکل پټه ساتلې وه ، نو چونکه د روس يوه يهودنړه وه چه هغې پدې تنظيم کې کار کولو او د هغې سره يوه بله جينئ وه چه د هغې خدمت به ئې کولو او د دغه يهودنړې سره د ددې تنظيم ضوابط او اصولو پاڼړې پرتې وے چه هغه ترينه دې خادمې جينئ راپټې کړے وے او دا ئې بيا چاته ورکړے چه هغه بيا د روس حکومت ته دغه پاڼړې ورسولې ، چه کله روس حکومت د هغې معلومات اوکړل چه دا خو عالمی سازش شروع دے چه ټوله دنيا دوی تباه کول غواړی ، ځکه نيو ولډ آډر وائی چه په دنيا کې دې يو نظام وی او په دنيا کې دې مختلف نظامونه ختم کړے شی او دغه نظام جوړولو دپاره د سامان او د پيسو ضرورت دے نو دوی د دنيا په ملټينشنل کمپنو باندې

قبضه اوکړه چه تیل وغیره څیزونه امریکې د خپل قبضې لاندې راوستل شروع کړل ، نو د هغې دپاره یهودو ته د یو سټیټ ضرورت وو چه هغوی یو سټیټ قائم کړو ، او بیا د هغې دپاره نور تفصیلات هم شته چه تاسو به ئې اوګورئ چه هغوی وائي چه چونکه دا خو خدائی نظام ندې یو شیطانی نظام دے نو ددې د نافذ کولو دپاره ټول افراد په دائره د حد کې راوستل پکار دی چه هغه ټول بیا ته محاکمه کولې شي ، نو د هغې دپاره پکار داده چه په دنیا باندې داسې زهریله ګیسونه استعمال شی چه د دنیا خلق ختم شی صرف ایک کروړ « **1000000** » آبادی باقی پاتې شی او دا نور خلق ختم شی ، نو د هغې دپاره یو ایټمی پروګرامونه شروع شول ، نو بیا د یهودو دا دعوه ده چه مونږ دنیا ۵۲ کرته ورانولې شو ، او بیا دوی شدت پسند او شر پسند مونږ ته وائی ، لګ سوچ کول پکار دی ، او ددې دپاره دوی په لیباټرو کې د ایډز جراسیم تیار کړل ، دا د بل هیڅ څیز نه ندی جوړ شوی دا دوی د ځان نه پروپګنډې جوړې کړې دی چه ښځې د بیزو سره یوځائی والې اوکړو بیا دهغې نه ایډز جوړیږی ، دا ټول دروغ دی ، دا په حقیقت کې پدې باندې پوره تحقیقونه دی چه دا په انټرنیټ کې موجود دے چه دا " برموده تکون اور دجال " پدې کتاب کې لږ تفصیل شته دے ، چه دا په امریکه کې باقاعده د پوره سازش سره دغه جراسیم په لیباټرو کې تیار کړل او بیا ئې په مختلفو ملکونو باندې ورپریخودل، او د هغې نه خلقو ته د ایډز بیمارئ ولګیدلې ، او دغه مرض بیا الله تعالیٰ د دوی بدنونو ته واپس بوتلو او بیا د دوی په ملکونو کې هم دغه مرض شروع شو ، نو دا د دغه منصوبې لاندې دا کار روان دے ، تاسو به حیران شئ چه دا څه کیږی او څه روان دي دغه شان دوی خلقو ته ښځې ورکړے په ښځو باندې ئې راړوی که تاسو اوریدلی وي امیر حبیب الله په نوم باندې یو سړے وو چه د امیر لقب ئې ورته ورکړے وو خو غټ فری مسن وو ، دغه شان مصطفی کمال اتاترک غټ فری مسن وو ، جمال الدین افغانی ، زلمی خلیل زاد ، دغه شان زمونږ او ستاسو د ملکونو اکثر مشران او لیډران دا فری مسن وو او اوس هم پکې اکثر موجود دي .

دغه شان عسکری ادارو کې غټ غټ فری مسن والا وو ، نو دا د فری مسن یو ترتیب

دے خو ددې پوره وضاحت به بيا كوو ان شاء الله تعالیٰ .

اوس دغه ښځه هم فری مسن ده نو دې ښځې دغه رساله ليکلے ده دا کومه چه مونږه ذکر کړه ، نو دا ښځه چه تاته واضحه کړے شوه نو دې يوه رساله ليکلې ده چه د خلقو ته دا واضحه کوی او د اسلام يو تعريف کوی چه دا وائی يو نوے اسلام پكار دے چه دغه د تقارب الاديان په کانفرسونو کې چه کوم اسلام دے نو هغه به تاته اوس بڅپله معلوم شی ، دا وائی چه يو داسې اسلام پكار دے چه د نورو نظامونو سره دې په يوه لاره باندې روان وی د اسلام لاره دې جدا نهٔ وی او ډيمکريټک او مشرقی اسلام دې وی او په عالمی قوانينو او احکامو باندې پوره طريقې سره کار بند وی ( داسې نه چه د اسلام دې ځان سره خپل اخلاق او جدا طريقه وی ) نو دا ددې ښځې هغه الفاظ وو .

تشريح : دې يوه دا خبره اوکړه چه « داسې اسلام پكار دے چه د نورو نظامونو سره په يوه لاره باندې روان وی » پدې خبره کې مونږ ته د دوی يو څو مطالبې معلومې شوے :

**١/ مطالبه** : اسلام دې د امريکې او د عالمی قوانينو په خوښه باندې دې وی ځانته جدا اسلام دې نهٔ وی ، يوه ئی دا مطالبه ده .

**٢/ مطالبه** : چه اسلام دې ځانته جدا نظام نهٔ وی بلکه د اسلام نظام دې د نورو نظامونو سره يوشان وی .

**٣/ دې ښځې بله خبره دا اوکړه چه** : « اسلام دې يو ډيمکريټک اسلام وی » نو پديکې مقصد د دوی دادے : چه د اسلام بنياد دې وحی نه وی بلکه د اسلام بنياد دې عوام اوګرځيږی چه د عوامو د طرف نه کوم اسلام خوښ شی نو هغه اسلام دې راوستلې شی .

**٤/ دې اووئيل چه** : « اسلام دې ترقی يافته اسلام وی » نو د هغې مطلب دادے : چه اسلام دې خپل زوړ شکل پريږدی او اسلام دې يو نوے ترقی يافته شکل اختيار کړی ، يعنی منهج د صحابه ؤ دې پريږدی او منهج د سلف صالحينو دې پريږدی نو يو نوے شکل دې اختيار کړی.

**٥/ خبره دوی دا کړی وه** چه : « اسلام دې د بين الاقوامی قوانينو مطابق وی » او د بين

الاقوامی قوانینو نه مطلب د دوی اسلامی قوانین او احکامات نهٔ وو مراد چه کوم محکې تير شوی وو ، بلکه بين الاقوامی قوانینو نه د دوی مراد مغربي قوانين دی ، چه د مغربي قوانینو سره دې اسلام په يو شان طريقې سره روان شی ، نو د دوی پدې خبرو کې دا پنځه نکتې پرتې وے چه تاته واضحه کړے شوے ، چه سيکولر دا څيز غواړی .

او راشه تقارب الاديان کانفرس ته : ددې نه دويمه دا خبره معلوميږی چه اسلام دې ځانته تشخص او ځانته نظام دې نهٔ وی بلکه ددې نظام دې د نورو نظامونو سره يو شانته وی ، اوس تاسو د تقارب الاديان په کانفرسونو کې اوګوره : چه دا خلق وائی چه الله جل جلاله دا دری دينونه راليږلی دی ، يهوديت ، نصراينت ، او اسلام ، نو د يهوديت او نصرانيت تر مينځ دې اختلاف ختم شی ، او د هغې د ختميدلو دپاره الله په قرآن کريم کې فرمائی : ﴿ وَلَن تَرْضَىٰ عَنكَ ٱلْيَهُودُ وَلَا ٱلنَّصَٰرَىٰ حَتَّىٰ تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ ﴾ [1] " يعنی دا يهود او نصاری به تانه خوشحاله نشی تردې چه تهٔ د دوی د ملت تابعداری اوکړے " نو چونکه ددوي خو په خپل دين ندې پاتی نو دوی د ځان دپاره يو بل دين جوړ کړيدے او هغه دغه ډيمکريټک اسلام چه ورته دوی وائی نو دا ځان له دين دے نو ته که د دوی تابع شوے نو دوی به ستانه خوشحاله شی ، اوس دا خلق دا غواړی چه اختلافات دې ختم شی ، او د اختلافاتو د ختميدو منبع داده چه : زمونږ قانون د دوی د قانون نه جدا دے ، نو زمونږ قانون او د دوی قانون به متحد کول پکار وی نو دوی وائی : چه د اختلافاتو د ختميدلو طريقه داده ، چه د عربو دپاره د کعبې امام راپاڅيږی، او دارنګه د نورو ملکونو دپاره د هغوی بعضی موليان راپاڅيږي تاسو به اوريدلي وي کنه چه دغه د سعودي شيخ اووئيل چه د هر ملک قانون د هغه ملک د افرادو دپاره ښه او بهتر دے چه په هغې باندې عمل وشی ، نو دا اصل کې د اسلام هغه زوړ شکل ختموي دوي يو نوې ډيمکريټک اسلام راولی دوي وائي کنه چه مونږه د طالبانو طرز حکومت نه غواړو نو طالبانو کوم حکومت راوستلے وو خو هغه اصلی زوړ اسلام ئې راوستلے وو کنه ، نو خلق د تقارب

[1] [ سورة البقرة : ١٢٠ ] .

الاديان بحثونه ورته کوی ، کوم چه تا ته واضحه کړے شو .

بیا ورپسې مخکې د دې ښځې د کتاب عبارت دادے : چه دا ښځه وائی « چه دا به د حکمت خبره وی چه په مسلمانانو کې دې د هغوی عناصرو ملاتړ اوشی چه کوم خلق د بین الاقوامی صلح او بین الاقوامی اجتماعیت سره په یوه لاره باندې روانیږی او ډیمکریسی جمهوریت خپل تمدن منی او د اسلام ځان ته تشخصی او اسلامي نظام نۀ غواړي نو بس دغه خلقو تائید دې اوشی » نو دا ددې ښځې دویم عبارت دے .

**ددې په پدې خبروکې نکتې** : ۱/ ددې خبرو نه دا معلومه شوه چه دا د اسلام دوشمنی کوی ځکه دا وائی : چه د ټولو مسلمانانو ملاتړ دې ونشی ، بلکه د خاصو عناصرو ملاتړ دې وشی .

۲/ خبره دا شوه : چه د هغه عناصرو ملاتړ دې وشی چه د کفارو سره هیڅ قسمه مشکل نه لری ، بلکه هغوی په نړیواله صلح کې او په بین الاقوامی قانون کې زندګی تیروی ، او په جهاد باندې هیڅ قسمه یقین نۀ لری ، اوس دا قسمه خلق به مونږ څنګه پیژنو ؟ نو وائی دا خو آسانه ده : چه ځوک هم په لاره د جهاد کې راوځی نو دا خلق به ئی مخالفت کوی او دوی به وائی چه د اسلام د نافذ کولو دپاره دا طریقه نده ، ښه چه دا طریقه نده نو بیا صحابه کرامو ولې دا طریقه استعمالوله؟ پیغمبرانو ولې دا طریقه اختیاروله ؟ نو دا خلق د هغه اسلام په سوچ کې پراته دی چه کوم اسلام اقوام متحده غواړی ، چه هغه وائی عالمی قوانین دې جوړ کړے شی او هغې ته دې اسلام اووئیلې شی ، او د اسلام دې اختلافی قوانین ( یعنی امور سلطانیه ) ختم کړے شی ، نو دا خلق دا قسمه خبرے کوی ، دا خلق داسی نۀ وائی چه جهاد مونږ نۀ منو ، وائی به جهاد نه منل خو کفر دے ، بلکه دوی به داسی الفاظ استعمالوی : هم مسلح جدوجهد پر یقین نہیں رکھتے ، نو ته په دغه پوهه شه چه دا سوال د ډیمکریټک کتاب په ترتیب باندې روان دے ، دا انسان د قرآن په ترتیب باندې ندے روان .

اوس دا مسلح جدوجهد ته په قرآن کې قتال ویلې شوی دی دا هم هغه جهاد دے ، او یقین ته په قرآن کې ایمان ویلې شوی دی ، او دا جمله چه زۀ په عربئ کې جوړوم نو دې نه

خو بل څۀ جوړيږی ، يعنی لانؤمن بالقتال ، خو پدې باندې تۀ ځان پوهه کړه چه دا قسمه خلق به عبارات اوګدوی بدلوی لکه رسول الله ﷺ فرمائی : « **لتستحلن طآئفة من امتی الخمر يسمونها باسم** » " زما د امت نه به يوه طائفه شراب حلالوی خو نوم به ورته بل ورکوی" او دغه جامع کلمات د پيغمبر عليه السلام په باره کې راځي چه رسول الله ﷺ فرمائی : « **اوتيت جوامع الكلم** » " ماته جوامع الكلم راکړے شوی دی " ، نو دا صرف په شرابو کې دا خبره منحصره نده بلکه هر هغه څوک چه په خپل اختراعی الفاظو کې حلال حراموی او حرام حلالوی دې خلقو ورته نومونه بدل کړل ، او دا الفاظ ئې ورته اوګدۀ کړل دا دوی سره خاص الفاظ دی چه هغه دوی استعمالوی ، لکه دوی به د امن لفظ ډير استعمالوی ، ځکه امن اصل کې د اقوام متحده قانون ته وئيلې کيږی ، لکه اقوام متحده چه کله خپل فوج د اسلام او مسلمانانو خلاف استعمالوی نو هغې ته ئې نوم ورکړے دے امن فورس ، دارنګه الفاظ پدې ملکونو کې د « پر امن رهے » الفاظ استعماليږی په زياتو ملکونو کې نو ددې مطلب دادے : چه تاسو په بين الاقوامی قانون باندې چليږئ ، ځکه بين الاقوامی قانون کې اختلافات نشته، او مونږ خو وايو چه مونږ ابراهيمي ملت منو او په هغې کې مونږ ته دا ويلې شوی دی : ﴿ إِذْ قَالُواْ لِقَوْمِهِمْ إِنَّا بُرَءَٰٓؤُاْ مِنكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ كَفَرْنَا بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ ٱلْعَدَٰوَةُ وَٱلْبَغْضَآءُ أَبَدًا حَتَّىٰ تُؤْمِنُواْ بِٱللَّهِ وَحْدَهُۥٓ ﴾[1] نو د ابراهيم عليه السلام په ملت کې دا ندی وئيلې چه د مسلمان او د کافر دې دوستی وی او د يو قانون لاندې به چليږي ، بلکه هغه کې دا وو چه زه ستاسو د قانون ستاسو د نظام ستاسو د بوتانو نه او د هغوی دعبادت نه زۀ بری يم ستاسو ځانته لاره او زما ځانته لاره ده ، ځکه مونږ ستاسو پدې بوتانو باندې کفر کوو ، او زمونږ ستاسو په مينځ کې به دشمنی وی او بغض به وی تردې چه تاسو ايمان په الله تعالیٰ باندې راوړئ يواځې ، نو په ملت ابراهيمی کې زمونږ قانون جدا شو .

---

[1] [ سورة الممتحنة : ٤ ] .

دغه شان په لا إلٰه الا الله کې زمونږ قانون جدا شو ، ځکه ماته ئې اول د طاغوت نه انکار راوستلو اول ئې د غير الله د قانون نه انکار راوستلو د بين الاقوامی قانون نه ئې انکار راوستلو صرف د يو الله قانون منلو ته ئې زۀ تيار کړم ، دغه شان بل ځائې کې الله فرمائی : ﴿ فَمَن يَكۡفُرۡ بِٱلطَّٰغُوتِ وَيُؤۡمِنۢ بِٱللَّهِ فَقَدِ ٱسۡتَمۡسَكَ بِٱلۡعُرۡوَةِ ٱلۡوُثۡقَىٰ ﴾ [1] نو هلته ئې ماته د قانون لاره جدا کړه ، او دوی وائی چه دې قانون ته تسليم شه نو پهر امن رهے .

٣/ خبره ئې دا وه : « چه د هغه مسلمانانو ملاتړ دې وشی چه کوم خلق په ډيموکراسی جمهوريت باندې زندګی تيروی او غربی تمدن دا د ژوند په حيثيت باندې منی ، دا خبره دغه بنځې کړے وه » ، اوس دې خبرے ته اوګوره : چه دلته پدې خبرے باندې عمل شته او که نيشته ، تاسو اوګورئ چه کوم خلق ډيموکريټ زندګی تيروی جمهوری زندګی تيروی نو د هغې په باره کې تاسو اوګورئ : په ملک کې دوه قسمه خلق زندګی تيروی او دواړه د اسلام نعره پورته کوی ، او دا هم وائی چه اسلام دې نافذ شی او د شريعت بيل پيش کوی ، پدې دواړو کې يو کس به په غر کې هم زندګی نشی تيرولې ، او دا بل به په د ملک په مينځ کې زندګی تيروی ، درانګه دا يو کس خپل موقف دويم کس ته هم نشی بيانولے ، او دا بل دې په جلسې او جلوسونو کې بيانوی ، دا يو کس په خپل ملک کې هم نعره نشی اوچتولې ، او دا بل کس په لندن کې هم د اسلام چغې وهی ، دغه په دې يو کس باندې د رزق پابندئ لګيدلې دی ، او دا بل به د لندن په هوټلو کې خوراکونه کوی ، نو اوس ددې فرق دپاره مونږ ته يوه فلسفه پکار ده چه دا ولې ؟ اوس ددې ولې په باره کې به تۀ د اقوام متحده نه تپوس نۀ کوے ، بلکه ته به د قرآن کريم نه تپوس اوکړے ، ځکه زمونږ دپاره عالمی کتاب هغه قرآن کريم دے ، نو تۀ به د قرآن نه دا تپوس اوکړے چه دا خلق ددې نه ولې دومره خوشحاله دی او سره د اسلامی نعرے نه دۀ ته غړ نۀ کوی نو دا ولې ؟ نو قرآن به تاته بيان شروع کړی چه : ﴿ وَلَن

---

[1] [ سورة البقرة : ٢٥٦ ] .

تَرْضَىٰ عَنكَ ٱلْيَهُودُ وَلَا ٱلنَّصَـٰرَىٰ حَتَّىٰ تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ ﴾ [1] "هيچرے نه خوشحاليږی ستا نه يهود او نصاری تردے چه ته تابعداری اوکړے د دوی د ملت" ، نو دې ځائی کې ماته دا خبره معلومه شوه چه د دوی ملت خو نن صبا جمهوری ملت دے ، ځکه عسيايت او يهوديت خو ختم شويدی نو جمهوريت نن صبا يو مستقل دين دے چه دوی په هغې باندې عمل دی نو ددې وجه نه دۀ ته په خپل ملک او بيا په پارلمان کې دارنگه په لندن او امريکه او نورو کفری ممالکو کې غړ نۀ کيږی، او دې بل کس ته په خپل کور کلي کې حالات خراب دی .

او بيا دې ښځې د مسلمانانو او د کفارو په مينځ کې د جداوالی عوامل دا بيان کړيدی : چه دوی دې مغربی پرهنگ ، او مغربی رسم او رواج دې اختيار کړی نو دوي په منيځ کې اختلافات ختميږی ، او که دا د قرآن او د وحي په بنياد باندې ولاړ وی نو بيا د دوی په مينځ کې اختلافات نۀ ختميږي ، بيا پخپله هم دغه ښځه په خپل کتاب ٨ نمبر صفحه کې ليکي : وائي چه : د مسلمانانو د عالمی قوانينو ( دا د مغرب قوانينو ته وائی ) نه د لرې کيدلو د وجه نه د مسلمانانو او د مغرب ترمينځه اختلافات رامنځ ته شوی دی ، ( يعنی دوی دې په مغربی قوانينو باندې روان شی ) او زمونږ خبره د دوي نه بالکل جدا ده ، نو کوم بحث چې ذکر کړې شو ددې خلاصه دا شوه : چه دوی وائی چه ډيموکريټيک اسلام دې جوړ کړے شی يعنی يو نوے اسلام دې جوړ شی بس ، او زمونږه ددغه نوی اسلام چه کوم جزيات د دوی په ذهن کې وو هغه څۀ نا څۀ مونږ اوليکل .

اوس ددې د خوړولو به څۀ طريقه کيږی ، نو مصنف د هغې ترجمه ليکلې ده ، دې وائی چه د هغې د خوړولو دپاره يوه خاص طريقه ده : چه په اسلامی ملکونو کې يو د ډيموکراسی ماډرنيزم او د معاصر چه کوم بين الاقوامی نظامونه دی د هغې سره د يو ځائی کيدو په خاطر به دې سره يو مثبت بدلون رامنځ ته شی ، يعنی مثبت بدلون چه راځی او د مسلمانانو اختلافات چه ختميږی نو هغه به په ډيموکريسی باندې ختميږی ، هغه اختلافات به په

---

[1] [ سورة البقرة : ١٢٠ ] .

ماډرنيزم باندې ختميږى ، يعنى ماډرن اسلام مونږ ته پكار دے ، نو دا خبره ددې ښځې ده چه دې په خپل كتاب كې كړے ده .

اوس دغه خبره چه په ډيموكريسى سره به اختلافات ختميږى ، نو لانجه پدې ځائى كې دا شوه چه دوى د چا سره هم ډيموكريسى راوړاندې كړيده نو هغه سړے دوئ په خپله ولكه ( قبضه ) كې اغستې دے لكه په فلسطين كې حمّاس واخله چه په الجزائر والا مجاهدين په اول حالات كې اوس نهٔ چه هغوى اوس مخالف شو ځكه كله چه په اول حالات كې دوى سره ملگرى شوى وو نو خراب شو نو اوس مخالف شو ، په چيچنيا كې د گيلم خان په وخت كې هم په اول وخت كې دغه شان حالات اوشو چه د جمهوريت تنفيذ اوشو او بيا د هغې د وجه نه نقصان پيدا شو .

اوس دوى وائى چه زمونږ مسئله د القاعدې سره او د طالبانو سره مسئله پديكې ده چه دوى دې ډيموكريسى ته راشى ، خو الله تعالىٰ د طالب او د القاعدے په ذهن كې دا خبره راپورته كړه چه زهٔ به د ډيموكريسى او د جمهوريت خلاف جنگيږم ، او ددې وجې نه دوى د ټولې دنيا جهادى تنظيمونو نه نظر ښكته كړے دے او يو په القاعده او طالبانو باندې ئى نظر اچولې دے نو دا دغه وجه ده .

اوس دا وائى : چه امريكه او مغرب ته پكار دى چه په پوره قوت او سختئ سره او په ډير دقيت سره دې په مسلمانانو كې تفتيش اوكړى او په مسلمانانو كې دې هغه خلق او هغه عناصر اولټوى او پيدا دې كړى چه هغوئ د دې اسلام تقويه كول غواړى ، نو دا خبره هم دې ښځې كړے ده ، او بيا وائى : چه په امريكه او دهغې په ملگرو دا خبره لازمه ده چه : د دغه عناصرو دپاره دې خپل اهداف اولټوى ، او هغوى ته بيا دغه اهداف ښكاره كړى چه تاسو به دا كار كوئ ، لكه مصطفىٰ اتاترک ته ئى دا خبره ټارگيټ كړه چه تهٔ به خلافت عثمانى ختموے ، او داسې زمونږه او ستاسو په ملكونو كې بعضى خلق مقرر كړل او دا ټارگيټ ئې ورته كيخودلو چه ته به په دې ملک كې انگريزى رسم او رواج انگريزى آئين او انگريزى قانون رائج كړے ، او داسې نور كسان ئى برابر كړل او هغوى ته ئى خپل خپل اهداف اوښودل ، نو

كله چه دوی دغه اهداف سر ته اورسوی نو بیا به ورسره دا خبره هم لازم وی چه دا به په دې خبرو کې سوچ کوی چه دغه عناصر چه کوم کار کوی نو دې سره به کوم نتائج زمونږ لاس ته راځی ، نو پدې باندې به هم سوچ کوی چه نتائج به ئی مثبت راځی او که منفی راځی ، لکه بعضې کار به داسې وی چه د هغې به ډیره فائده وی خو ظاهراً هغه وقتی طور سره به دومره نقصان راځی نو هغه کار به بیا نهٔ کوی .

بیا وائی : چه د دغه کار د کولو دپاره بیا څهٔ پروګرامونه په نظر کې ساتی چه بیابه دا کارونه کوی او عمل به پرے کوی ، لکه هغه پروګرامونه دادی : ١/ دغه عناصر چه کوم کتابونه لیکی نو دا ورلره په آرزان قیمت باندې چاپ کول پکار دی ، او په آسانه سطح باندې ورلره خوررول پکار دی ، یعنی د دوی د نشریاتو او د دوی د چاپ ذمه داری پکار ده ، چه دا کوم غلط مضامین اولیکی نو بیا دوی ته دا تکلیف نهٔ وی چه دا به زه اوس څنګه نشر کوم او خوروم به ئی .

٢/ دا وائی : چه هغه خلق چه هغه قابل خو دی خو هغوی خپله ځانی لیکل نشی کولے نو په هغوی کې دا شوق چه هغوی په ځان کې د لیکلو سوچ پیدا کړی چه لیکل شروع کړی ، او په لیکلو کې آزادی پکار ده ، پابندی به ختم کړے ، او چه کله پابندی ختمه شی نو هر سړے به پخپله خوښه باندې لیکل شروع کړی .

٣/ دا وائی : چه ددې خلقو چه کوم نظریات دی او افکار دی نو دا به په نصاب کې شامل کړے او په تعلیم کې به ئی شامل کړے ، لکه مثلاً : زمونږ په نصاب کې بیالوجی ده ، او پدې بیالوجی کې د انسان او د ځناورو د مرض نه بحث کیږی ، چه ددې به علاج څنګه کوے ددې سره زمونږ کار دے ، نو پدې بیالوجی کې ماته د رډار غوندې نظرئی څهٔ ضرورت دے چه تهٔ ئی ماته بیانوے چه انسان په اول کې بیزو وه او بیا څنګه طریقې سره ترینه انسان جوړ شو ، او کله وائی : چه دا اول په ختو کې چینجی اوشو او بیا ترینه انسان پیدا کړے شو ، نعوذ بالله من ذلک ، نو زما خو د مرض سره کار دے ، او که بالفرض ما االوئیل : چه ستا دا نظریه صحیح ده نو آیا پدې ځائی کې ددې سره څهٔ تعلق شته ؟ هیڅ قسمه تعلق ورسره نشته خو

بس خپل نظريات درباندې منې په حکومتي نصاب کې .

٤/ بيا وائي : چه دغه خلقو ته ريډيو چينل ، انټرنيټ ، او دغه خلقو ته په جلسو او جلوسونو کې دسټيج او ممبرونو اختيار ورکول پکار دی چه دوی پکې بيان اوکړی ځکه ستا موقف ددې سره تائيد کيږی .

٥/ خبره بيا وائي : چه د اسلامی احکامو او مسائلو حقله چه تعبير او تفسير په خلقو کې عام کړے شی ، ځکه چه هغه خلق هغوی د بنياد پرسته خلقو سره اختلافات لری چه هغه مدرسې دی معاهد دی چه دهغوی سره ښوک اختلافات لری چه بنياد پرسته خلق دی چه په دوی کې دا استعداد پيدا شی چه د دوی سره بيا مناظره کولے شی ، يعنی سيکولر مليان راپيدا کول پکار دی ، لکه غامدي وغيره او داسی نور ماډرن موليان او بيا د دوی د نظرياتو د خورولو دپاره اليکټرانک سسټم باندې اچول پکار دی چه ددوی نظريات خوريږی ، چه چاته ريډيو ، چاته چينل ، چاته انټرنيټ وغيره لګيدل پکار دی .

٦/ خبره : دا وائی چه دا ورلره پکار دی : چه ماډرن او سيکولر مليان خلقو ته ښکاره کړے شی چه دا علماء دی او خلقو ته په علم باندې ورمعرفي کړې شي او شناخت ئې وشی، ځکه چه ددوی کار به دا وی : چه کوم خلق او ځوانان په قهر او غصه وی نو دوی به د هغوی غصه او قهر سړوی او د هغوی جزبات به په آرام کوی ، او د هغه جزباتو سړولو دپاره بيا مختلفې طريقې دی : « ١ » بعضې به وائی : اسلام امن غواړی ، خو مونږ وايو : چه اسلام صحيح ده چه امن غواړی خو د خپل حريف ( مقابل ) سره جنګ هم کوی ، اسلام کې د دفاع ماده هم شته ، د اسلام نه به نعوذ بالله د هجړاګانو نظام نۀ جوړوے چه د خپل دفاع قابل هم نۀ وی ، اسلام اقدام هم کوی ، او دفاع هم کوی ، دوی به دا خبره کوی ، « ٢ » بل به دا وائی : چه په سړکونو باندې به راؤځئ او جلسې کوو ، او فلانی زندباد او فلانی مردباد آوازونه به اوشی ، او دعوامو يو ګاړے نيم به اوسوزولې شی بس غصه به ئې سړه شی .

٧/ خبره : چه غير اسلامی تاريخ او غير اسلامی فرهنګ دا دې تعليمی کتابونو کې شامل کړے شی او دې خلقو ته دې د چاپ او د خورولو لارے آسانې کړے شی ، او بيا دې دغه په

اسلامی ملکونو کې په مختلف رسالو کې تقسيم کړے شي ، او په خاص ډول دې هغه تاريخ خور او نشر کړے شي چه کوم تاريخ د اسلام نه مخکې تير شوے وی ، لکه مثلاً : مونږ به د پختنو تاريخ دا وائی چه دا د اسلام نه وړاندې تير شوی دی او دا دومره ښۀ خلق وو اګر چه دا کافران وو ، او د بعضی شاعرانو زنديقانو په خولې باندې هم دا جاری شويدی چه وائی : چه "د پختو فطرت مې دومره اسلامی دے ... که اسلام نوے نو هم به مسلمان وو" ، نو مونږ ورته وايو : چه ته په اسلام کې دومره غټ زنديق ئې که اسلام نوے نو بيا ستا څۀ حال وو ، نو دا ښځه وائی چه دا قسمه تاريخونه خلقو ته پيش کول ، چه د اسلام نه قطع نظر دوی د خپل قوميت ته سوچ او فکر را واوړی ، او اسلامي تاريخ نه ناخبره وي څکه دوي ته پته ده چه د اسلامی انقلاب په راوستلو اسبابو کې يو د تاريخ مطالعه هم ده څکه دوي دا کوشش کوي چه دغه مسلمانان چرته خپل اسلامي تاريخ اونۀ ګوري .

٨/ خبره دا وائی : چه د ملکی په سطح باندې غټ غټ اينجيوګان او تنظيمونه جوړول ، او ددې تنظيمونو تائيد به مونږ کوو ددې دپاره چه په خلقو کې عالمی پرهنګ او قوانين خواره کړی ، او بيا دې خلقو ته سياسی او د بيان آزادئ فورصتونه ورکړے شي چه دا خلق په بيان کې آزاد شی .

اوس تاسو اوګورئ چه دا اته ٨ واړه خبرے زمونږ په ملکونو کې څنګه عملی کړے شوے ، او بيا دغه عمل چه هره وجه سره که چاته د څه لالچ نه او يا د يرې د وجه نه او يا به لا په شعوری طريقې سره وي لکه بعضو خلقو ته پته هم لګی او د غيرو په طريقه باندې روان وي خو بهر حال اوس پدې ٨ خبرو کې سوچ کوه :

**١/ ماده** : اوس زمونږ په ملک کې حالات هغه چاته برابر کړيدی چه څوک دغه ډيموکريټک اسلام غواړی ، نو په رسالو کې اوګورئ ، په ناولونو ( ميګزين وغيره ) کې اوګورئ چه په هغې کې کوم قسم خبرے ليکلې شوی وی ، په کالمونو کې اوګورئ چه په هغې کې کوم قسم خبرے ليکلې شوی وی ، چه پدې کالمونو کې د ګنده ګنده خلقو اذهان پراته وی او دهغې هغه خبرے ئې راوړی وی ، لکه يوه ورځ په کالم کې دا خبره ليکلې وه : چه

دا خو هسې خبره ده چه زموږ ضد دے د مغرب سره چه مونږ دې د هغوی قانون ته په درنه سترګه نۀ ګورو ګنې د مغرب قانون هم اسلامی دے خو صرف کلمه نۀ وائی ، او په نظام او اسلاميت کې ئی هيڅ فرق نشته ، اوس تۀ دې ته اوګوره چه دا خلق ئی پکار باندې اچولی دی ، او دغه قسمه خلقو ته ئې موقعې ميسر کړيدی چه شاباس تاسو کار کوئ ، او د داسې حلقو رسالې په آسانه طريقې سره چاپ کيږی ، بيا به د دوی د خبرو مختلفې طريقی وی : کله به وائی چه اسلام امن غواړی ، او د هغې په باره کې به احاديث راوړی ، «**الْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ**»[1] دا رنګه وائی : « **خير الناس من ينفع الناس** »[2] " بهترين سړے هغه دے چه خلقو ته نفع ورکړی " او بيا د داسې احاديثو او آيتونو نه بيا عام مفهوم اغستل ، نو دا د دوی طريقه وی ، او بعضی خو بالکل مغربی طريقه پيش کوی ، دا د رينډکارفوريشن چه کومه کمپنی ده دا ټول کارونه هغه برابره وی ، او هغوی ددې خرچه برداشت کوی .

**۲/ ماده** : دارنګه په دويمه ماده کې دا خبره اوشوه چه په خلقو کې د ليکلو شوق پيدا کول، نو دا شوق په کومه نامه باندې پيدا کيږی ؟ نو دا پدې نوم باندې تياريږی چه د قلم والا خلقو ته پيسې ورکول ، او هغوی ته دا اوئيل چه د بيان آزادی ده جمهوريت دے چه تاسو څۀ هم ليکل غواړئ نو هغه وليکئ ، نو هغوی کې پدې طريقې سره شوق پيدا کولی شی ، او دغه سيکولر خلق دا يواځې نه کوی چه بس په سياسی خبرے اوليکی ، بلکه کله کله بيا په دين کې هم نکته چينی کول شروع کړی ، او په دين کې بيا ليکل شروع کړی ، ترديې چه کله پکې د ارتداد د حد نه هم واوړی ، بيا به د ليکلو انداز شروع کړی ، نو بعضی خلق به په سياسی سطح باندې ليکل کوی ، بعضی به په اجتماعی سطح باندې ليکل کوی ، بعضی خلق به په ادبی شکل کې ليکل کوی ، بيا په ادبی شکل کې کله به د آدابو اخلاق ، فحش خبرے به وليکی ، لکه دا ګنده ګنده خبرے به په هغې کې بيا ليکی ، او د زنانۆ او سړو جينسی خبرے

---

[1] [ صحيح البخاري ، رقم الحديث : ٩ ] .

[2] [ المكتبة الشاملة ، حرف الميم ، رقم : ٤٤١٥٤ ] .

بيا ليکی .

**٣/ ماده** : کې دي ښځې دا خبره کړے وه : چه ددغه خلقو نظريات دې په تعليم کې شامل کړے شی ، چه خلق په الزامی شکل سره دا ولولی ( لوستل ) ، ځکه که دغه شان په عام طريقه باندې اوليکل شی يا بيان کړے شی نو څوک به ئې يا ګوری يا نۀ ؟ او چه کله په تعليم کې شامل کړے شو نو بيا به ئې هر تعليم يافته سړے ګوری او يادوی به ئې ، اوس دا به څنګه راځي ؟ نو دا به داسې وی لکه چه مخکې ددې يو ځل بيان هم اوشو بيا هم تذکره کوو لکه په تعليمی شکل کې به مونږ ته د يو سړی صفت بيان کړی ، نو که بيا مونږ د هغه سړی يو کتاب ووينو نو خامخا به مونږ د هغه نظريات بيا ګورو او هغه به زمونږ په عملی زندګئ کې بيا راځي ، لکه زمونږ په ملک کې دا نصاب جرمنی اينجيوز چلوی ، نو دا جرمنی زمونږ په ملک باندې دومره مئين دے چه دلته زما بچې مومی نو هغه قتلوی او بل ځائ کې زما بچی لره تعليم ورکوی ، او زما د بچی په تعليم باندې پيسې هم خرچ کوی ، نو دا ولې ؟ ددې په باره کې سوچ کول پکار دی ، نو دا ددې دپاره چه پدې باندې دوی د خلقو اخلاق ختموی او د اسلام هغه تشخص ختموی نو ددې دپاره دا کار کوی .

**٤/ ماده** : هغه ښځې دا خبره کړے وه : چه د ريډيو ، انټرنيټ ، او د سټيج او ممبرونو اختيار دې دے خلقو ته په لاس کې ورکړے شی چه کوم خلق ډيموکريټک اسلام غواړی ، اوس عملی شکل ته ئې ګوره هغوي داسې ندي چه بس دې ښځې کتاب ليکلے دے او بس تش ليکل دې وي ، نۀ هغوي فوراً دغه عملی کړے دے او مونږه خپل علم سره څه کوو ما خو تاسو ته په منهج العلم والعمل کې خبره کړې وه کنه چه زمونږه غټ نقصان دا دے چه بس علم حاصل شو او د عمل غم نشته دے کتاب الحدود ، کتاب القصاص ، کتاب الجهاد وغيره اووئيل شو او بس په کتاب کې پاتې شول ددې د قائمولو دپاره د نظام غم نشته دے ، نو زمونږه د علم منهج او کتاب منهج جدا دے د عمل نه که چرته مونږه علم او عمل دواړه راټينګ کړل نو بيا مونږ ته قرآن چه کومه نظريه پيش کړے ده کنه او هغه پسې روان شو نو چرې به هم مونږ مغربی خلق خطاء نه کړې خو مونږه ئې د نظريه او عمل په انداز وايو نه کنه چه

دغه قرآن كريم ماته د انفرادي زندګي باره كې څه وائی او اجتماعي زندګئ باره كې څه وائی، مونږ خو ئې بس صرف يادوو تش تلاوت په انداز ئې وايو، يا ئې د يو تحقيق په انداز وايو يا يكې فنون چيړو او يا يكې فرعي اختلافات چيړو، هلكه ته راشه دا قرآن خو يو غټ كتاب او پوره آئين او قانون الـهى دے راشه ته پدې انداز باندې اوايه او عمل پرې وكړه نو بيا انقلاب ته ګوره چه راځى او كنه، نو راشه اوس دوي څه وكړل چه څومره بهرنی ريډيو چينلې دی چه زمونږ د ملكونو دپاره كار كوی، لكه په هغې كې ١/ريډيو آپ كې دنيا ، نو دا د امريكې آواز دے، ٢/ دا رنګه بی بی سی نو دا د لندن آواز دے، ٣/ آزادئ ريډيو نو دا د امريكې دپاره كار كوی په پختنو كې، ٤/ ډيوه ريډيو دا هم د امريكې دپاره كار كوی په پختنو كې او دغه ريډيو خو صفا صفا وائی چه مذهبی تعصب، قومی تعصب ختمولو دپاره تاسو آزادي ريډيو سره اوسئ او بيا ورپسې وائی چه د جمهوري طريقو د ترويج دپاره آزاده ريډيو او بيا په هم مونږه نه پوهيږو پته نه لګي چه زمونږه پدې ذهنونو باندې څه شوي دي، ٥/ آشنا ريډيو نو دا هم د امريكې دپاره كار كوی، او ډير خلق ددې تبليغى انداز د لاندې راغلل، او دوې د پروپګنډې انداز بيا عجيبه دے، په ناشنا انداز باندې رد كوی چه هر سړے په هغې باندې نۀ پوهيږی، نو دا خو بهرنی ريډيو ګان وو، اوس اندرونی ريډيو ګان: لكه دا مختلفې F M شوے، دا د خيبر آواز دے، شمشاد، دا د بوراق آواز دے، دا د دلبر آواز دے، سپين غر دا د امن ريډيو دے، نو دا واړه واړه ريډيوګان ئی اندرونی لګولی دی.

او په انټرنيټ باندې خو نن صبا هر چاته معلومه ده كه تعليمی سړے او ښځه ده او كه عامی سړے او ښځه ده هغوي ټول پدې باندې پوهيږي چه پدې باندې څرنګه قيصې رواني دی.

**٥/ ماده**: چه دا اسلام دې په هغه طريقه باندې تفسير او تعبير اوشی چه هغه د امريكې او دا سيكولر ملګرى چه څنګه غواړی نو هغه شان دې اوشی، يعنى پكار داده چه اسلام د مغربى كلچر مطابق شی، او مغرب چه د انسانانو دپاره څومره قوانين وضع كړيدی نو د هغې په چوكاټ كې دننه د اسلام تعبيرات اوشی، لكه مثلاً: مغرب وائی ( نعوذ بالله ) چه د زنا

آزادی ده ، چا خپل دین بدل کړو نو دهغې آزادی ده ، او په قرآن کې داسې آیتونه کتل چه هغه مجمل آیتونه وی او د هغې تفسیر په بل ځائی کې راغلې وی نو د هغې تفسیر نهٔ کول او اجمالی آیت راغستل ، لکه قرآن کې الله فرمائي : ﴿ إِنَّا هَدَيْنَٰهُ ٱلسَّبِيلَ إِمَّا شَاكِرًا وَإِمَّا كَفُورًا ۝٣ ﴾[1] " یقیناً مونږ خودلی دی انسان ته دوه لارے ، بیا د دهٔ خوښه ده که دا شاکر کیږی او که کافر کیږی " ، دارنګه بل ځائی راځي : ﴿ فَمَن شَآءَ فَلْيُؤْمِن وَمَن شَآءَ فَلْيَكْفُرْ ﴾[2] نو داسې قسمه آیتونه راخلی ، او ددې په تفسیر پسې روسته نهٔ ځی چه وریسې الله څهٔ فرمائیلی دی ، او هلته بیا حدیث نهٔ ګوری چه رسول الله ﷺ فرمائی : « **من بدل دينه فاقتلوه** » " چا چه دین بدل کړو نو هغه قتل کړئ " ، نو دا د مغرب چوکاټ ته برابروی ، او هر هغه حکم چه هغه بین المللی او بین الاقوامی قوانینو سره مخالف وی نو هغې ته به زوږ قانون ووائی ، چه دا بنیاد پرستی ده او دابه په داسې انداز کې وائی ، نو مغرب شروع شو او دغه تجروبات ئې شروع کړل په لیبیا کې ، مصر کې ، په الجزائر کې ، مراقس کې ، افغانستان کې ، په هندوستان کې ، په پاکستان کې ، پدې ټولو ملکونو کې ئې دا تکرار کړل او د اسلام هغه اصلی روح او تصور ئې ختم کړو، او د کفر سره د مخالفت حساسیت ئې د انسانانو نه ویستلو ، او د نورو ادیانو او مذهبونو سره ئې مخالفت او حساسیت ختم کړو چه دهٔ ته دا پته هم نهٔ لګی چه د اسلام او کفر په مینځ کې دا فرق شته دے ، نهٔ د ولاء او براء مسئله پاتې شوه ، چه د چا سره به دوستی کوے ، او د چا سره به دشمنی کوے ، او بنیاد ئې انسانیت کیخودلو چه بس د چا سره تعلقات ساتې نو ته تعلق ساتلې شی ، او بیا ورته بعضو منشور جوړ کړو انسان دوستی ،آفسوس دے پدغه خبرو باندې ډیر د ژړا مقام دے ،

اوس راشه چه د اسلام د مغربی تعبیر دپاره دوی اقدامات کړیدی ، امریکې په افغانستان

---

1) [ سورة دهر : ٣ ] .

2) [ سورة الكهف : ٢٩ ] .

او په نور نام نهاد اسلامي ملكونو كې كړيدى په هغه اقداماتو باندې مونږ نظر واچوو : چه كوم خلق د دې حقيقى اسلام داعيان دى هغه طالبان دى ، القاعده ده ، مجاهدين دى ، نو دغه خلقو سره به داسې چل اوكړى چه د دوى دې كار ته به دهشتگردى ووائى ، او داسې نور نومونه به ورته وركړى ، او ددې فكر به په داسې تصور باندې معرفى كړى چه خلق د هغې تطبيق ته تيار نۀ وى ، ٢/ د دوى تعبير : چه ريډيو چينلو ته د ټى وى چينلو ته هغه علماء رابلل چه هغوى د مغرب د نظرئې مطابق د اسلام تفسير اوكړى او هغه خلق وى چه هغوى اسلام د استشراق مدارسو نه ايزده كړے وى ، هغه مدرسې چه هغه د مستشرقينو مدرسې وى چه په اصل كې يهوديان وى او بيا داسې مدرسه جوړه كړى چه بيا خلقو ته تعليم او تعلم وركوى ، لكه د اظهر مدرسې واقعه مونږه بيان كړه كنه گنې دغه په اول كې صحيح د اسلامى مدرسه وه خو اوس ترينه دغه شى جوړ شو ، وغيره نورے نو دغه خلق به په ريډيو چينل باندې راولې نو هغوى به بيا د هغوى مطابق تفسير كوى ، لكه يوه ورځ ډاكټر فاروق وائى : چه زۀ حيران ديته يم چه خلق په گرمئ كې نرئ كپړے واچوى نو خلق ووائى چه گرمى ده د ځان د يخولو دپاره ئې اچولى دى ، او كه ښځه دا كپړے واچوى نو بيا دا وائي چه دا فاحشه ده ، نو دا دده سوچ او فكر دے ، دارنگه : غامدى شو نو غامدى وائى : چه د اسلامى حكومت كار بس د صلات او زكات سره دے ، او بيا په دليل كې دا آيت وائى : ﴿ فَإِن تَابُواْ وَأَقَامُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُاْ ٱلزَّكَوٰةَ فَخَلُّواْ سَبِيلَهُمْ ﴾ (1) " كه چرے دوى توبه ويستله او مونځ ئې اداء كولو ، او زكات ئې وركولو نو بيا ورته لار آزاده كړه " ، نو هغه بيا وائى : چه توبه ئې ويستله او مونځ او زكات وركوى نو بيا دا پريږده چه څۀ كوى نو هغه دې كوى ، نو دا د غامدى كار شو، نو دا مشت نمونه خروار شو باقى تاسو پخپله په هر څيز باندې نظر ساتئ نو تاسو ته به معلومه شى ، ٣/ خبره داده : چه بعضى ځايونو كې به دغه خلق مدارس جوړوى ، لكه په افغانستان كې بلا مدرسې امريكې جوړے كړے ، نو د دغه خلقو كار به دا وى : چه دغه مدرسه به

(1) [ سورة التوبة : ٥ ] .

ددوی د نظر د لاندې وی ، د هغې نصاب ، د هغې تعليم ، د هغې طرز او طريقه به ددوی د نظر د لاندې وی ، نو هغوی به پدې باندې نظر ثانی کوی چه ددې نظام او دعوت طريقه ده ډيموکريټک اسلام سره برابر ده او کنه ؟ ، ٤/ طريقه ئې داده : چه ددغه تعبيراتو دپاره چه ستا په ملک کې کوم عدالتی نظام دے نو د بيرون نه به په هغې باندې نظر ثانی کيږی ، ٥/ خبره: چه په افغانستان کې د اظهر مدرسې شاخ کولاؤ کړو ، نو دا ئې ولې کولاؤ کړو د بلې مدرسې شاخ ئې ولې نۀ کولاؤ ولو ؟ ځکه چه اظهر کې امريکنيانو يو ځل دا مشاهده کړيده چه هغوی مونږ له افراد تيار کړيدی نو چه د هغې شاخ کولاؤ کړی او په هغه نظريه باندې مدرسه دلته فعال شی نو زمونږ دپاره به په هغې کې افراد تيار شی ، د دغې دپاره دوی مدرسه جوړه کړه ، او چه کله د دغې مدرسې نه سړے فارغ شی نو کله به رئيس جمهور وی ، کله به وزير اعظم وی ، نو چه کله تا مخالفت شروع کړو نو خلق به وائی چه تباه شی نو هغه خو هم عالم دے ، نو نوم د مولا به ورپورے وی حالانکه هغه به پدې مدرسو کې په پوره طريقې سره تيار شوے کس وی ، نو دغه طريقه ئې ددې دپاره جوړه کړه .

يا دغه ډيموکريټک علماء په افغانستان کې ، يا دارنګه په نور نام نهاد اسلامي ملکونو کې په داسې طريقې سره معرفی کړيدی ، چه کوم علماء د دوی د طريقې سره مخالف وی نو هغه د مينځ نه لری کول ، يا په جيلونو کې اچول ، يا د هغوی قتلول ، نو هغه منبر او محراب به خالی پاتی شی نو دغه خالی ځائی د ډکولو دپاره ئې علماء د مخکې نه تيار کړی وی نو هغه علماء راوستل او په دغه منبر او محراب باندې کينول ، نو دغه سړے چه بيا کومه خبره هم کوی نو خپل مقتديان ورلره بيا داخبره منی د هغه خپل شاګران ئې ورسره منی ، نو دغه علماؤ د امريکې دپاره خدمات اوکړل ، نو دا اوګورئ چه يوے ښځې دومره لوئ سوچ کړے دے نو يهوديان دومره لوئ لوئ سوچونه کوی او ديته فکري جنګ وائی او مونږ دسره ديته خيال هم نشته دے دوي په مونږه کې په اندرونی لحاظ سره څومره کار وکړو اولا شروع دي ، نو داسې علماء شته دے چه هغوی د امريکې دپاره ډير زيات خدمات کړی دی :

**۱/ خبره**: لکه ډيموکريسي منل شو ، چه خلقو ډيموکريسي بطور نظام خلقو تسليم کړه ، دارنګه جمهوريت په خلقو کې تسليم شو ، بله دا چې : د خلقو د ذهن نه ئې د جهاد معنى ويستله کله به وائې چه جهاد د جهد نه دے ، نو کله به وائې چه د ماشو خلاف جهاد ، کله به وائې چه د ګندګئ خلاف جهاد ، نو دا د اسلام په مفاهيمو پسې ټوقې کول دي .

**۲/ خبره**: دارنګه د هجرت او د دوستئ او د دشمنئ مفاهيم ئې د خلقو د ذهنونو نه ويستل، دارنګه د خلقو په ذهنونو کې ئې دا خبره واچوله چه ټوپک افغانستان وران کړيدے ، دا خو نۀ وائې چه روس وران کړيدے امريکې وران کړيدے دا نۀ وائې .

**۳/ خبره**: د خلقو په مابين کې شکوک او شبهات پيدا کول ، لکه دا به وائې : د خپل قوم سره چا جنګ کړيدے ، يا به دا وائې : چه د جهاد دپاره خو د امير شرط دے .

**٤/ خبره**: په اسلامی ملکونو کې د مغرب غټ هدف دادے : چه د مسلمانانو ښځې به د کور نه ښنګه راوځی دا د دوی غټ هدف دے ، چه هغوی هغه بندونه مات کړی او راوځی، او د ښځو او د نرو ترمينځ اختلاط پيدا شی ، نو پدې لاره کې مغرب په آرام آرام سره کار کوی اول ورلره ټول ممکن وسائل په کار باندې واچوی ، نو اول ورلره دينی بنياد کيږدی چه مسجد د مستوراتو ( د ښځو مسجد ) دپاره جوړ کړی ، لکه مثال په کنړ کې اسدآباد علاقه کې په 2009 / 7 / 4 باندې د امريکې انجيوز چه نوم ئې ( د ملک دوباره آبادول ) او دې انجيوز 180000 ايک لاکھ اسی هزار ډالر باندې يو مسجد جوړ کړو د مستوراتو دپاره دا ځکه چه پدې نورو ملکونو او علاقو کې زنانه څه ناڅه بهر راوځی خو د افغانستان په اطرافو کې خو بالکل زنانه د کور نه نۀ اوځی نو هغې دپاره ئې دغه طريقه اختيار کړه ، نو د کور نه ئې پدې بهانه باندې راويستلې ، نو دا خدمت به هم د امريکې دپاره خامخا يو مولا کړے دے، که لږ سوچ اوکړئ : چه يو طرف ته ده سړو مسجد ورانوے ، او بل طرف ته د ښځو مسجد جوړوے نو پديکې خامخا څۀ چل شته ، نو دا قسمه طريقې ئې اختيار کړيدی دپاره د ګمراه کولو .

اوس دا وائی : چه د اسلام په خلاف به د رواجی ملیانو نه هم استفاده کوو ، لکه پدې مساجدو کې چه کوم اخونان ناست وی ځکه د هغه خو څه نظریه نوی کنه ټول نظریې په روپو باندې وي نو د هغې نه به هم استفاده کوو نو د هغې نه به څنګه استفاده کوی ؟ لکه دغه ښځې په خپل کتاب سیول ډیموکریټک اسلام کې وائی : په لسمه ۱۰ صفحه باندې ئی لیکلی دی : چه دویته بله دا خبره پکار ده : چه هغه کارونه په ګوته کول چه په هغې کارونو کې د رواجی ملیانو نه کار اغستې شی چه دا خلق به د جهادی تحریک په خلاف د علماؤ او د ځوانانو په خلاف استعمال کړی ، خو دا وائی : چه دغه رواجی ملیانو سره خو علم کوم چا سره علمي خبرې نشی او هر چه کوم بنیاد پرست او دهشتګر خلق دی نو د هغوی ( مجاهدین یادوي ) موقف ډیر مضبوط دے ځکه د هغوی سره دلائل دی ، نو ددې رواجی ملیانو به بیا د ډیموکریټ ملیانو سره تعلق راوستل پکار وی چه د هغې سره یوځائی شی نو دوی به د هغې نه دلائل زده کوی او بیا به ددې نورو سره بحث پرې کوی او د خلقو په ذهن کې به شبهات اچوي او د هغې خلاف به کار کوی ، نو دا طریقه دې ښځې لیکلې ده ، نو د هغې دپاره به دا دا کارونه کوے ، بیا وائي : د رواجی ملیانو هم څۀ اعتراضات وی او څه تقاضی وي نو د هغې دپاره به څه کار کوي :

**۱/ خبره**: نو هغه خبرے به ښۀ په زور او شور سره نشر کوے او دغه خبرو لره به نور هم زور ورکوے .

**۲/ خبره**: د رواجی ملیانو او د بنیاد پرستو خلقو چه کوم روابط جوړیږی نو د هغې په مینځ کې مشکلات راوستل ، داسې طریقې کول چه د دوی او د هغې ترمینځ اختلافات پیدا شی .

**۳/ خبره** : چه په بعضو ملکونو کې دا کار کول پکار دی چه رواجی ملیانو ته ډیموکریټک تعلیم ورکړے شی ، ددې دپاره چه هغوی په قوت سره د بنیاد پرستو خلاف اودریږی .

**٤/ خبره**: چه د رواجی ملیانو په مساجدو او مدرسو کې دې ماډرن ملیان راپیدا کړی او ماډرنیزم طرف ته دعوت ورکړی .

**٥/ خبره**: رواجی ملیان به دا کار وکړی چه دوی به په هغه خلقو باندې د ګمراه او د کفر فتوے اولګوی چه کوم خلق مجاهدین دی ، نو چه کله د هغه فتوے پرے اولګوی نو پدې سره به خلق د هغوی نه متنفره شی لکه دا کار د شاه اسماعیل شهید رحمه الله په تحریک کې اوشو او چه کله هغه دې علاقو ته راورسیدو نو په هغهٔ باندې فتوے شروع شوے د مردان د نوابانو په کتب خانه کې اوس هم **120** د کفر فتوے پرتے دی ، پدیکې یوه فتوی د نوښار د کنډرو قاضی هم پرته ده چه هغه وائی : « **وقد شهد عندی رجلٌ ان شاه اسماعیل یجوز وطی الذکران فلهذا هو کافر بالله تعالی** » " ماته یو سړی دا ګواهی کړیده چه شاه اسماعیل د هلکانو سره بدفعلی کول جائز ګنړی نو ددې وجه نه هغه په الله تعالیٰ باندې کافر دے " نو تاسو اوس اوګورئ : چه د ګواهئ دپاره یو سړے کافی وی او هغه هم مبهم ، نو دا کار د رواجی ملیانو وی، او داسې نورے فتوے هم شته دے ددې په باره کې .

اوس دا کارونه شویدی او کهٔ نهٔ ؟ نو بالکل دا کارونه شویدی لکه تهٔ اوس ګوره : اول دې ښځې دا خبره اوکړه : چه د رواجی ملیانو تنقیدونه دې په زور او شور سره مخکې شی ، اوس ګوره : په افغانستان کې د امریکې د راتلو سره ډارک خونمیر ملا ته ئې **F M** اولګولو چه دا دسره چا پیژندلو هم نهٔ چه دا ملا دے او که نهٔ ، دغه شان په نورو ملکونو کې هم د هغه خلقو آوازونه په زور او شور سره خوری چه هغوی پوهیږي چه د هغې نه فتنه پیدا کیږی .

بله خبره دې ښځې دا کړی وه : چه مدارس او مساجدو کې دې رواجی ملیان مهذب شی چه د مجاهدینو سره اختلافات لری ، نو دا اوګورئ چه دا پدې ملکونو کې څومره په زور او شور سره چلیږی او روانې دی ، او بیا په هغه مدارسو کې هغه طالبان اخلی چه هغوی مخکې په مدارسو کې سبق نوی وئیلی نو بیا هغه ته یو څو لنډې دورې اوکړی شی نو بیا هغه په نوم باندې ملا شی ، نو ددې یو ناشنا ترتیب ئې جوړ کړو : چا رساله کورس دا د تعلیم یافته خلقو

دپاره جوړ شو ، نو ددې خلقو مقصد پديکې دا دے : چه صبا دپاره مغرب والا دا خلق په قيادت کې محکې کوى نو کم از کم پديکې د ملاتوب هغه نوم خو پروت وى ، نو بيا به وائى چه يره مونږ سره خو علماء ولاړ دى دا اوګوره څومره مليان مونږ سره پدې نظريه باندې ولاړ دى ، نو ددې دپاره دوى دا طريقې تيارے کړے ، چه صبا بيا دغه د ډيموکريټک اسلام تائيد کوي .

نو دا هغه ډيموکريټک اسلام دے چه هغې ښځې ليکلې دے سيول ډيموکريټک اسلام ، چه دوى دنيا ته داسې اسلام راوستل غواړى چه هغه د د بين الاقوامى د اقوام متحده سره موافق قانون وى داسې اسلام دې راشى ، نو دا د هغې رسالې يوه خلاصه مونږه واضحه کړه ، او بيا په هغې کې د اعلى ، ادنیٰ ، د علماؤ ، او د سياسى خلقو هغه کردار مونږه واضحه کړو ، او د هغوى دپاره چه دوى کومې طريقې استعمالوى نو هغه هم مونږ واضحه کړے ، او په دغه طريقو کې دوى خپل مشن خوروى نو هغه هم تاسو ته واضحه شوے ، نو مونږ لره پکار دى چه پدغه څيزونو باندې نظر واچوو ، ځکه مدرسه او مسجد زمونږ د دعوت ځائى دے که دغه منبر او محراب ئى زمونږ نه واغستلو نو بيا زمونږ او ستاسو کار ډير ګران دے نو پدې باندې نظر ساتل پکار دى ، او ددغې مخ نيوے کول پکار دى ، او دا خپلو ملګرو ته ورسوئ چه داسې يو فکر روان دے چه داسې اسلام جوړ شى چه هغه د بين الأقوامي قوانينو سره مخالف نوى بلکه هغه سره برابر وي يعنى په اسلام کې ورلره کفر رادننه کوي ددې نه ځان ساتل پکار دى ، او ددې کتاب تاسو نوره هم مطالعه وکړئ .

وبالله التوفيق .

******

## دين او سيكولرزم [ دريمه حصه ]

### ددې موضوع نوم دې : ســـــيكــولر اسلام

د سيكولرزم والا بحث شروع وو اوس پديكې د سيکولر اسلام بحث شروع کوو د الله په توفيق سره ، ځکه چه دوی وائی چه مونږ ته دې يو سيکولر اسلام جوړ شی نو د عالمی قوانينو سره به ئی مخالفت نۀ وی او بيا په دغه طريقه به مونږه د مسلمانانو سره ميلاويږو او د مسلمانانو سره به اتحاد قائم کړو ، خو اصل کې دوی د مسلمانانو سره اتحاد نۀ قائموی بلکه د مسلمانانو نه اسلام ختموی ځکه چه دوی مخکې يو دين ختم کړے دے چه هغه عيسايت وو چه کله بائبل جوړيدو او بيا روسته دوی کانفرس راطلب کړو او هغه کانفرس چه کله اوشو نو عيسايان ئی د خپل دين نه خلاص کړل ، حالانکه د عيسايانو د دين نظريه دا وه چه دوی د يهودو د دين مخالفت کولو لکه قرآن کريم کې الله تعالیٰ فرمائي : ﴿ وَقَالَتِ ٱلْيَهُودُ لَيْسَتِ ٱلنَّصَـٰرَىٰ عَلَىٰ شَىْءٍ وَقَالَتِ ٱلنَّصَـٰرَىٰ لَيْسَتِ ٱلْيَهُودُ عَلَىٰ شَىْءٍ وَهُمْ يَتْلُونَ ٱلْكِتَـٰبَ ﴾[1] "اووئيل يهودو چه ندی نصاری په هيڅ يو دين باندې او نصاری به ويل چه ندی يهود په هيڅ دين باندې او حال دا چه دواړو به کتاب لوستلو " .

خو هر چه ددې زمانې نصاری دی نو هغوی وائی چه يهود د دنيا مقدس ترين قوم دے که چرته په مخ د زمکه باندې يهود وی نو دنيا به وی او که چرته يهود د مخ د زمکې نه ختم شو نو دنيا هم ختميږی .

د سعودی د يو عالم نه تپوس اوکړے شو چه يره ستاسو په دين کې شدت ( سختی ) ده ، تاسو وائی : چه په آخر کې به مونږه يهودو سره جنګيږو نو تاسو خو يو مقدس قوم سره جنګيږئ ځکه تاسو دا دين صحيح ندے ، او دا سوال عيسايانو کړے وو ؟

نو دغه عالم ورته په جواب کې اووئيل : چه مشر به ددغه جنګه څوک وی هغه خو به

---

[1] [ سورة البقرة : ١١٣ ] .

عيسى عليه السلام وى چه هغه ستاسو پيغمبر دے هغه به ددې جنګ مشر وى تاسو خو په خپل پيغمبر باندې اعتراض كوئ ، نو هغه بيا غلے شو ځکه نن صبا نصارئ خو هغه پخوانى نصارئ ندي پاتې شوي ټول سيکولر شوي دي .

**او دويمه طريقه داده** : چه دوى لګيا دى يو عالمى قانون جوړه وى او نيو ولډ آډر په نوم باندې دوى يو قانون جوړ کړيدے د هغه قانون مطابق دوى دغه خبره کوى او دوه پلانونه دى : يو داسى قانون وى چه ټولې دنيا ته ورشامل شى او د دنيا نه به نور قوانين ختميږى بس يو قانون به وى او بيا د هغې دپاره مختلفې طريقى دى لكه مخکې حصه د دې موضوع کې هغه ذکر کړے شويدى .

اوس دا خبره کوى چه کوم خلق ددې مخالفت کوى کوم اسلام چه مونږ پيش کړو او د هغې مقابله به څنګه اوکړى شى نو اوس ددې خبرے نه وضاحت کوو : هغه خلق چه د دوى د اسلام مخالفت کوى نو هغې ته دوى نوم ورکړيدے بنياد پرست ، دا بنياد پرست ځکه دى چه د دوى خپل بنياد شته دے په وحى باندې ولاړ دى هغه اولنې دور ئې رانيولې دے نو په حقيقت کې هم دا خلق بنياد پرست دى ، نو د رينډکارفوريشن والا وائى : چه د سيکولر عناصرو ملاتړ خو به اوشى لکه رواجى مليان شو ( لكه مخکې چه بيان کړې شو چه هغوي هيڅ فکر او نظريه ئې نوى ) د کرائى مليان شو هغه به مونږ هغې ته پيدا کړو ، خو که چا ددې په لاره کې مخ نيوے کولو لکه دوى وائى : چه مونږ ته ډله معلومه ده چه هغه بنياد پرست دى چه هغه به د دوى مقابله کوى نو د هغوى د مقابلې دپاره به څۀ چل کيږى ؟

**نو د هغې د مقابلې دپاره به اوه « ۷ » طريقې اختيارول پکار دى** :

۱/ چه يو کار به دا اوشى په فکرى طريقه کې چه د اسلام په باره کې چه د دغه بنياد پرستو کوم تعبير دے ( چه دا حقيقى تعبير د اسلام دے ) نو دا به مونږ دنيا ته غلط ثابتوو چه دغه تعبير او تفسير ددې ندے ، يا دغه تعبير او تفسير ددې زمانې سره متعلق صحيح ندے نو د دغې په غلطئ باندې به مونږ کوشش شروع کړو او ددې غلطئ به راظاهروو ، نو دا خو په اسلام کې يو طعن شو ، اوس چه بنياد پرست دى د هغوى خلاف به مونږ څۀ کوو؟

۲/ کار به دا کوو : چه د دوی چه کوم غیر شرعی خلقو سره رابطې قائمی دی هغه ټولې رابطې دنیا ته راظاهرول دی ، او دابه ووایو : چه اے خلقو ددې خلقو د دوی سره رابطه ده ، نو کله چه دا رابطې راښکاره شی نو خلق به ددې وجه نه د دوی سره مخالف شی خو دا د دوي بهتان دے .

۳/ خبره دا ښځه دا لیکی : چه بنیاد پرستو چه د جبر او د سزاګانو کومې کارنامې وی نو هغه دنیا ته نشر کول ، چه اوګوره : دا ظلم ئې اوکړو په فلانی ځائی کې ، دا زیاتې ئې اوکړو ، دا جرم ئې اوکړو ، او ددې طریقې په اختیارولو سره هم خلق د دوی مخالف کیدلې شی خو دا د دوي ځانته پروپیګنډې دي .

٤/ خبره دا کوی : چه ددې خبرے په اثبات باندې زور ورکول پکار دی چه دا خلق د خپل ملک او د خپل قوم دپاره هیڅ یو پروګرام نۀ لری ، چه دوی د خپل قوم دپاره یوه اداره قدرے نشی قائمولې ، دوی حکومتی نظام نشی چلولې ، او بیا ئې دا لیکلی دی : چه دا خبره په نوجوانانو کې عام کول پکار دی ، او په ساده خلقو کې چه په یوه خبره باندې پوهیږی ، او په ښځو کې ، او په هغه اقلیتونو کې چه په مغرب کې اوسیګي نو په هغوي کې دا خبره عام کول .

٥/ خبره دا کوی : چه د خلقو د ذهنونو نه د دوی احترام اوباسل ، او د هغوی د احترام د اوباسلو دپاره چه د دوی کومې کار نامې دی هغه پټول ، او د دوی چه څومره هم بد نومونه وی نو په هغې باندې دوی مسمیٰ کول ، یعنی دوی ته بد بد نومونه اغستل لکه داسې وئیل : چه دا دهشتګرد دی دا شدت پسند دی ، او دوی ته بزدله خلق وئیل .

٦/ خبره دا کوی : چه څومره صحافیان دی نو دوی پدې خبره باندې راپاڅول چه دا بنیاد پرستو په متعلق باندې د فساد او د فسق والا قیصې اولیکئ او د فسق خبرے اولیکئ چه دوی دا دا خبرے کوی .

۷/ خبره دا کوی : چه کوشش اوشی چه بنیاد پرست په بیل بیل ( جدا جدا ) تنظیمونو او ډلو کې تقسیم شی ، نو دا اوه ۷ خبرے دوی اوکړی چه کوم خلق د دغه ډیموکریټ اسلام

په لاره کې خلاف او روکاوټ جوړیږی نو دغه قسمه خلقو سره پدې اوه « ۷ » طریقو سره مقابله کول او فکری جنګ کول پکار دی ، نو دا ددې ښځې هغه نظریه وه ددې خپل ډیموکریټک اسلام متعلق .

**اوس ددې خبرو تطبیق اوګوره** : اوس راشه چه پدې اسلامی ممالکو کې دوی دا خبرے تطبیق کړی دی او که هسې په کتاب کې پاتې شوے ، یعنی دوي دغه خپل جاهلیت هم په منهج العلم والعمل باندې روان دی او که نه هسې زمونږ پشان په منهج العلم باندې روان دی ، نو اوس راشه د دوی منهج ګورو : نو امریکې د خپل میډیا په ذریعه باندې دنیا ته کوشش کوی چه د اسلام متعلق چه کوم د اسلام حقیقی تعبیر او تفسیر دے نو هغه دنیا ته په یو شدت سره ، په افراط سره وغیره نومونو باندې مخ ته کوی چه دا خو افراطیان دی دا شدتیان دی دا شرپسند دی ، بیا وائی : اسلام جنګ نۀ غواړی ، خو دا خبره د دوی ځکه خطاء ده : چه اسلام کې د خپل دفاع صلاحیت شته په اسلام کې د خپل نشر او اشاعت صلاحیت شته ، نو دا خبره د دوی خطاء شوه ، د اسلام طریقه داده : چه اسلام څۀ وخت پورے جنګ کوی او بیا د سلګونو کالو پورې یو مثالی امن قائموی ، نو اسلام د امن مذهب دے خو په اول کې اسلام جنګ کوی .

نو کله وائی : چه دا د طالبانو نظام دے ، دا ورته ځکه وائی : که چرته قوم ته دا خبره اوکړی چه دا د صحابوؤ نظام دے نو بیا خو خلق مخالف کیږی ، نو د هغه مخالفت د ختمولو دپاره د ددې نظام نسبت صحابوؤ ته نۀ کوی ، پیغمبر ته ئې نۀ کوی ځکه چه بیا خو هغه ټول مسلمانان راپاڅی کومو ته چه دوي د سیکولر نشی انجکشنې وهلې دي بیا خو هغه ټول راویښیږي نو ځکه ورته نسبت نه کوي ، بلکه د دغه اسلام نسبت به دې خلقو ته اوکړے او چه کله دې ، دې خلقو ته نسبت اوکړو نو بیا تاته به د دوی رد کول آسان وی ، نو دوی دا کار شروع کړو چه د طالبانو نظام مونږ نۀ منو ، ځکه چه د طالبانو په نظام کې سختی ده ( دا خو نۀ وائی چه په اسلام کې سختی ده ) او کله کله الله تعالیٰ د دوی د خولو نه داسې الفاظ اوباسی لکه د ایټلی وزیر وائی : چه اسلام په دنیا کې شر خور کړے دے او تر آخره پورے به

شر خوروی والعياذ بالله من ذلک ، يا د بوش په خولې باندې ناڅاپي دا خبره جاري شوه : چه دا صليبي جنګ دے ، يعنی د اسلام او د صليب جنګ دے ، نو کله کله داسې الفاظ الله تعالیٰ د دوی د ژبو نه را اوباسی ، ورنه دوی داسې الفاظ نۀ استعمالوی ، نو د دغې تعبيراتو نسبت اول دغه معاصرے ډلې ته کول او بيا د هغې نه پس په دې باندې رد کول چه دا افراطی تعبير دے او داسې نور نومونه ورته ورکول ، نو دوی ددې د کتاب په خبره باندې عمل اوکړو .

۲/ **خبره چه دغې ښځې** کړے وه : چه د مجاهدينو چه د کومو خلقو سره غير شرعی روابط وی نو هغه ښکاره کول ، اوس راشه ددې خبرے عملی کولو ته ګوره : چه دغه شان غير شرعی روابط خو په مجاهدينو کې نشته خو دوی بيا هم کوشش کوی ، کله به وائي : چه د مجاهدينو تعلقات ددې پوډرو والاؤ سره دے دا پيسې د هغه ځائی نه حاصلوی ، کله به وائي : چه يره ددې خلقو خو د حکومت سره تعلق دے ، کله به وائی : چه ددې تعلق د نورو ملکونو سره دے ، کله به وائی : چه دا د امريکې خلق دی ، کله به وائی : د برطانيه خلق دی ، نو داسې خبرے ورپسې کوی .

۳/ **خبره دغه ښځې** دا کړے وه : چه د طالبانو عواقب او جرمونه دنيا ته ښکار کول ، اوس تۀ ګوره : چه امريکه راغله په افغانستان باندې ئی هغه بمونه استعمال کړل چه دنيا ئی حيرانه کړه ، او دغه بمبارونه څومره زمانه جاری وو افغانستان ئی لوټې لوټې کړلو ، او دغه شان په عراق ، شام مسلمانانو باندې فلسطين ، چچنيا دغه شان په نورو ډيرو ملکونو کې هم دغه شان وشو ، لکن په ميډيا باندې دا خبرے نۀ نشر کوی بلکه د طالبانو عواقب به ګوری او هغه به نشر کوی .

٤/ **خبره ئي دا** کړے وه : چه بنياد پرست خلق يعنی مجاهدين داسې يو ايجنډه نۀ لری او داسې يو نظام نۀ لری چه حکومت پرے اوچلوی ، نو ددې خبرے په حقله باندې امريکه هميشه دا کوشش کوی چه دنيا ته دا خبره وړاندې کړی چه مونږ په افغانستان کې امن غواړو او دا طالبان وغيره د امن مخالف دی نو دا خبرے به تۀ هر وخت په ريډيو وغيره اسبابو

باندې اوري ، نو خپله ئې خو ټول افغانستان او درانګه نور ډير اسلامي ملکونه وران کړلو او خلق ئې ديته مجبوره کړل چه هغوی نن خپل کلي او خپل وطن پريږدی او چه بيا هم کله خبره راشي ، نو بيا د طالب په هکله وائي چه دا د امن دشمن دے ، او ځان ته د امن کونتره وائي نو دا عجيبه خبره ده .

**٥/ خبره دا اوشوه** : چه د خلقو د زړونو نه د دې خلقو احترام اوباسل پکار دی ، نو د هغې دپاره مختلف الفاظ استعمالول ، نو راشه اوس اوګوره چه پدې خبره باندې دوی څومره عمل کړے دے ، نو کله داسې وائي : چه مجاهدين تنګ نظره خلق دی ، کله وائي : چه دا په معاشره کې پاتې خلق دی ، کله وائي : چه دا غير مهذب خلق دی ، کله به وائي : چه دا ناخوانده خلق دی نو عجيب عجيب الفاظ دوی استعمالوی ، او پدې نومونو باندې د خلقو د زړونو نه د مجاهدينو احترام لری کوی .

دوی به دا خبره کوی چه مجاهدين بزدله خلق دے چه مجاهدين دومره غټې غټې کاروايانې کوی نو دا دومره کم عقل خلق دے ، نو دوی ديته بزدلانه کاروائی وائي ، فدائی به وشی دوی به وائی چه د يو بزدلانه کار دے ته خو لګ د زمکې جنګ ته رامخکې شه نو پته به اولګی بزدلان خو دوي دي چه هوائی حمله کوي نو کچرته واقعةً دا مجاهدين بزدلان وے بيا پکار دي چه يواځې ميدان ته راوځی ولې امريکه ټولے دنيا ته سوال کوی چندے کوی په دنيا کې او ټولې دنيا ته زاری کوی چه راشئ مونږ سره تعاون اوکړئ ، که واقعةً دا بزدلان وی نو د بزدلانو خلقو خو يو سړے کافی دے ، خو معلوميږی چه دا د ميډيا پروپګنډه ده .

**٦/ خبره دا شوې وه** : چه صحافيان دې د دوی په خلاف باندې د فسق او غلطې قيصې مشهورے کړی ، خو الحمد لله دغه کار دوی په طالبانو کې ونهٔ موندل نو تر اوسه پورے دوی يو داسې ټکې اونهٔ موندلو چه دا په وضاحت سره اوليکی ، اګر چه د دروغو دعوے به کوی ، لکه تاسو به دا مختلفې پروپګنډې اورئ ، خو په ليکلو انداز کې ځکه نهٔ ليکی چه دوی ته خو معلومه ده چه ثبوت خو د دوی سره نشته نو پدې اعتبار سره دوی په ديکې لږ پاتې راغلی دی .

**۷/ خبره دا اوشوه**: چه دوی دې په جدا جدا ډلو کې تقسیم کړے شی ، نو پدې خبره باندې د دوی عمل ډیر په زور او شور سره روان دے چه هر چاته دا معلومه ده چه دوی په مجاهدینو کې څومره ډلې پیدا کړے ، لکه امریکه دا دعوه کوی چه په طالبانو کې د هغه کسانو سره زۀ روغه کول غواړم چه هغه امن پسند دی او کوم خلق اسلحه په زمکه باندې ایږدی ، نو پدیکې دوی د طالبانو دوه قسمه ته تقسیمول مقصد دے ، چه په طالبانو کې دوه ډلې دی : یو پکې شدت پسند دی ، او یوه ډله پکې امن پسند دی ، نو پدې کې هم دوی ناکام دي .

نو دا مونږه اوکتله چه دوی څومره پورے دغه خبره عملی کړے وه ، نو دا خبره واضحه کړے شوه .

**بله خبره دا ښځه** دا کوی : چه د ډیموکریټک خلقو مرسته کول پکار دی ، اوس چه تۀ د ډیموکریټک خلقو سره مرسته کوے نو هغه به هم د هغوی په موقف کې کوے او هغه موقف به سیکولر ګرځوے نو بیا به څنګه طریقه کوے ؟

**نو دا ښځه وائی**: چه سیکولر او ډیموکریټ خلق دې پدې خبره باندې پوهه کړے شی چه بنیاد پرست خلق یعنی مجاهدین ستاسو او د امریکه مشترک دوشمن دے ، ۲/ نمبر خبره دا کوی : چه په اسلامی ملکونو کې پکار ده چه کوشش اوکړے شی چه کوم مغرب پلوه خلق ډیموکریټ دی نو د هغوی نه دې کار واغستلې شی او هغه خلق چه هغه د مغرب سوچ والا خلق ندی لکه نشنلیزم خلق شو نو د دوی نه کار مۀ اخلئ ، څکه چه د مغرب په ځائی باندې به بیا دوی د بل چا دپاره کار شروع کړی ، نو دغه خبره هم بیا عملی شویده ، لکه کرزی چه د شمالی اتحاد والا خلق په آرام آرام سره د حکومت نه لرې کړل دوستم ئې یو خوا ته لرے کړو، قیوم ئې بل خوا ته لرے کړو ، چه نن د هغوي نومونه هم نشته ، دا څکه چه دا پوهه وو چه دا خلق روسی ذهن لری او د روسی ذهن لرلو په وجه باندې صبا دا ماته نقصان راکولې شی نو هغه خلق ئې ورک کړل .

**۳/ خبره دا وائي** : چه په اسلامي ملکونو کې پکار ده چه دا نظریه تائید کړے شي چه دین او دولت ، دین او حکومت دا جدا جدا څیزونه دی ، نو دا د سیکولرزم بنیادی نکته ده چه دین ځانته شي دے او حکومت ځانته شي دے ، نو دا نظریه په خلقو کې راوستل پکار دی .

**٤/ خبره دا وائي** : چه نوی قیادتونه چه مونږ ګورو نو هغه د ذلت سره مخامخ شوی دی یعنی په ختمیدو باندې راغلی دی نو په هغه خلقو کې زړورتیا اچول ، حوصله افزائی د هغوی کول .

**٥/ خبره دا وائي** : چه د مسلمانانو اکثریت پکار ده چه په سیاسی کارونو کې شریک کړے شي ، ددې دپاره چه د مسلمانانو نه کوم شدت پسند مسلمانان جوړیږی چه د هغوی مخ نیوے اوشي ، خو ددې نه مراد د دوی جمهوری سیاست دے نهٔ اسلامی سیاست ، او د افراطی مسلمان یعنی د شدت پسند مسلمان کیدو په خاطر کې په عوض کې ورته دا خبره ورکړے شي او ددې خبرے تلقین ورته اوکړے شي چه اسلام خو د دوی د پرهنګ صرف یو جز تشکیلوی یعنی اسلام د دوی پوره رسم او رواج طریقه نده بلکه اسلام خو ستا د رسم او رواج یو جز تشکیلوی ټوله معاشره او ټول آئین ستا اسلام ندے ، نو دا خبره ورته ښکاره کول.

**٦/ خبره دا وائي** : چه دویته دې بین الاقوامی قانون ورکړے شي یعنی بین الاقوامی رسم او رواج دې ورته ورکړے شي او خاصکر چه کومو علاقو کې چه جنګونه شوی وی خاصکر په هغه علاقو کې ، او کوم خلق چه مهاجر وی او په کیمپونو کې وی ، او کوم خلق چه د حالاتو د کړکیچ سره مخامخ شوی وی ، نو هغه خلقو ته سیکولر او ډیموکریټک د هغوئ د وضعیت په وخت کې ته د هغوی نه ډیره استفاده اغستې شے ، نو دغه وخت کې تهٔ دا قیادتونه ښهٔ خائسته رامخې ته کولې شی ، او مختلف طریقو سره د هغوی مدد کول ، او بیا هغوی ته مختلفې خبرے کول .

**نو دا دډې ښځې ایجنډه ده**، اوس تاسو په خپله معاشره کې تاسو ښځپله ګورئ چه پدې خبرو باندې څومره عمل شوے دے .

**١/ نو اوله خبره دا اوشوه**: چه دويته به دا خبره اوکړی چه دا دشمنان زمونږه شریک کړی » نو دا خبره ټولے دنیا ته دا امریکه کوی بلکه چه کوم خلق په ریشتیا مسلمانان دی نو هغوئ ته هم دا خبره کوی چه مونږ د اسلام مخالف نهٔ یو، بلکه مونږ د هغه چا مخالف یو چه هغوئ د دنیا او د ټولو خلقو مخالف دی ، هغوئ د اسلام دشمنان هم دی نو مونږ د هغه خلقو مخالف یو لکه ابامه په خپل اولنی تقریر کې دا اووئیل : چه زهٔ د اسلام مخالف نهٔ یم ، نو دا خبره ددهٔ غلطه ده ځکه چه دا د اسلام مخالف وو ورنه نعوذ بالله بیا خو الله دروغ وئیلی دی چه وائي : چه دا خلق د اسلام او د دین دشمنان دی نو الله دروغ ندی وئیلی خو دا ابامه ظالم دروغ وائی ، ځکه دا وائي چه زهٔ د اسلام مخالف نهٔ یم خو دا هغه حقیقی اسلام نهٔ یادوی ځکه د هغې خو مخالف دے ، نو دا د ډیموکریټ اسلام مخالف ندی او ډیموکریټ اسلام په حقیقت کې اسلام ندے هغه کفر دے ، او بیا د طالبانو په باره کې دوی دا خبره کوی چه دا خو زمونږ او ستاسو مشترکه دوشمن دے خو همدغه ملکونه دی چه دوی بیا د بل ملک لاس شی او د هغوی په لاره باندې بیا روان وی .

**٢/ خبره مونږ دا اوکړه**: چه په اسلامی ملکونو کې دې نوی قیادتونه ایجاد کړے شی ، او د نوی قیادتونو د ایجاد دپاره دوی دا طریقه کوی چه حقیقی قیادتونه د منځ نه لری کړی او قهرمان او پهلوان خلق ترې ختم شی ، او د هغوی په ځائی باندې ډمان او سندر غاړی ، او کرکټیان نو دا قسمه خلق بیا راولی میدان ته ، او دوی ته دې بیا د قهرمان او پهلوان نوم ورکړے شی ، نو دا د مغرب د نوی قیادتونو د ایجاد کولو طریقه ده ، او دې جعلی قیادتونو ته بیا طریقې ورښائی چه تاسو به د دوی سره څنګه مقابلې کوئ ، او بیا د یو بل سره اتحادونه کوی د دوی په خلاف ، او بیا مختلفې طریقې د دغه خلقو د قیادتونو دپاره جوړوی ، کله به جرګې جوړوی ، کله به ادبی پروګرامونه جوړوی ، کله به په کلبونو کې راځي ، کله به د قومی

جرګو کې مخکې راځي ، او د کلچربنيادونه به جوړوي ، نو دغه خلق پدې طريقې سره رامخکې کوي ددې دپاره چه د هغه قهرمانانو او نډر خلقو په ځائې دوی د قيادت په ځائې باندې اونيولې شي .

**۳/ خبره مونږ دا اوکړه** : چه دنيا کې اسلامی ملکونو ته اسلام يو رواجی دين ورښکاره کړی ، او هغه پدې طريقه ورښکاره کوی : چه په ډيوه ريډيو کې به يو کس راشی او د عليک سليک نه بعد به بيا د پختنو نه يو سوال اوکړی چه يره جی په پختنو کې هغه د حجرو نظام باقی پاتې دے او که ختم شوے دے ؟ نو په حجره باندې به بحث شروع کړی ، بيا به ووائی : چه د حجرې پخوا يو کلچر وو نو هغه کلچر او طريقه باقی ده او که نهٔ ؟ نو دا به ورته ووائي : چه هغه کلچر څهٔ کلچر وو ؟ نو دا په جواب کې ووائي : چه مونږ به راغونډ شو او منګی او رباب به پروت وو او هغه به مونږ شروع کړو نو اوس هغه کلچر ختم شو ځکه چه شدت پسند راووتل او ډارک دوی زمونږ د پختنو په کلچر باندې حمله اوکړه ، نو پته اولګيده چه ته خو هم ډم اوختې ، نو دغه ډم په حجره کې ناسته او هغه ډول او رباب دا خپل کلچر ګنړی ، نو د حجرې ثقافت ئي ځانته حساب کړو ، د واده ثقافت ئی ځانته حساب کړو ، د ماشوم د ختنې ئی ځانته کړو ، نو پدې ثقافتونو کې مونځ او اودس او مسجد دا د اسلام ثقافت شو ، نو د خلقو په ذهنونو کې دا خبره واچوی ، او بيا ددې د مخکې تللو دپاره به په ريډيو باندې يو ناپوهه سړے را اوغواړی او بيا به د هغه نه د اسلام د مفاهيمو په باره کې تپوسونه کوی ، نو هغه ورته بيا ووائی : چه موسيقی خو حرام شی ندے ، ځکه چه داود عليه السلام له الله پاک دا ښکلې آواز ولې ورکړے وو ، نو دا ورته دليل ورکوی ، نو دا مفاهيم د اسلام به په غلطو طريقو سره نشر کوی .

اوس د دوی سره يوه خبره باقی پاتې شوه چه دوی خو فکری جنګ ټول ترتيب ورکړو او نظم نسق ئی جوړ کړو او په هغې کې ئي خپل لښکرونه شريک کړل ، چه شابه دا په مخکې بوځئ ، نو دا جنګ خو شروع شو ، او اوس دوی ته يوه لاره پاتې شوه او هغه دا چه د مقابل کې چه کوم خلق دی نو د هغوی سره يوه بله لار هم شته چه هغه د ټوپک لاره ده ، نو د دغې

لارے د بندلو دپاره به څۀ کول پکار دی ؟ نو د دغې لارے د بندولو دپاره بیا هم دا ښځه چه سیول ډیموکریټک اسلام واله راڅکې کیږی ، نو دا ټول سوچ ددې ښځې دے او دا سوچ ئې یهودو ته وروړاندې کوی او هغوي ئې بیا عملی کوی ، نو دا خبرے د خپل کتاب آخری حصه کې لیکلی دی وائی : چه د مسلمانانو په خلاف د مغرب او د هغه د سیکولر چه کومه فکری جګړه وه نو هغه خو پوره شوه ، نو اوس هجومی جګړه پاتې شوه چه د یو بل سره لاس په لاس جنګونه کوی نو د هغې دپاره به هدف او طریقه څۀ وی ؟

**نو دا ښځه وائی** : چه مسلمانان دې په خپل کور کې د جنګ د لاندې کړے شی ددې دپاره چه دوی نورو ملکونو ته چرته رانشی ، نو ددې دپاره دې دا کار اوکړی شی چه دوی دې په خپل کور کې مصروف کړے شی . بیا دا ښځه وائی : چه جنګ دې څنګه شروع کړو نو سمدست به تۀ فکری جګړې له ښۀ زور ورکړے ، ددې دپاره چه دوی وزګار نشی او که دوی وزګار شو نو بیا دوی تاته مخه نیسی ، بیا لیکی : چه مسلمانان د هجومی او جنګی استعداد صلاحیت نه محروم کول پکار دی چه د دوی په لاسونو کې داسې کوم یو قوت پاتې نشی چه دوی په هغې باندې جنګ اوکړے شی تا سره .

**۲/ خبره دا کوی** : چه د جاهلو صوفیانو د تصوف نه د مغرب اهداف په ډیرو طریقو سره استفاده کیږی ، یعنی د جاهلو صوفیانو نه به کار اغستل پکار وی .

**۳/ خبره دا کوی** : چه د نوی نسل دپاره مغربی ډلې سره د هغوی پرورش کول پکار دی چه د مغربی طرز او انداز کې د هغوی پرورش اوشی ددې دپاره چه صبا ستا په مقابله کې د جنګ دپاره اونۀ دریږی ، نو دا درې کارونه کول ددې دپاره پکار دی ، او دا خبرے دوی پدې الفاظو سره کړی دی په خپل کتاب کې وائی : چه د بنیادګر اسلام پورے د مربوطو اشخاصو او منصبونو څخه پکار ده چه د قانونیت او صلاحیت حیثیت لری کړے شی ، دوی نه دې دغه چه په بنیادګر اسلام ( یعنی حقیقی اسلام ) دې د قانون حیثیت نه اوغورځولې شی ، بل دا خبره چه پده باندې دې اخلاقی بریدونه اوکړے شی ددې دپاره چه هغه د خپل

ځان نه په دفاع باندې مصروف اوساتلي شي ، او د مغرب اخلاقي فساد دې د ياده اوځي ، بل دا خبره : چه صوفي مذهب ته بايد ډېر اهميت ورکړے شي ( د دوی يو خپل صوفي مذهب دے چه صوفيزم ورته ويلې کيږي د برطانيې چه هغه د برطانيي اندر کار کوی او د ټولو نه غټ سړے پکې ګيلاني دے ،) ځکه چه هغه ملکونه چه د صوفيانه توجوهات لری د هغې اوسيدونکي بايد دويته په هغې کې پکار ده چه هغوی ته شوق پيدا شي چه په خپل صوفيانه تاريخ او پرهنګ باندې کلک اوساتلي شي ، او دا بيا روسته وائی : چه د اسلام صوفيانه سهم (حصې ) ته دې په تعليمی نصابونو کې ځائی ورکړے شي ددې دپاره چه خلق صوفيانه اسلام ته راووبلی ، بيا په دريم نمبر کې د صوفيانو خبره کوی او وائی : چه صوفيان په ماډرنيزم کې شمارلې شي ځکه هغوی د اسلام په باره کې يو آزاد تعبير او فکر لری ، بيا روسته وائی : پکار ده چه په افغانستان او عراق کې چه خلق ئی صوفيانه عنعنات لری ، وائی : صوفيانه تأثيرات په تعليمی نصابونو او خلقو په کلچری معيارونو کې دا تائيد کړے شي ، ځکه چه صوفي حرکت د خپلې فلسفې صوفيانه اشعارو موسيقئ لارے په بيلو بيلو دينونو تر منيځ وصل کيدو قوی پلونه لری ( نو دا ئی د هغه کتاب الفاظ دی ) بيا وائی : صوفي په خپل آزاد فکر په وجه باندې موسيقی ، ګډا دا طريقې دا جائز ګنړی ، نو د نورو دينونو سره ددې تعلقات جوړيدلې شي ، او دا طريقه په افغانستان کې چه ځنګه سقوط اوشو نو په کابل او داسې نورو علاقو کې فوراً صوفيانو خپل کارونه شروع کړل ، خو ګوره مونږه ټول نه يادوو : وائی : چه يو هغه صوفيت دے چه هغه خالص تقوی ده نو مونږ د هغې نه انکار نهٔ کوو ، مونږ د هغه صوفيت نه انکار کوو چه هغه ماډرنيزم ، موسيقی ، ګډا وغيره دغه اسلام خلقو ته وړاندې کوی نو مونږ د دغه شان صوفيانو نه انکار کوو ، او بيا ئي په دغه کتاب کې مختلف ځايونه خودلی دی ، لکه زمونږ او ستاسو پدې ملکونو کې اوګورئ چه څومره ډېر دی او حکومت هم ددې دفاع کوی ، ځکه دا په حقيقت کې د بل دپاره کار کوی.

نو دې مونږ ته دا خبره واضحه کړه چه دا خلق کله په مونږ باندې هجومی حمله اوکړی نو بيا ورته دا لاره نيول پکار دی ځکه چه دوی پدې طريقه باندې هجومی جګړه کوی .

**بله خبره دا کوی چه د تعلیم نه هم استفاده کول پکار دی**:

د اسلام خلاف تعلیم استعمالول ، نو بیا دا وائی : چه د تعلیم چه کومه وسله ده نو دا د اسلام په خلاف د یو وسیلې پکار باندې باقاعده راوستلې شی ، او ددې نه چه کوم نتائج امریکې ته په لاس باندې ورځی نو هغه دا دی : ۱/ په آسانئ سره دا ممکنه نده چه هغه خلق چه هغه بالغ وی او په دین اسلام باندې متدین وی ، او هغه خلق د جهادونو او حرکتونو سره تعلق لری نو هغه دې مونږ د خپل تأثیر د لاندې راولو ، نو وائی : چه دا ناممکنه خبره ده ، او خپلو نظریاتو ته هغوی راړوَل دا ګرانه خبره ده ، او بیا دا وائی چه دا کار په ډیره آسانئ سره بیا په نوی نسل کې کیدلې شی ، چه ډیموکریټک اسلام پیغام او مفاهیم ورته په تعلیمی نصاب او په عمومی نشریاتو کې وروړاندې کړی شی نو دا بهترینه طریقه ده ، نو وائي : چه د تعلیم د لارے نه بیا مونږ دا خلق راکنټرول کولې شو .

**۲/ خبره دوی دا کوی** : چه پدې لاره کې بنیاد پرستو د خپل تسلط د ټینګولو دپاره کار کړیدے ، او ښکاری چه هغوی دې میدان پرینښودلو ته د سختې جګړې نه بغیر تیار ندی ، نو پکار ده چه هم هغه قوت او پیمانه چه بنیاد پرست پدې میدان مسلط دی مونږ هم په هغې باندې کار اوکړو ترڅو چه دومره قوت استعمال کړو چه ددې خلقو نه دغه میدان واخلو ، نو پدې تعلیمی انداز کې ډیر زور لګول پکار وی .

نو دا کومې خبرے چه مونږ بیان کړې نو دا صرف پدې موضوع کې مونږه د هغه ښځې د رسالې لګ وضاحت اوکړو .

نو دوي وائی چه اسلام دې وي خو سیکولر اسلام چه دین او حکومت دې جدا جدا شی، چه د دین ځانته کار دے ، او د دولت او حکومت ځانته کار دے ، نو دغه دوی خپله کړه او دغه طریقه دوی زمونږ په ملکونو کې عملی کړه نو پدې وجه اسلام په قانونی لحاظ سره نن په دنیا کې ورک شوے دے ، اسلامی معاشره نن په دنیا کې وجود نهٔ لری .

اوس ددې مخ نیوے پکار دے نو یو څو خبرے کوو ، چه هغه مونږ مجاهدین خامخا اوپیژنو چه ددې مخ نیوے به مونږ څنګه کوو ؟

۱/ چه د مجاهدينو دې سياسی او فکری پرورش اوکړے شی ، نو ددې دپاره دا دورے مونږ منعقد کوو ، چه مجاهدينو کې يو سوچ پيدا شی او يوه بيداری راپيدا شی ، او چه د مغرب چه څومره پروګرامونه دی نو د هغې نه دې خبر کړے شی .

۲/ چه د فکری جګړے په اړه باندې دا خلق پوهه شی او د هغې د پوهه کولو طريقه دا ده: چه کومه د خلقو ژبه وی نو په هغه ژبه کې دې کتاب اوليکلې شی ، او بيا ورته عملی طريقه هم اوښودلې شی .

۳/ چه په مدارسو کې خو خپل نصاب پراويږی خو ورسره دا نصاب هم ورداخل شی ، يو په هغې کې سيرة النبی دے ، ځکه چه د نبی ﷺ په سيرت او د صحابه کرامو په سيرت باندې چه څوک خبر کړے شی نو هغه بيا پدې خبره باندې پوهه شی چه اسلام يو قانونی حيثيت لری او اسلام د يو قانون په حيث باندې دنيا ته راغلې دے .

٤/ په نصاب کې دې د اسلام سياسی نظام تصور ور واچولې شی ، چه اسلام يو سياسی نظام دے او اسلام په معاشره کې يو سياسی حيثيت لری .

٥/ چه د کفر چه څومره معاصر انواع وی ، يعنی ستا په زمانه کې چه د کفر څومره اقسام دی نو دهغې اقسامو تشريح کول ، لکه زمونږ په مدارسو کې دا خبره ويلې کيږی چه جهميه څوک دی ، فلاسفه څوک دی ، خو ليکن دا درته نهٔ ښائی چه جمهوريه څوک دی ، دا درته نهٔ ښائی چه سيکولرزم څه ته وائی ، دا درته نهٔ ښائی چه کمونيزم څه ته وئيلې کيږی .

٦/ د قرآن کريم په رڼړا کې خلقو ته د هغوی جوابونه ورکول او خلق په هغې باندې پوهه کول پکار دی .

۷/ چه د مغرب څومره جنايتونه دی او د مغرب چه څومره جرمونه دی نو هغه دنيا ته راښکاره کول ، او د هغې دپاره خپله اعلامی طريقه جوړول ، بيا د اعلام طريقه په يو څو قسمه ده : ۱/ يوه د اعلام طريقه دا ده : چه ته په خولې باندې بيان اوکړے ، ۲/ طريقه : چه د رسالې او د اخبار په شکل ده ، ۳/ طريقه : د ريډيو چينل لګول ، ٤/ طريقه : ويډيوګانو په طريقه باندې خلقو ته د يهودو مظالم ښکاره کول .

٨/ د جهاد سره سره د دعوت طرف ته هم رجوع کول ، چه جهاد هم کوے او دعوت ورسره هم ورکوے ، نو دا هم د مجاهدينو يوه اهمه فريضه ده ، او دا کار په مونږ کې ډير کمزورے دے ، حالانکه نبي کريم ﷺ ته الله تعالیٰ دا دواړه ذمه دارئ ورکړے وے لکه چه الله تعالیٰ قرآن کريم کې فرمائی : ﴿ فَقَٰتِلۡ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ لَا تُكَلَّفُ إِلَّا نَفۡسَكَۚ وَحَرِّضِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَۖ عَسَى ٱللَّهُ أَن يَكُفَّ بَأۡسَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ﴾ [1]

جنګ کوه او مؤمنان هم جنګ ته تيار کړه ، او چه کله دا دواړه طريقې اختيار کړے نو الله به د کافرانو جنګ بند کړی ، نو د کافرانو د جنګ بندولو دپاره دغه طريقه ده چه د کفارو مقابلې ته دعوت ورکول خلقو ته ، نو دا بله طريقه ده چه کله پدې باندې عمل اوکړے شی نو ان شاء الله بيا د مغرب دغه فکری جنګ رانيولې شو .

❊❊❊❊❊❊❊

1) [ سورة النساء : ٨٤ ] .

## 8 / موضوع: تحكيم القوانين [اوله حصه]

اوس دا موضوع هم د اکثریت پرستئ سره متعلق ده ، او دا موضوع " تحکیم القوانین " دا يوه اهمه موضوع ده ځکه چه نن صبا د جنګ ټول مدار هغه پدې موضوع باندې دے ، نو دا د تحکیم القوانین موضوع شروع کیږی ، بیا پدې موضوع کې به یو څو خبرے کوو خلاصه د هغه خبرو داده : ١/ تحکیم القوانین څۀ ته ویلې کیږی ، ٢/ تحکیم القوانین کفر دے او که ندې ، نو پدې موضوع کې به ددې نه بحث کیږی بتوفیق العزیز الملک .

خو مخکې ددې موضوع د شروع کیدلو نه مختصر بحث د تکفیر او د ایمان کول غواړو ددې دپاره چه په تحکیم القوانین کې مونږ به ټولو ځاینو کې تکفیر نۀ کوو خو په بعضې ځاینو کې به مونږ په پدې موضوع د تحکیم القوانین کې تکفیر کوو ، او چه کله په بعضې ځاینو کې مونږ تکفیر کوو نو په مونږ باندې به اعتراضات راځي او هغه اعتراض به دا وی : چه تاسو وائی چه تحکیم القوانین کفر دے نو دغه تحکیم القوانین ته ستاسو کفر وئیل دا غلطه خبره ده او دا د خوارجو مسلک دے نو په تاسو به د خوارجو فتوی راځي ؟ نو چه تاته پدغه ځائی کې خارجی وائی نو پکار داده چه ته د ایمان په مسئله کې د معتزلوؤ مسلک اوپیژنې ، د خوارجو مذهب اوپیژنې ، د مرجؤؤ او د جهمیوؤ مذهب اوپیژنې په مختصر انداز سره او د اهل السنة مذهب هم اوپیژنې .

نو د معتزلوؤ او د خوارجو د ایمان په باره کې رائی داده : چه معتزله او خوارج وائي : چه د ایمان نه اعمال اجزاء دی یعنی عمل په ایمان کې داخل شی دے ، او کله چه سړے عمل اونۀ کړی نو دا د ایمان نه خارجیږی ، یعنی یو سړے دے او هغه کبیره ګناه اوکړه نو د دوي په نیز د ایمان نه خارجیږی .

او مرجئه او جهمیه وائي : چه عمل لره هیڅ اعتبار نشته ، که لاإلٰه الا الله دې اووئیل نو ستا غاړه ازاده ده که اعمال کوے او کۀ نۀ نو تۀ نۀ کافر کیږی ، او که تۀ هر څومره بد اعمال اوکړے نو تۀ نه کافر کیږے .

او ددې په مینځ کې اهل السنة والجماعت دی ، او د دې په باره کې علامه نصیر الدین

غورغشتوی رحمة الله علیه لیکی : څلور مذهبونه او یوه ډله د اهل حدیثو دوی هم په اهل السنة کې داخل دی ، یعنی دا پنځه ډلې اهل السنة دی ، دوی وائی : اعمال په نفس ایمان کې داخل ندی البته : دا په ایمان کې شرائط دی ، خو بیا د دوی په خپل مینځ کې هم اختلافات شته ، چه دا په ایمان کې داخل دی خو داسې ندی چه په عمل نهٔ کولو سره بیا تهٔ کافر شی ، بلکه دوی داسې وائی : چه بعضی اعمال هغه مکفرات دی یعنی په بعضی اعمالو باندې سړے کافر کیږی ، نو اهل السنة والجماعت سړے په ګناه باندې نهٔ کافر کوی ، خو بعضی داسې ګناهونه دی چه په هغې باندې سړے کافر کیږی .

نو معتزله او خوارج سړے د ایمان نه په ګناه باندې اوباسی ، خو د دوی بیا په خپل مینځ کې اختلاف دے ، معتزله پکې وائی : چه سړے په ګناه کبیره باندې د ایمان نه خو اوځی خو لیکن په کفر کې نهٔ داخلیږی ، نو دا په منزله د بین المنزلتین کې شو ، یعنی دوی د اسلام او کفر په مینځ کې یوه بله لار منی حالانکه دا چرته ثابته نده .

خوارج پکې وائی : چه سړی ګناه کبیره اوکړه نو دا کافر شو ، «**من ارتکب کبیرةً فقد کفر**».

جهمیه او مرجئه وائي : چا چه یوځل دغه کلمه اوئیله نو په هیڅ هم نهٔ کافر کیږی ځکه «**من قال لاإله الا الله دخل الجنة**» ، چا چه لا إله إلا الله اوئیله نو جنت ته به داخلیږی ، نو دوی وائی : چه پس ددې کلمې نه په هیڅ څیز باندې سړے نه کافر کیږی .

او اهل السنة والجماعت وائی : چه سړے په ګناه باندې نهٔ کافر کیږی خو بعضی ګناهونه دی چه هغې ته مکفرات وائی لکه حدیث کې راځی رسول الله ﷺ فرمائي : «**ثَلَاثٌ مِنْ أَصْلِ الْإِيمَانِ الْكَفُّ عَمَّنْ قَالَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَلَا نُكَفِّرُهُ بِذَنْبٍ وَلَا نُخْرِجُهُ مِنْ الْإِسْلَامِ بِعَمَلٍ**» [1] ”یعنی درے څیزونه دی چه دا د ایمان اصل دی ، اول هغه سړی نه به لاس بندوے چه هغه لاإله الا الله اووئیله، او مونږ سړے نهٔ کافر کوو په ګناه باندې ، او مونږ سړے نهٔ اوباسو د

[1] [ رواه ابو داؤد ، رقم : ٢١٧٠ ] .

اسلام نه په يو عمل باندې " نو زمونږ عمل پدغه حديث باندې دے خو ددې سره به يوه خبره ياده ساتې چه د ګناه نه څۀ شی مراد دے ؟ نو په اکفار المحلدين کې شاه انور شاه کشميری رحمه الله وائی : چه مونږ ئی په هغه ګناه باندې نۀ کافر کوو چه کومه ګناه مکفره نۀ وی بعضې ګناهونه داسې دی چه په ګناه باندې او په عمل باندې سړے کافر کيږی او په بد عمل باندې سړے کافر کيږی ، لکه د فقه کتابونه ليکی : «**من شدَّ الزنار فقد كفر**» " چا چه زنار ( چه دا د هندوانو يوه نخه ده ) په غاړه کړو نو دۀ کفر اوکړو " اوس دا اګر چه عمل دے او په عمل باندې سړے نۀ کافر کيږی خو چونکه دا خصوصی شعار د کفارو دے نو پدې باندې سړے کافر شو ، يا دغه شان راځي : «**من سجد لصنم فقد كفر**» " چا چه سجده اوکړه بوت ته نو دا کافر دے " نو دا يو عمل دے خو دا اعتقاد ندې او په خپله خوښه سره ئی سجده اوکړه نو کافر شو ، نو په عمل سره مونږ ځوک نۀ کافر کوو خو بعضې اعمال داسی دي چه هغه نواقضو د ايمان نه دی ، نو په بعضې ځايونو کفر بالعمل راتلې شی .

مقصد زمونږ دا وو : چه يو د معتزله او خوارجو مسلک شو دوی په هره ګناه باندې سړے کافر کوی ، خو فرق دومره دے چه معتزله ئې د ايمان نه اوباسی خو نۀ ئې کافر کوی او نۀ ئې داخلوی يعنی دوی درينه څه بل شی جوړوی ، او خوارج ئی ايمان نه اوباسی او کفر کې ئې داخلوی او کافر کوی يئ ، خو په دوی باندې اکثرو علماؤ د کفر فتوی لګولے ده اګر چه بعضې ورته کافر نۀ وائی خو کوم چه د علم کلام علماء دي هغوی ئې تکفير کوی او کافر ورته وائی .

نو دوی وائی : چه چا ګناه کبيره وکړه يعنی بد عملی ئې وکړه نو کافر شو ، او مونږ وايو : چه په ګناه باندې سړے نه کافر کيږی که چا غلا وکړه يا معاذ الله چا زنا وکړه نو ايمان نه نۀ وځی او نۀ کافر کيږی ، لکه ابو زر ﵁ رسول الله ﷺ سره روان وو ، پيغمبر عليه السلام ورته اووئيل : « من قال لا إلٰه إلا الله دخل الجنة » چا چه لا إلٰه الله کلمه اووئيل نو جنت ته به ځی ، ابو زر ﵁ عرض وکړو : « و إن زنا و إن سرق » اګر که غلا کوی او يا زنا کوی ، نبی کريم ﷺ ورته وفرمائيل : « نعم ، وإن زنا و إن سرق » دا بيا عرض کوی : « و إن زنا وان

سرق » اګر که زنا کوی او اګر که غلا کوی ؟ ، پیغمبر علیه السلام ورته وفرمائیل : « و إن زنا و إن سرق على رغم أنف أبي ذر » اګر که زنا کوی او که غلا کوی که ابو ذر پدې خفه وی او که خوشحاله وی جنت ته به ځی خو سزا به خوری د هغې نه پس به ځی ( که الله تعالیٰ ورته معافی ونه کړه او سزا ئې ورکوله ) نو مونږ په ګناه باندې څوک نهٔ کافر کوو.

خو بعضې ګناهونه او اعمال داسې شته دے چه په هغې سره سړے کافر کیږی بعضې وخت کې سړے په قول باندې کافر شی ، بعضې وخت کې سړے په عمل باندې کافر شی ، نو هر وخت انکار ضروری ندے چه خامخا انکار دې وکړے شی ، لکه الله د هغې خلقو تکفیر وکړو او کافران ئې ورته اووئیل کوم خلق چه نبی کریم ﷺ سره غزوه تبوک ته روان وو او په لاره کې ئې په قرّاؤ پسې ټوقې وکړے او وې ویل :چه دې خلقو خیټې غټې دي دا جنګ نشی ګټلے نور تفصیل ئې په احادیثو کې شته ، نو الله عز وجل د دوی په باره کې اووئیل : چه دغه خلق کافران شول ، لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿وَلَقَدْ قَالُواْ كَلِمَةَ ٱلْكُفْرِ وَكَفَرُواْ بَعْدَ إِسْلَٰمِهِمْ وَهَمُّواْ بِمَا لَمْ يَنَالُواْ﴾[1]

دوی ووئیله کلمه د کفر او دوی قصد وکړو د هغې خبرے چه دوی وس نه وو نو پیغمبر علیه السلام دوی ته اووئیل : چه ولې تاسو داسې خبرے وکړے ؟ نو دوی اووئیل : چه « كنا نخوض نلعب » چه مونږ خو هسې لوبے او ټوقې کولے ګپ شپ لګولو ، دا خبره یاده ساتئ چه کله سړے ګپ شپ لګوی نو زړه متوجه نوی ، نو دوی ګپ شپ کې خبرے کوی زړه ئې نه دے متوجه زړه کې ئې ایمان دے خو بیا هم الله جل شانه ددې خلقو تکفیر کوی او کافران ورته وائی.

الله تعالیٰ فرمائی : ﴿قُلْ أَبِٱللَّهِ وَءَايَٰتِهِۦ وَرَسُولِهِۦ كُنتُمْ تَسْتَهْزِءُونَ ﴿٦٥﴾﴾[2]

ته ورته وایه : آیا تاسو په الله او د هغه په رسول او آیتونو پورے ټوقې کوئ ، بیا ورپسې

---

[1] [ سورة التوبة : ٧١ ].

[2] [ سورة التوبة : ٦٥ ].

آيت کې فرمائي : ﴿ لَا تَعْتَذِرُوا۟ قَدْ كَفَرْتُم بَعْدَ إِيمَـٰنِكُمْ ﴾ عذر مهٔ پيش کوئ تاسو کافران شوی يئ پس د ايمان ستاسو نه .

نو اوګوره په دې عمل باندې دوی کافران شول دا خو عمل وو اعتقاد خو نهٔ وو ځکه دوی په خپله وائي : « كنا نخوض ونلعب » يعنی مونږ خو ټوقې کولے او الله تعالیٰ هم ورته دا نهٔ وائي چه دوی دورغ وائي د زړه نه ئې اووئيل ، بلکه دا وائي : چه هاں لوبې او ټوقې ئې کولے خو په دې لوبو او ټوقو باندې دوی کافران شو نو په عمل سړے کافر کيږی خو دا ياد ساتې چه په بعضی عمل سړے کافر کيږی ، په هر عمل سړے نهٔ کافر کيږی .

**تنبيه** : په مسئله د تكفير کې به ډير زيات خيال ساتئ هسې نهٔ چه د تکفير ټيکداری واخلئ ، بلکه په مسئله د تکفير کې به کتابونو ته رجوع خامخا کوئ چه په کومې مسئلې سره سړے کافر کيږی او هغه به هم علماء طبقه کوي ، او چه کومو خلقو علم نهٔ وی کړے نو هغوی ته هيڅ کله هم دا اجازت نشته چه هغوئ دې د چا تکفير اوکړی ، نو مونږ خلاصه ددې دپاره بيان کړه چه روسته مسئله د تحکيم القوانين را روانه ده او په هغې کې به تکفير کيږی چه تاسو پرې صرف پوهه شئ ، او پدې خبره هم ذهن کولاؤ کړئ چه کله تا په يو مسلمان باندې فتوی د کفر اولګوله او په هغه کې د کفر ځائی نهٔ وی نو بيا کفر په تا باندې خپله راتاؤيږی ، نو په مسئله د تکفير کې ډير زيات احتياط کول پکار دی ، چه تر څو پورے تاته مسئله خه واضحه شوے نه وه نو په چا به د کفر فتوی نهٔ لګوے .

دغه شان دا يوه بله مسئله ده چه اتفاق ده په ټولو مذاهبو کې چه : « **من سب الله او النبی صلی الله عليه وسلم فقد كفر** »" چا چه کنځل اوکړل الله تعالیٰ ته يا ئې نبی کريم ﷺ ته کنځل اوکړل نو دا انسان کافر شو " نو اوس پدې ځائی کې به ددهٔ اعتقاد ته نشی کتلې چه يره دده عقيده د کنځلو وه او که هسې په ټوقو کې ئې دا کنځل اوکړل ، نو علماء کرام فرمائي : برابره خبره ده که دا کنځل دهٔ د عناد نه کړی وی يا ئې د اعتقاد نه کړی وی ، يا ئې د ګپ شپ نه کړی وی ، که په هر اعتبار سره ئې کړی وی نو دا کافر دے ، شاه انور شاه کشميری

رحمه الله عليه په اكفار الملحدين كې فرمائي : « **فان عصا بقول او فعل نص الله تعالیٰ ورسوله او اجمع المسلمون على انه لا يوجد الا من كافر او يقوم دليل على ذلک فقد كفر** » " كه يو سړى نافرماني اوكړه په يو قول سره يا په فعل سره اوكړه چه الله پدې باندې تصريح كړى وى يا پرې رسول الله ﷺ تصريح كړى وى يا مسلمانانو پدې خبره باندې اجماع كړى وى چه داسې كار به نه كوى مګر كافر سړے نو بيا دا سړے كافر دے "، او بيا په بل ځائى كې شاه انور شاه صاحب فرمائي : « **وقال ايضا : اتفقوا في بعض الافعال انها كفر مع انه يمكن فيه ان لا ينسلخ من التصديق لانها افعال الجوارح لا القلب وذلک كالهزل بلفظ كفر وان لم يعتقده وكالسجود لصنم وكقتل نبي ، والاستخفاف به ، والاستخفاف بالمصحف ، اوالكعبة .** » " علماء كرامو اتفاق كړيدے په بعضې افعالو كې چه دا كفر دے ( يعنى بعضې ګناهونه داسې شته چه هغه كفر دے ) سره ددينه چه په هغې كې دا امكان وى چه دۀ به تصديق نۀ وى پريخودې ( د الله د وحدانيت او د رسول الله ﷺ د رسالت تصديق به ئې نۀ وى پريخودے خو لكن بيا به هم دا كافر شوے وى ) ځكه چه دا به ئې په اندامونو كار كوى نۀ د زړه ( يعنى د زړۀ نه به ئې انكار نۀ وى كړے خو بيا هم دا كافر كيږى ) او دا په شان د ټوقو كولو دى په لفظ د كفر ( يعنى كلمة الكفر باندې تۀ ټوقې كوى يعنى په ټوقو كې كلمة الكفر ووائى ) اګر چه اعتقاد ئې نۀ وى ، يا بوت ته سجده اوكړے ، يا نبى قتل كړے ، يا په پيغمبر پورے ټوقې اوكړے ، يا په قرآن پورے ټوقې اوكړے ، يا په كعبې پورے ټوقې اوكړے نو پدې باندې كافر كيږے " اوس دا عمل دے خو پدې باندې سړے كافر كيږى ، ځكه داسې اعمال نۀ كوى مګر كافر سړے ئې كوى ، او هم دغه شان دا شاه انور شاه كشميرى رحمه الله په بل ځائى كې د ابو البقاء قول رانقل كوى او فرمائى : « **والكفر قد يحصل بالقول تارةً وبالفعل اخرى ، والقول الموجب للكفر انكار مجمع عليه فيه نفس ولا فرق بين ان يسد عن اعتقاد او عناد او استهزاء ، والفعل الموجب للكفر الذى يصدر عن تعمد** » " كله كله كفر په قول سره راځي او كله په فعل سره راځي ، او قول چه د هغې نه كفر راځي نو هغه چه انكار وكړى د يو اجماعى شى نه ، او بيا

فرق نشته پديکي چه دې دا خبره د عناد نه کړيده او که د اعتقاد نه ئې کړيده او که د ټوقو نه ئې کړيده ، او په عمل سره چه کافر کيږی نو هغه ده چه په قصد سره يو سړے يو کار اوکړی نو بيا پدې باندې سړے کافر کيږی "، نو ددې نه هم معلومه شوه چه کله يو سړے فعل سره هم کافر کيږی ، او دغه شان انکار شو په قول باندې لکه امام محمد رحمه الله فرمائی : « **فمن انكر شيئاً من شعائر الاسلام فقد ابطل قول لااله الا الله** » " چا چه د يو شی د اسلام د شريعتونو نه انکار اوکړو نو دهٔ قول د لا إله الا الله مات کړو " دغه شان شاه انور شاه رحمه الله په بل ځائی کې فرمائی : « **والحاصل ان من تكلم بكلمة الكفر هازلا او لاعباً كفر عند الكل ولا اعتبار باعتقاده** » " وائي : حاصل او خلاصه د کلام داده : چه يو سړی د کفر په کلمې باندې خبره اوکړه په ټوقو سره يا په ګپ شپ سره نو دا په نيز د ټولو علماؤ سره کافر دے او د دهٔ اعتقاد لره هيڅ اعتبار نشته "، دغه شان شاه صاحب فرمائی : « **رجل كفر بلسانه طائعاً وقلبه على الايمان يكون كافراً ولايكون عند الله مؤمناً** » " يو سړے په ژبه باندې کفر اوکړی په خوشحالئ سره نه په صورت د اکراه کې او په زړهٔ کې مطمئن وی په ايمان باندې نو دا سړے کافر دے او د الله په نيز باندې مؤمن ندے " دا خبره په قاضی خان کې هم شته ، هنديه ، جامع الفصولين ، دې کتابونو کې هم دا خبره راغلې ده او شاه انور شاه صاحب د ددې کتابونو نه رانقل کړيده ، نو تاسو وليدل چه بعضی علماء کرامو هغې طرف ته اشاره کړی وه چه بعضی افعال او اعمال داسې شته دے چه په هغې باندې سړے کافر کيږی ، نو مونږ به هم په تحکيم القوانين کې داسې کار کوو چه مونږ به د هغې اعتقاد ته نهٔ ګورو او مونږ به په دوی باندې د کفر فتوی ورکوو چه دا بادشاهان کافران دی ځکه چه دوی د الله د قانون په ځائی باندې بل قانون جوړ کړيدے نو بيا هلته په مونږ باندې دا اعتراض راځي چه دا خو عمل دے او آيا په عمل باندې هم يو سړے کافر کيږی نو بيا به دغه خبره مونږ ځان ته راوړاندې کوو ، خو بيا به مونږ په هغې کې تخصيصات کوو چه په کوم باندې کافر کيږی او په کوم باندې نهٔ کافر کيږی .

**بله مسئله د عذر الجهل ده** : چه كله يو سړى ته معلومات نۀ وى نو آيا په هر ځائى کې به چه تاته معلومات نوى نو ته به څه وائې چه بس دا نۀ كافر كيږى ؟ لكه ډير خلق د بعضى افواجو او عسكرو په باره کې وائى چه دوى ته خو پته نشته نو آيا چه دا پته نشته نو پدې باندې به دې مسلمان پاتې شى او كه دا به كافر كيږى ، نو دا مسئله هم بطور مقدمه لږه واضحه كول پكار دى چه دا مونږ ته مخكې نه معلومى وى .

نو دا مسئله د عذر الجهل ده او پديكې خلق دليل پيش كوى چه : په حديث کې راځى چه په بنى اسرائيلو کې يو سړے وو چه هغه مړ كيدلو او خپلو بچو ته ئى وصيت اوكړو چه زۀ مړ شم نو ما به اوسوزوئ او چه كومه ايره وى نو هغه به په هواء کې والوزوئ ځكه كه چرته الله تعالىٰ په مابانديې قادر شو نو ماله به ډيره سخته سزا راكړى ځكه چه زۀ ډير ګناهګار يمه ، نو دې سړى سره ئى دغه شان بچو اكړو خو بيا هم الله تعالىٰ واپس راجمع كړو او تپوس ئى ترينه اوكړو چه تا دا كار دې ولې اوكړو نو دۀ ورته اووئيل : چه يا الله ستا د يرے نه مې دا كار اوكړو نو الله تعالىٰ ورته بخنه اوكړه ، نو خلق ددې حديث نه دليل نيسى چه دې سړى دا كار اوكړو د وجې د جهل نه ځكه دۀ اووئيل : كه چرته زۀ خاورے ايرے شومه نو بيا به الله په ما باندې قادر نۀ وى چه ما راجمع كړى نو د الله د قدرت نه ئى انكار اوكړو ځكه چه پته ورته نۀ وه ، او بيا هم ورته الله تعالىٰ مغفرت او بخنه اوكړه ، نو تاته به دا حديث په دليل کې پيش كړى .

**جواب** : يوه خبره خو داده : چه دا تا چه كومه خبره اوكړه چه پدې باندې دا نۀ كافر كيږى، نو دا خبره ابن جوزى صاحب رد كړيده ، او هغه فرمائى : « **من جحد صفة القدرة كفر اتفاقاً** » " ده د صفت د قدرته نه انكار اكړو نو دا اتفاقا كفر دے " ، او بيا شاه صاحب وائى چه دا: « **من باب الخوف من الله عز وجل** » " چه دۀ چه كوم كار كړيدے نو دا ئى د يرے د الله تعالىٰ نه كړيدے " ، او دا دۀ چه كوم وصيت كړيدے چه دا د دوى په شريعت کې جائز وو چه سړے دې اوسوزولې شى نو دا د دۀ د ګناهونو كفاره وه ، لكه د بنى اسرائيلو کې د ګناهونو د

كفارے يوه بله طريقه هم وه چه يو بل قتل كړئ لكه قرآن كې ذكر شته : « **فاقتلوا انفسكم**» " چه يو بل قتل كړئ " نو دا ئى د ګناهونو د كفارې دپاره ځان سوزولې وو ، او هر چه دده دا خبره شوه چه « كه چرته الله په ما باندې قادره شو » نو دا خبره د دهٔ د ژوند په باره كې ده يعنى كه چرته الله په ماباندې په ژوند كې قادره شو نو مالره به عذاب راكړى نو لهذا تاسو ما اوسوزوئ چه زما توبه قبوله شى .

يا ددې مطلب دادے : چه صحيح ده چه جهل معتبر دے خو هغه د الله تعالىٰ په خاص صفاتو كې معتبر دے ، او د الله په صفاتو باندې عوام خلق نهٔ پوهيږى بس امى سړے دې الله واحد منى او چه كله دا ناپوهه وى نو بيا ورته الله بخنه كوى ، باقى د شريعت مسئلې شوے نو په هغې كې دا معافى نشته دے ، نو هغه بيله مسئله ده او دا بيله مسئله ده نو پدې باندې دليل نيول شاه صاحب وائى چه دا غلطه ده ، او پدې مسئله كې مونږ سره دلائل شته دے چه سړے په ځان پوهه نهٔ وى او دا كافر شى ، هم دغه اكفار الملحدين كې په صفحه نمبر ۲۹ باندې شاه انور شاه صاحب فرمائى: « **ان من المسلمين من يخرج من غير ان يقصد الخروج منه ، ومن غير ان يختار ديناً على دين الاسلام** » " يقينا بعضى د مسلمانانو نه داسې خلق شته چه هغه د اسلام نه خارج شى او د هغه دا اراده نهٔ وى چه زهٔ دې د اسلام نه خارج شم ، او د هغه دا اراده نهٔ وى چه زهٔ دې بغير د اسلام نه بل دين مختاره كړم خو هغه كافر شوے وى " ، او الله تعالىٰ د هغه خلقو په باره كې فرمائى چه هغوى به په ځان نوى پوهه او كافران شوى به وى : ﴿ ٱلَّذِينَ ضَلَّ سَعْيُهُمْ فِي ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا وَهُمْ يَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ يُحْسِنُونَ صُنْعًا ۝١٠٤ ﴾ [1] ، نو دلته الله تعالىٰ دا خبره واضحه كړه چه دهٔ ته دا پته نهٔ وى چه زه كافر شوے يمه او هغه كافر شوے وى، دغه شان الله تعالىٰ په بل ځائى كې فرمائي : ﴿ وَلَبِئْسَ مَا شَرَوْا۟ بِهِۦٓ أَنفُسَهُمْ ۚ لَوْ

---

[1] [ سورة الكهف : ١٠٤ ] .

كَانُواْ يَعۡلَمُونَ ﴾ [1] " او ډیر بد دے هغه شی چه دوی په هغې باندې خپل نفسونه خرڅ کړیدی کاش چه دوی پوهیدلې " نو دوی نۀ پوهیږی او بیا هم الله کافران کړل ، بل ځائی کې بیا فرمائي : ﴿ إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا ٱلظَّنَّ وَإِنۡ هُمۡ إِلَّا يَخۡرُصُونَ ۝١١٦ ﴾[2] " دوی تابعداری نۀ کوی مګر د ګمان ( چه مونږ په حقه باندې یو او دوی په حق باندې نۀ وی ) او ندې دوی مګر اټکل کونکی دی " نو دلته اوګوره چه پته ورته نۀ وی او بیا هم کافر شوی وی ، دغه شان الله فرمائي : ﴿ وَلَوۡ أَنَّهُمۡ ءَامَنُواْ وَٱتَّقَوۡاْ لَمَثُوبَةٞ مِّنۡ عِندِ ٱللَّهِ خَيۡرٞۚ لَّوۡ كَانُواْ يَعۡلَمُونَ ۝١٠٣ ﴾ [3] " که چرته دوی ایمان راوړے وے او تقوی ئې کړی وے نو الله به ورته ثوابونه ورکړے وې که چرته دوی پوهیدلې " نو دلته هم په ناپوه خلقو باندې کفر راغلې ، نو په ناپوهۍ کې هم په سړی باندې کفر راتلې شی ، نو اوګوره که دوی خلقو ته دا پوهه نشته چه دا جمهوریت کفر دے نو دا خبره صحیح نده ځکه کله به سړی ته پته نۀ وی خو کافر به وی ، په خلاصة الفتاوی کې راغلی دی چه علامه شاه انور شاه صاحب فرمائی : « **و منها انه اتى بلفظة الكفر وهو لم يعلم انها كفر الا انه اتى بها باختيار يكفر عند عامة العلماء خلافا للبعض ولا يعذر بالجهل** » " او بعضی د هغه خبرو نه چه یو سړی د کفر لفظ اداء کړو او دا نۀ پوهیږی چه دا خو کفر دے مګر دۀ په خپل اختیار سره دا کار اوکړو ( یعنی اکراه پرې نۀ وه شوے ) نو دا په نیز د عامو علماؤ باندې کافر دے ، لکن د بعضی علماؤ پکې اختلاف شته خو دا وائي چه جهل لره هیڅ عذر نشته " نو ددې نه هم معلومه شوه ، او په مجمع الانهٰر کې وائی : « **ولكن فى الدرر وان لم يعتقد او لم يعلم انها لفظة الكفر ولكن اتا بها عن اختيار فقد كفر عند عامة العلماء ولا يعذر بالجهل** » " چه په درر کې راغلی دی : یو

---

[1] [ سورة البقرة : ١٠٢ ] .

[2] [ سورة الأنعام : ١١٦ ] .

[3] [ سورة البقرة : ١٠٣ ] .

سړی ته پته نشته او دا عقیده ئی هم نده او نهٔ پدې باندې پوهیږی چه دا خبره د کفر ده ( او د کفر کار اوکړی یا د کفر خبره اوکړی او پته ورته نشته چه دا کفر دے ) لکن دا په اختیار سره دا کار اوکړی نو دا د عامو علماؤ په نیز باندې کافر دے او جهل لره ئی هیڅ اعتبار نشته یعنی جهل لره ئی هیڅ قسمه عذر نهٔ منو " ، او بیا ورپسې وائی : « **فمن آمن به فقد دان بدين الله ومن انكره فقد كفر وان لم يقصد الكفر** » " یعنی د ضروریاتو د دین نه چه کومې مسئلې دی او په هغې باندې دهٔ ایمان راوړو نو دا د الله په دین باندې متدین شو او چا چه ترې انکار اوکړو نو دا په کفر کې لاړو اګر که ده ته پته نهٔ وی چه زهٔ کافر شوے یم " نو دا هغه دویمه مسئله ده چه یو سړی ته دا پته نشته چه زهٔ پدې خبره باندې کافر کیږمه او هغه خبره اوکړی ، یا یو د کفر کار وی او هغه سړی ته دا پته نه وی چه زهٔ پدې باندې کافر کیږمه او هغه کار اوکړی نو دا سړے پدې کافر کیږی او که نهٔ کافر کیږی ؟ نو ددې ټولو خبرو خلاصه چه د قرآن او د حدیث او د علماؤ د اقوالو نه معلومه شوه چه دا سړے کافر کیږی او ددہ جهل لره هیڅ اعتبار نشته البته هغه صفات د الله تعالیٰ کې نهٔ کافر کیږی نو هغه ځانته یوه بیله مسئله ده .

**سوال** : یوه مسئله ده : چه په یو سړی کې 99 علامات د کفر شی او یوه علامه پکې د اسلام شی نو دا سړے به مونږ نهٔ کافر کوو او پدې باندې به د اسلام فتوی ورکوو ، نو پدې خلقو کې اګر که 99 علامې د کفر پکې موجودی دی خو یوه علامه د اسلام خو پکې شته نو بیا پرے تاسو د کفر فتوی ولې لګوئ ؟

**جواب** : مونږ وایو چه مسئله دې غلطه اوریدلې ده ددې دا مطلب ندې چه 99 علامې دې پکې د کفر وی او یوه علامه دې پکې د اسلام وی دا مطلب ندې ، که بالفرض دا مطلب شی نو بیا زهٔ ستا نه دا تپوس کوم : چه یو سړی د قرآن کریم د یو آیت نه انکار اوکړی نو دا کافر کیږی او که نهٔ ؟ کافر کیږي کنه نو خبره دا ده چه دلته دا علامې ندی مراد بلکه دا خبره خلقو التہ کړی ده ، او په سعودی کې یو بل شیخ وو چه هغه دا بل شان التہ کړے د

ځان د مفادو دپاره هغه ليکلي دي : چه په يو سړی باندې 99 علماؤ د کفر فتوے ورکړے او يو عالم پرې د اسلام فتوی ورکړه نو مونږ به د هغه يو عالم خبره منو ، نو دا خبره هم غلطه ده ، بلکه خبره په حقيقت کې داسې ده : چه يو سړی يوه خبره اوکړه او يا ئې يو کار اوکړو او په هغه خبره يا کار کې 99 احتمالات د کفر دی او يو احتمال پکې د اسلام دے نو دا سړے بيا هم مونږ نۀ کافر کوو ، نو دا د احتمالاتو خبره ده د علاماتو نده ، او د هغې خبرے الفاظ داسې دی : « **لايکفر من کان فيه تسع وتسعون احتمالات من الکفر والواحد من الايمان فعلى المفتى ان لا يميل الى الکفر بل يميل الى الاسلام** » ، نو اوس که د يو سړی نه يو کار اوشو نو بيا صحيح ده او که يو سړی صراحتاً يو فعل کوو د کفر والا نو بيا کافر کيږی ، او بيا شاه انور شاه صاحب وائي : « **ان المراد اذا لم يصرح بقول او فعل يوجب الکفر البتة** » " دا په هغه وخت کې دی چه دې په کفر سره تصريح اونۀ کړی ، او که دۀ په فعل د کفر سره تصريح اوکړه نو بيا دا کافر کيږی " .

**اعتراض** : بعضې خلق دا سوال کوی : چه اسامه بن زيد ﷺ په يو کافر پسې توره را اوباسله او قتل کولو ئې په جنګ کې نو هغه کافر لاإله الا الله محمد رسول الله اووئيل نو بيا هم اسامه ﷺ هغه سړے قتل کړو ، بيا نبی کريم ﷺ ته راغلې او خبر ئې ورته ورکړو چه ما خو دغه شان کار اوکړو ، نبی کريم ﷺ ورته اووئيل : چه هغه کلمه اووئيله او بيا هم تا قتل کړو ؟ نو هغه اووئيل : چه يا رسول الله ﷺ هغه دا کلمه د يرے د وجې نه اووئيله ، نو نبی کريم ﷺ ورته اووئيل : « **فهل لا شققت قلبه** » " ولی دې نه څيرے کولو د هغه زړۀ " چه دا کلمه ئې د يرے د وجې نه ويلې وه او که نۀ ، او بل ځائې کې رسول الله ﷺ فرمائي : چه زۀ ددې دپاره نۀ يم راغلې چه د خلقو زړونه وڅيرم مونږ به د خلقو ظاهری اعمالو ته ګورو ، نو دوی وائي : چه دا اوګوره ايمان په زړه کې وو ، نو چا چه لاإله الا الله اووئيل نو بس دا مسلمان دے ، نو کيدے شي چه ددې خلقو په زړونو کې ايمان وی او تاسو پرې د کفر فتوے لګوئ دا ولې ؟

**جواب** : او دا سوال يو سعودى شيخ کړے دے ، او ددې په جواب کې مصطفیٰ حلیم ابو بصير بيا جواب ليکلې دے او هغه ورته په جواب کې ليکلی دی چه دا سوال په حقيقت کې په تا باندې راځي ، چه هلته هغه کلمه اووئيله او بيا هم هغه قتل کړو نو نبی کريم ﷺ ورته اووئيل : چه تا ورلره ولې زړۀ نه څيرولو يعنی چه دا کلمه ئې اووئيله نو دا ورلره کافی وه ، يعنی د زړه څيرول خو نشته دے ، او دلته چه کلمه د کفر وائی نو ته ماته وائی چه تا ورلره زړه څيرلے څه تا ئې عقيده کتلے ده ؟ خو چه کلمه د کفر ئې اووئيله نو بس کافر شو کنه اوس به زه زړه څيرمه نو دا سوال په حقيقت کې په دوی باندې راځی هلته هغه د اسلام کلمه اووئيله نو هغه ته د زړه څيرلو اجازت نشته دے دغه شان دلته چه د کفر کلمه اووائی نو د زړه څيرلو ته ئې ضرورت نشته بس کافر شو کنه ځکه کلمه د کفر ئې اووئيله ، نو چه کلمه د کفر ئی اووئيله نو بس کافر شو د زړۀ څيرلو ته ئی ضرورت نشته تاسو پدې جواب کې لګ سوچ وکړئ خبره به درته واضحه شی .

**بله خبره** : چه په بعضو علاقو کې دا خبره ده : چه يره دا خلق خو اهل قبله دی او اهل قبله خو په منتقى کې راغلی دی د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه نه نقل دی : « **وفی المنتقی عن ابی حنيفة رحمه الله تعالیٰ انه لم يكفر احدا من اهل القبله** » " په منتقى کې د امام ابو حنيفه رحمه الله نه نقل دی چه ده ندې کافر کړے يو کس هم د اهل قبله نه " ؟

**جواب** : شاه انور شاه کشميری رحمه الله په " اکفار الملحدين " کې يو غټ عنوان ايخودې دے « **من هم اهل القبله** » " د اهل القبله نه مراد څوک دی " آيا د اهل القبله نه مراد دادی چه يو سړی مونځ کوی قبلې ته ، آيا د اهل القبله نه مراد دادی چه يو سړے قبلې ته مخ کوی ؟ نو هغه وائی : چه د اهل القبله نه دا سړے مراد ندې ، هغه وائی : « **اعلم ان المراد بأهل القبلة الذين اتفقوا ما هو من ضروريات الدين كحدوث العالم وحشر الاجساد ، وما اشبه ذلک من مسائل المهمات** » **ترجمه** : " پوهه شه چه مراد په اهل قبلې سره هغه کسان دی چه دوی اتفاق کړے دے په ضروريات د دين سره لکه حدوث العالم شو ، حشر الاجساد شو ، علم د

الله په کلیاتو او جزیاتو شو ، او دغه شان چه مشابه دی ددې سره د مهمو مسائل د دین نه او هغه منی " نو دیته اهل قبله وائی په اصطلاح د علماؤ کې ، نو دوی خو زمونږ سره دا مسائل نهٔ منی نو بیا څنګه ورته تهٔ اهل قبله وائې ؟ او بیا روسته فرمائي : « **وان المراد بعدم تكفير احد من اهل القبلة عند اهل السنة انه لا يكفر مالم يوجد شيء من امارة الكفر فلا يفيد شيء من موجباته** » " مراد په عدم کفر د یو کس د اهل قبله ؤ نه په نیز د اهل السنة باندې دا دے چه نهٔ کافر کوی یو کس چه نهٔ وی موندلې شوے په هغې کې علامو د کفر نه ، او که علامې د کفر پکې ښکاره شوے نو بیا به ئې کافر کوو ، نو بیا هیڅ قسمه فائده نهٔ ورکوی دهٔ لره چه کله د موجباتو د کفر نه یو شی موجود شو " .

او علامه فرهاری رحمه الله په نبراس کې فرمائی : « **اهل القبلة من يصدق بضروريات الدين او الامور التى علمت ثبوت فى الشرع واشتهر** » هغه مسائل چه په شرع کې مشهوری وی او ښکاره وي نو دغه ټولے مسئلے چه منی نو هغه ته اهل قبله وائی ، بیا علامه فرهاری رحمه الله ورپسې روسته فرمائی: چه مونږه اهل قبله کافر کوو چه کله پده کې علامات د کفر راشی ، نو دا تا اوپیژندلو چه اهل قبله چاته وائی ، خو دا خبره یاده ساتئ چه زمونږ مقصد به دا نوی چه مونږ دې د خلقو تکفیر اوکړو ، بلکه زمونږ مقصد به دا وی چه مونږ خلقو ته مسئله ښکاره کړو چه دا کفر دے او دا اسلام دے ، علامه بنوری رحمه الله فرمائی : چه علماؤ ته پکار دی چه تکفیر مسئله اوکړی ځکه چه تکفیر د مسائلو د دین نه یوه مسئله ده چه خلقو ته دا خبره ښکاره شی چه دا سړے په کفر کې دے او دا سړے په اسلام کې دے ، ددې دپاره چه په خلقو باندې خلط ملط رانشی ، چه اسلام په کفر کې ورداخل کړی او کفر په اسلام کې ورداخل کړی نو خلقو ته به بیا پته نهٔ لګیږی ، نو د بعضی خلقو تکفیر به کوے چه خلقو ته معلومات اوشی ، او خبره ورته صحیح ښکاره شی ، او د دین د ګډ وډیدلو یوه وجه دا هم ده ، نو ددې خبرے به خیال کول ډیر ضروری وی .

دارنګه علماؤ تکفير مبهم او مطلق هم کړيدے او تکفير معين ئې هم کړيدے ، تکفير مطلق دا دے : چه هغه مسئله بيان کړه چه دا کار څوک کوی نو دا انسان به کافر وی ، او تکفير معين به په هغه ځائی کې کوے چه ته پوهيږے چه اوس دا سړے فتنه خوروی نو بيا د هغه متعلق ووايه چه دده نظريه د کفر ده او فلاني پدې نظريه باندې دے نو فلاني هم کافر دے .

البته احتياط به ډير کوے داسې نه چه مونږه او تاسو بيا هر چاته کافر وايو نۀ نۀ داسې به نۀ کوو ځکه تکفير مسئله ډيره مشکله مسئله ده او چه کومو خلقو تکفير په کتابونو کې شته دے نو مونږه به هغه راخلو او ښکاره کوو به ئې چه مسئله واضحه شي لکه کفر د شيعه ګانو ، قاديانانو ، اغاخانيانو دارنګه نور چه خلقو ته ښکاره شی او ځان ترې وساتي .

## اوس به خپلې مسئلې ته راځو ، چه هغه د تحکيم القوانين مسئله ده :

**پديکې اوله قاعده دا ده** : چه څوک خپل ملعون او وضعی قانون يعنی په خپله جوړ کړے قانون د الله د قانون په ځائی باندې ايږدی ، هغه قانون چه الله جل جلاله پيغمبر عليه السلام ته په واسطې د جبرائيل عليه السلام باندې راليږلې وو نو د هغه قانون په ځائی باندې ئې ايږدی نو دا سړے کافر دے ، دغه يوه قاعده شوه .

روستو به دغه مسئله راځی چه يو سړے فيصله اوکړی د غير الله په قانون باندې نو داسې مطلقًا ئې مونږه نۀ کافر کوو خو چه د الله د قانون په ځائی باندې خپل قانون کيدی او د الله تعالىٰ د قانون چه کوم مقام دے هغه ته هم هغه مقام او مرتبه ورکړی نو بيا دغه سړے کافر کيږی نو دغه مونږه ځان سره يوه قاعده کيخوده .

**بيا دلته دوه مسئلې دی** : يوه مسئله ده د تحکيم الحکمين ، او يوه ده د تحکيم القوانين مسئله ، نو تحکيم الحکمين مسئله څنګه مسئله ده ، او دا څنګه مينځ ته راغله ، نو د حضرت علی ﷺ په دور کې د صحابه کرامو په خپل مينځ کې څۀ اختلافات راغلی وو ، ( خو مونږ به

په دغه اختلافاتو کې د ځان نه خبرے نۀ کوو ) د علی ﷺ د معاويه ﷺ سره اختلافات راغلی وو نو ددغه جنګ فيصلې دپاره د علی ﷺ او د معاويه ﷺ په مينځ کې کسان کينول ، يو پکې ابو موسی اشعری ﷺ او يو بل صحابی غالباً چه عمرو بن العاص ﷺ وو نو دا دوه کسان ئې حکمين جوړ کړل ، او دوی ته ئې صلح حواله کړه ، او دا ئې ورته اووئيل : چه تاسو کومه فيصله اوکړه نو هغه به مونږ ته منظوره وی ، نو په دې ځائې کې دې ته مسئله د صلحې وائی او دا چه په کومه طريقې باندې کيږی نو هغه کيدلې شی ، نو پدې کې يوه ډله راپاڅيدله او ددې ډلې نوم وو خوارج ، دې خوارجو اووئيل : چه حضرت علی ﷺ هم کافر دے ، او حضرت معاويه ﷺ هم کافر دے ( والعياذ بالله ) ، نو پدې دواړو باندې ئې د کفر فتوی اولګوله ، او دا د کفر فتوی ئې پدې باندې ددې وجه نه ولګوله چه دوی به دا آيات ويلې : ﴿ قُلْ إِنِّي عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّي وَكَذَّبْتُم بِهِۦ ۚ مَا عِندِي مَا تَسْتَعْجِلُونَ بِهِۦٓ ۚ إِنِ ٱلْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ ۖ يَقُصُّ ٱلْحَقَّ ۖ وَهُوَ خَيْرُ ٱلْفَٰصِلِينَ ﴿٥٧﴾ ﴾[1] او ددې نه دوی غلط استدلال کولو نو علی ﷺ به په مسجد کې خطبه ويله نو يو کس به پکې پاڅيدلو چه اوګوره کنه دا د الله قرآن دے « ان الحكم الا لله » يعنی فيصله د الله دپاره ده او چه د الله نه سوا بل چاله فيصله ورکړه نو هغه کافر دے ، نو دا د خوارجو فرقه وه ، نو دوی په يوه معمولی خبره باندې تکفير شروع کړو ، حالنکه دا مسئله د صلح مسئله ده لکه قرآن کې چه کله د صلح مسئله راشی نو الله فرمائی : ﴿ فَٱبْعَثُواْ حَكَمًا مِّنْ أَهْلِهِۦ وَحَكَمًا مِّنْ أَهْلِهَآ إِن يُرِيدَآ إِصْلَٰحًا يُوَفِّقِ ٱللَّهُ بَيْنَهُمَآ ﴾[2] " يعنی يو فيصل د ښځې د طرف نه شی او بل فيصل به د سړی د طرف نه شی نو دوی په خپل مينځ کې صلح جوړه کړی ... " نو د صلح په مسئله کې هيڅ قسمه اعتراض اسلام نه کوی چه په هره يوه طريقې سره صلح راولی ، نو الله وائی : چه د مسلمانانو

---

1) [ سورة الأنعام : ٥٧ ] .

2) [ سورة النساء : ٣٥ ] .

په مينځ کې صلح راولئ او صلح کې خير پروت دے ، نو دا د قرآن فيصله ده او د قرآن د فيصلې مطابق حضرت علی ﷛ او حضرت معاويه ﷛ هغه دوه صحابه ؤ لره اختيار ورکړو ، ليکن خوارجو ددې نه مسئله د تحکيم الحکمين را اوباسله او ديته ئې کفر اووئيلو ، نو دا مسئله د هغه وخت نه راشروع شوه او دوي پکې تکفير شروع کړو چه څوک هم د الله د قانون نه بغير په بله خبره باندې فيصله اوکړی نو دا به کافر وی ، نو دا قسمه آيتونه په داسې ځاينو باندې چسپانوی ( تطبيقوي ) .

خو مونږ دا خبره ورسره نۀ منو ، او نۀ پدې خبره باندې مونږ ورسره قول کوو ، نو پدې ځائې کې مونږ د خوارجو نه خپله بيزاری ظاهره کړه .

او پدې مسئله کې مونږه وايو : که چرته يو سړے راپاڅي او هغه د الله تعالیٰ د قانون نه په بل قانون باندې فيصله اوکړی نو مونږ وايو چه يو وخت ئې اوکړی بل وخت ئې اوکړی نو بيا ئې هم نۀ کافر کوو ، او خوارج وائی : من حكم بغير الله فقد كفر » چه يوه فيصله ئې هم د الله دقانون بغير اوکړه نو دا سړے کافر دے ، او مونږ وايو چه نۀ دا سړے ندې کافر .

نو مونږ د خپل تکفير مدار خايو او بيا به پکې تفصيل کوو بفضل الله .

نو د خپل تکفير مدار دا خايو چه مونږ سړے کافر کوو په هغه وخت کې چه دا د الله د قوانينو نه انکار اوکړی ، چه داسې ووائی : چه نۀ منم دا قانون ، يا د الله د قانون نه بغير په بل قانون باندې فيصله حلاله اوګڼړی ، يا د الله قانون ته سپک اوګوری ، يا د الله تعالیٰ قانون په مقابله کې عمومی قانون جوړ کړی ، نو پدې صورتونو کې بيا سړے مونږ کافر کوو ، او که يو سړی په يو وخت کې فيصله اوکړه نۀ ئې اراده د استحلال وه ( چه دا جائز کار دے ګناه ئې ګڼړو ) نۀ ئې اراده د استهزاء وه ، او نۀ ئې اراده د انکار وه ، او نۀ ئې اراده د عمومی قانون وه د الله د قانون په مقابله کې نو پدې صورت کې هم مونږ نۀ کافر کوو ، البته د ګناه کار دے ، نو پدې ترتيب کې به دا مسئله ان شاء الله واضحه کوو ، بفضل الله وبمشيئته .

اوس راشه : چه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ فَإِن تَنَٰزَعۡتُمۡ فِي شَيۡءٖ فَرُدُّوهُ إِلَى ٱللَّهِ وَٱلرَّسُولِ إِن كُنتُمۡ

تُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِۚ ذَٰلِكَ خَيۡرٞ وَأَحۡسَنُ تَأۡوِيلًا ﴿٥٩﴾ ﴾[1] ، نو « فى شيء » دلته ئې "شيء" ويلې دے او نکره ئې راوړے ده ، او علماء کرام فرمائي : چه په صله د شرط کې ئې راوړے ده ، نو څنګه چه نکره په صله د نفی کې د عموم فائده کوی نو دغه شان په صله د شرط کې هم د عموم فائده کوی ، که ستاسو په يو څيز کې اختلاف راغلې نو شيء عامه معنی لری، نو شيء ورکوټې څيز ته هم وائی ، او د ټولو نه غټ څيز ته هم وائی ، نو د ټولو نه غټ ذات الله جل جلاله دے او په الله تعالیٰ باندې هم د شيء اطلاق کيږی ، لکه په قرآن کريم کې په ډيرو ځايونو کې داسې راغلی دی لکه : ﴿ قُلۡ أَيُّ شَيۡءٍ أَكۡبَرُ شَهَٰدَةٗۖ قُلِ ٱللَّهُ ﴾ [2] "کوم شيء لوی دے په ګواهئ کې په اعتبار د ذات سره ، نو په جواب کې ورته ووايه : چه الله لوئ ذات دے " نو د شی ء اطلاق ئې په الله باندې هم اوشو ، او د شی نه مراد موجود فی الخارج نو دلته هم د « فى شىء » لفظ راوړو چه که چرته ستاسو په يو شی کې اختلاف راغلو ، که هغه د حکومت په مينځ کې اختلاف راشی ، او که په يوه روپئ کې هم اختلاف د دوه کسانو راغلې نو دا هم په شی کې داخل دی ، نو ددې مطلب دا شو : که چرته ستاسو اختلاف راغې په هر يو شيء کې د ورکوټی نه په وړوکی شيء کې او د غټ نه په غټ شيء کې ، او که په هر ځائی کې وی ، او که په هره طريقه کې وی ، نو د هغې فيصله به په چا کوی ؟ نو « **فردوه الى الله والرسول** » نو هغه الله او رسول ته ئې رد کړئ ، چه د الله او د رسول نه پديکې فيصله را واخلئ چه د الله پدې شيء کې څه فيصله ده ، بيا د الله او رسول نه مراد دا دے : علماء کرام فرمائي : « **الرد الى الله هو الرد الى كتاب الله ، والرد الى الرسول هو الرد الى سنته** » "او رد کول الله ته دا رد دے د الله کتاب ته ، او رد کول رسول ته دا رد کول دی سنت د رسول الله ته " يعنی د الله کتاب ته مسئله يوسئ او د الله رسول سنتو ته مسئله يوسئ ، او بيا فرمائي:

---

1) [ سورة النساء : ٥٩ ] .

2) [ سورة الأنعام : ١٩ ] .

« **ذلک خیر** » " دا بهتر کار دے " نو دا فیصله د الله والا بهتره ده ، خو الله تعالیٰ تاته یو شرط بیانوی چه تهٔ به دا فیصله الله تعالیٰ ته وړے که چرته ستا په الله او رسول باندې ایمان وی ، او تهٔ به ئې الله ته نهٔ وړې که چرته ستا په الله او په رسول باندې ایمان نهٔ وی ، « **ذلک خیر واحسن تأویلا** » " دا ښهٔ دی په اعتبار د تأویل او په اعتبار د بیان او تفصیل سره " نو دا بهتری به دې کتاب لره ورکړی ، نو که تا دا بهتری بل قانون لره ورکړه نو بیا هم کافر کیږے ، او احسن تأویل ، یعنی ښهٔ مطابقت لری د معاشرے سره او ښهٔ موافق دے د معاشرے سره ، او که تا دا خبره اوکړه چه دا قرآن ددې معاشرے سره موافق ندې او چه زهٔ ورسره کوم نظام جوړوم دا موافق دے نو بیا هم کافر کیږی ، دارنګه الله جل جلاله په بل ځائی کې فرمائی :

﴿ أَفَحُكْمَ ٱلْجَٰهِلِيَّةِ يَبْغُونَ ۚ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ ٱللَّهِ حُكْمًا لِّقَوْمٍ يُوقِنُونَ ۝٥٠ ﴾ [1] ، نو الله پدې آیتونو کې د الله د قانون نه بغیر بل قانون ته قانون د جاهلیت اووئیله ، نو الله دوه لارے متعین کړے ، یا اسلامی قانون دے یا جاهلی او کفری قانون دے ، ددې په مینځ کې دریمه لار نشته ، او ددې آیت عام مفهوم حسن بصری رحمه الله بیان کړیدے چه هغه فرمائی : « **من حکم بغیر الله فقد حکم بالجاهلیة** » " چا چه د الله د قانون نه بغیر په بل قانون باندې فیصله اوکړه نو دې سړی فیصله اوکړه په جاهلیت باندې " او جاهلیت هغه دور دے چه د رسول الله ﷺ د بعثت نه مخکې تیر شوے دے ، خو هغه جاهلیت په هر دور کې بیا هم راتلی شی ځکه چه هغه جاهلیت ته الله تعالیٰ جاهلیت اولی وئیلی دی ، او ابن عباس رضي الله عنه فرمائی : « **ما رأیت الاولی الا وله الاخری** » " ما چرته هم داسې شی ندې لیدلې چه د هغې دې اول وی او دویم دې ورلره نهٔ وی " نو چه اول شته نو دویم به ئې خا مخا وی ، نو چه هغه جاهلیت تیر شویدے نو بل جاهلیت هم راتلې شی ، او پدې آیت کې الله د خپل قانون صفت هم کړیدے چه څوک خائسته دے د الله نه په حکم کې ، یعنی څوک بهترینه فیصله کوی د الله د

---

[1] [ سورة المائدة : ٥٠ ] .

فيصلې نه ، نو چه څوک هم د الله فيصلې ته بهترينه فيصله اونۀ وائی او خپل قانون را اوباسی او هغې ته بهترين قانون ووائی نو دا سړے بيا کافر دے ، او چه کوم سړے د الله قانون داسې اوګنړی چه دا د معاشرے سره موافق ندے نو دغه سړے هم کافر دے ، او پدې آيت کې الله تعالیٰ هغه انسانانو ته چه هغوی د الله فيصله منی نو هغې ته ئی قوم مؤمن او قوم موقن اووئيلې.

دارنګه بل ځائی کې الله دا عموم په بلې طريقې سره بيانوی : ﴿ وَمَا ٱخۡتَلَفۡتُمۡ فِيهِ مِن شَيۡءٖ فَحُكۡمُهُۥٓ إِلَى ٱللَّهِ ﴾ [1] " او هغه چه تاسو اختلاف اوکړئ د يو شیء نه نو د هغې فيصله به الله ته مفوض ( سپارل ) کيږی " ، او دې ځائی کې بيا د شیء لفظ راغلې چه په هر شیء کې اختلاف راغې ، او شیء ئی هم راوړو او بيا ئی ورپسې « من » هم راوړو نو دا دواړه د عموم فائده کوی ، دغه شان په بل ځائی کې بيا الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤۡمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيۡنَهُمۡ ثُمَّ لَا يَجِدُواْ فِيٓ أَنفُسِهِمۡ حَرَجٗا مِّمَّا قَضَيۡتَ وَيُسَلِّمُواْ تَسۡلِيمٗا ٦٥ ﴾ [2]

**ترجمه** : " داسې نده زما دې ستا په رب باندې قسم وی چه دوی مؤمنان ندی تر دې چه فيصله کونکې جوړ کړی تاله په هغه څۀ کې چه د دوی پکې اختلاف راغلې دے بيا نۀ مونده کوی په خپلو نفسونو کې څۀ تنګی د هغې نه چه تا ورله فيصله کړے ده او بيا تسليم کړی هغه خبره په تسليمولو سره " .

پدې کې تفسير کبير والا وائی : چه الله تعالیٰ د ايمان دپاره درې شرائط کيخودل : چه مؤمن به هله جوړيږې چه رسول الله ﷺ خپل حاکم جوړ کړے ، دويمه : چه د هغې فيصلې کولو په وجه به ستا په زړه کې تنګی نۀ وی ، اګر که هغه مسئله ستا په خلاف ولې

[1] [ سورة الشورى : ١٠ ] .

[2] [ سورة النساء : ٦٥ ] .

نۀ وی شوی ، دریمه : چه د پیغمبر فیصلې ته په ظاهری طریقې سره تابعدار کیدل ، بیا هغه وائی : که یو سړے خپل پیغمبر حاکم نۀ منی نو دا سړے کافر دے ، او که حاکمیت هغه لره ورکړی خو بیا ورسره په زړۀ کې تنګی محسوسوی نو بیا هم مسلمان نشی کیدلې ، او چه پیغمبر کله یوه فیصله اوکړله بیا هغې ته تابعدار کیږی نۀ نو بیا هم مؤمن نشی کیدلې ، دا رنګه علامه ابن القیم رحمه الله په مدارج السالکین کې فرمائی : چه پدې آیت کې درې خبرے دی : ١/ مرتبة الاسلام ، ٢/ مقام الاسلام ، ٣/ مقام التحکیم ، نو اول مقام التحکیم دے چه په تا کې د پیغمبر علیه السلام د تحکیم منلو ماده نۀ وی نو ته مسلمان نشی کیدلې ، بیا چه تحکیم اومنې نو بیا مرتبة الاسلام ده ، چه تۀ به په اسلام باندې هله قائم شې چه د زړۀ نه تنګی لرے کړے ، او دریمه مرتبه مقام الاسلام ده چه تانه متقی جوړ شی نو هغه به هله وی چه تۀ ورته تابعدار شی نو چه دا درې واړه خبرے په تا کې راشی نو بیا به تۀ مؤمن جوړیږی ، دغه شان الله فرمائی : ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُوا بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَنْ يَتَحَاكَمُوا إِلَى الطَّاغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوا أَنْ يَكْفُرُوا بِهِ وَيُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَنْ يُضِلَّهُمْ ضَلَالًا بَعِيدًا ﴾ [1]

**ترجمه** : "آیا تۀ نۀ ګورے ( نو دلته تعجب کړیدے ) هغه کسانو ته چه ګمان کوی (یعنی دا خبره ئی د واقعې سره مطابق خبره نده ، یعنی په حقیقت کې دا مؤمنان ندی خو لیکن دوی دا ګمان کوی ) چه دوی ایمان راوړیدے په هغه څۀ چه نازل کړے شویدی تاته ( صرف دا ګمان کوی ) او په هغه کتابونو چه ستا نه مخکې نازل شویدی ( د قرآن نه علاوه په توارت ، انجیل ، زبور باندې ئی ایمان راوړیدے) او اراده لری چه فیصلې طاغوت ته یوسی ، ( یعنی د الله نه علاوه بل چاته خپلې فیصلې ور وړاندې کړی ، نو پدې ځائی کې دا خبره معلومه شوه: چه اراده لری د کفر دا هم کفر دے ، لکه یو سړے دے چه سود کوی خو حلال ئی نۀ

[1] [ سورة النساء : ٦٠ ] .

ګنړي حرام ئې ګنړي نو دا سړے نۀ کافر کيږي ، او بل سړے دے سود هم نۀ کوي خو وائي چه سود حلال دے نو دا سړے کافر دے ، ځکه چه اراده د کفر ئې کړيده اګر چه کفر ئې عملي ندې کړے ) او دويته امر شوے دے چه دوی دې پدې طاغوت باندې کفر اوکړي ( ځکه چه په طاغوت باندې کفر کول دا د ايمان د اجزاؤ نه دی ) او اراده لري شيطان چه دوی ګمراه کړي په ګمراهئ لرے سره ".

**نو پدې آيت کې الله تعالیٰ ددې خبرے وضاحت اوکړو چه دوی غير الله ته فيصلې وړي نو د دوی مشری شيطان کوی ، نو دا شيطان به تاته دا کفر په خائسته انداز کې راوړاندی کوی ، نو د قانون جوړونکي به چرته هم دا خبره اونۀ کړی چه مونږ دا کفر کوو بلکه هغوی به وائي چه مونږ خو د معاشرے تطبيق کوو او مونږ اصلاح کوو د معاشرے ددې دپاره دا قوانين جوړو ، نو دا چال د شيطان دے ، او دا کار د شيطان هم دے چه انسان ته ګوره کې زهر ورکوی ، چه تا کافر کوی نو تاته دا نۀ وائی چه زۀ تا کافر کوم بلکه خائسته انداز به تاته راوړاندی کړی او په هغې باندې به تا کافر کړی لکه شيطان چه آدم عليه السلام د جنت نه راويستلو هغې ته ئې دا ندی وئيلي چه زۀ تا د جنت نه اوباسم بلکه هغې ته ئې داسې اووئيل :**

**﴿ وَقَاسَمَهُمَآ إِنِّي لَكُمَا لَمِنَ ٱلنَّٰصِحِينَ ﴾[1] " او قسم ئې وکړو دې دواړو ته چه ستاسو دپاره خامخا د ناصحينونه يم " ، دارنګه ئې ورته اووئيل : ﴿ يَٰٓـَٔادَمُ هَلۡ أَدُلُّكَ عَلَىٰ شَجَرَةِ ٱلۡخُلۡدِ وَمُلۡكٖ لَّا يَبۡلَىٰ ١٢٠ ﴾[2] " زۀ تاسو ته شجرة الخلد دربنائم چه تاسو به پدې جنت کې هميشه هميشه اوسيږئ " ، نو پدې طريقه باندې آدم او حواء عليهما السلام دهوکه کړل او د جنت نه د راويستلو دپاره سبب جوړ شو ، نو دغه شيطان زمونږ د پلار سره هم دهوکه کړيده نو په اوس دور کې به هم داسې نۀ وائی چه راشه زۀ تا کافر کوم نو د دې دپاره به هغوی طريقې**

---

1) [ سورة الأعراف : ٢١ ] .

2) [ سورة طه : ١٢٠ ] .

**جوړوی ، نو دا الله د قانون په ځائ باندې په بل قانون فيصلې كول او هغې ته د الله د قانون حيثيت وركول نو د غټ كفر دے ، دغه شان بل ځائ كې الله تعالىٰ د خپل قانون په باره كې فرمائی : ﴿ وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ فَأُو۟لَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلْكَـٰفِرُونَ ﴾ [1]**

**ترجمه**: " چا چه د الله تعالىٰ په نازل كړه قانون باندې فيصلې اونۀ كړے نو دغه خلق كافر دی ".

**دغه شان په بل ځائ كې بيا فرمائی : ﴿ وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ فَأُو۟لَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّـٰلِمُونَ ﴾ [2]** " چا چه د الله تعالىٰ په نازل كړه حكم باندې فيصله اونكړه نو دغه كسان ظالمان دی "

**بل ځائ كې بيا فرمائی : ﴿ وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ فَأُو۟لَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلْفَـٰسِقُونَ ﴾ [3]**
" چا چه د الله په قانون باندې فيصلې اونكړے نو دا خلق فاسقان دی" **نو الله تعالىٰ دا درې دفعې پدې خلقو باندې اولګولې چه دا كافران دی ، دا ظالمان دی ، دا فاسقان دی ، نو دا درې دفعې د دوی د سختئ دپاره اولګولې ، او پدې كې لفظ «ما» راوړو چه دا د عموم دپاره راځی ، بل هغه د يهودو او نصاراؤ مشران چه هغوی د ځان نه تحليل او تحريم شروع كړو نو الله د هغوي په باره كې داسې فرمائی : ﴿ ٱتَّخَذُوٓا۟ أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَـٰنَهُمْ أَرْبَابًا مِّن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ [4] " دوی دغه خپل علماء خپل پيران خدايان نيولی دی ما سوا د الله نه " ، پدې ځائ كې يو صحابی دے عدی بن حاتم ﷺ دې د پيغمبر عليه السلام نه تختيدلې وو چه**

---

1) [ سورة المائدة : ٤٤ ] .

2) [ سورة المائدة : ٤٥ ] .

3) [ سورة المائدة : ٤٧ ] .

4) [ سورة التوبة : ٣١ ] .

كله نبي كريم ﷺ په بنو قريظؤ باندې حمله كوله نو دا اوتختيدلو، بيا راغې او ايمان ئې راوړو او بيا به ئې نبي كريم ﷺ له د ښكار غوښه راوړله، دا عدي بن حاتم رضي الله عنه نبي كريم ﷺ ته راغې او نبي كريم ﷺ پدغه وخت كې دا آيت لوستلو نو دې د نبي كريم ﷺ نه پوښتنه اوكړه چه مونږ د دغه علماؤ عبادت ندې كړے ؟ نو نبي كريم ﷺ ورته اوفرمائيل : چه هغوى به ستاسو دپاره تحليل كولو نو تاسو به د هغوى تابعدارى كوله او دارنګه تحريم به ئې كولو او تاسو به د هغوئ تابعدارى كوله، نو دا د هغوئ ده خدائ منل شول، نو پدې ځائې كې الله تعالىٰ د الله د قانون نه بغير بل قانون ته تابعدار كيدلو ته ئې د خدائی درجه وركړه چه دا په اصل كې د هغۀ په خدائی منل دى ، دغه شان بل ځائې كې الله فرمائى : ﴿ أَمۡ لَهُمۡ شُرَكَـٰٓؤُاْ شَرَعُواْ لَهُم مِّنَ ٱلدِّينِ مَا لَمۡ يَأۡذَنۢ بِهِ ٱللَّهُۚ وَلَوۡلَا كَلِمَةُ ٱلۡفَصۡلِ لَقُضِيَ بَيۡنَهُمۡۗ وَإِنَّ ٱلظَّـٰلِمِينَ لَهُمۡ عَذَابٌ أَلِيمٌ ٢١ ﴾ [1] " آيا دوى دپاره شريكان دى (چه د الله د قانون نه بغير بل چاته ئې فيصلې ورې دى نو هغوى ته ئې د هغوئ شركاء اووئيل ) چه دوى د هغوى دپاره دين جوړ كړيدے هغه دين چه الله د هغې اجازت ندى كړے ... " ، نو دا د الله د قانون نه بغير بل قانون ته فيصلې ورل په هره مسئله كې چه وى، په هر حالت كې چه وى ، په هره طريقه كې چه وى ، دغه فيصلې ورل نو دا حرام او ناروا دى ، خو حالت اكراه ترى مستثنى دي ، او دغه فيصلې كونكې طاغوت دے ، دغه كار موجب د كفر دے ، نو دا مسئله د تحكيم القوانين مسئله شوه د قرآن كريم نه واضحه كړے شوه ، چه دا مسئله نن په امت كې عامه شويده او دا يوه لويه فتنه ده چه خلق د الله د قانون په ځائې باندې بل قانون غوره كوى ، او دا قانون بيا مونږ ته په يو ښۀ انداز كې راوړاندې كوى ، او دا وائي : چه په فلانى كال كې مونږ فلانې قانون وضعه كړو نو دې قانون دومره فائده اوكړه ، او بيا د هغې تحسين كوى ، او دا قانون مونږ وضعه كړو پدې سره مونږ انسانيت د هلاكت او تباهئ نه بچ

---

[1] [ سورة الشورى : ٢١ ] .

کړو ، او دا قانون زمونږ د ملک چه کوم موجوده دے نو دا د عالمی قوانینو سره بالکل موافق قانون دے ، او پدې باندې بیا فخر هم کوی دا یو شو ، ۲/ د معاشرے سره ئی موافق ګنړی ، ۳/ دیته بهتره قانون وائی ، ٤/ دا د عالم د تباهئ نه بچ کونکې قانون دے ، یعنی په حقیقت کې د شر د دفع کولو دپاره دا قانون دے ، نو دا قسمه نومونه ورته ورکوی ، او پداسې مزین نومونو باندې مونږه ته هغوی خپل قوانین راوړاندی کړی او مونږ او تاسو په هغې باندې دهوکه کړی او بیا مونږ دغه قانون ته غاړه کیدو ، نو دیته وئیلې کیږی تحکیم القوانین .

اوس پدې تحکیم القوانین کې مونږ تکفیر کوو ، نو مونږ وایو چه دا عملی کفر دے پدې باندې خلق کافر کیږی ، نو چه کله دا خبره راشی نو پدیکې به یو اعتراض اوشی ، چه حضرت ابن عباس ﷺ چه کله د خوارجو سره مناظره وه نو ابن عباس ﷺ خوارجو ته دعوت ورکولو نو هغوی ورته دا آیت پیش کړو : ﴿ وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ فَأُو۟لَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلْكَـٰفِرُونَ ﴾ [1] نو ابن عباس ﷺ ورته اووئیل چه : « **ليس الكفر الذين تذهبوا اليه بل المراد به الكفر الذى لاينقل عن الملة** » " ددې نه مراد هغه کفر ندے چه تاسو ترینه کوم کفر اخلئ ( چه هغه کفر مخرج عن الملت دے ) بلکه مراد پدې سره هغه کفر دے چه سړے د دین نه نۀ اوباسی " ، نو ددې نه مراد خو هغه کفر شو ؟

**جواب** : اول به مونږ د کفر تشریح اوکړو چه کفر په دوه قسمه دے : ۱/ کفر اکبر او کفر بواح ، ۲/ کفر دون کفر ، کفر اصغر ورته وائی ، او دا اصل کې ګناه کبیره ته وائی چه پدې باندې سړے نۀ کافر کیږی ، ددې وجې نه امام بخاری رحمه الله دوه بابونه تړلی دی : باب کفر دون کفر ، بل باب : باب ظلم دون ظلم ، بیا پدې باب کفر دون کفر کې حدیث راځی «**من ترک الصلاة متعمدا فقد کفر**» [2] " چا چه مونځ په قصد سره پریخودلو نو

---

[1] [ سورة المائدة : ٤٤ ] .

[2] [ متفق عليه ] .

دا كافر شو "، نو پدې سره خو هغه كفر اكبر نه راځي ، خو ليكن فقد فعل بما يشابه افعال الكفار " يعنى دهٔ داسې كار اوكړو چه د كفارو د كارونو سره مشابه كيږى "، نو دا كفر دون كفر دے ، يا په احاديثو كې راځي : «**لايزنى الرجل حين يزنى وهو مؤمن**» ، " يعنى يو سړے زنا نهٔ كوى خو چه دا زنا كوى نو دا مؤمن نشى كيدے " ، نو ددې نه مراد دا كفر دون كفر دے ، او دا سړے كافر كوى نهٔ ، ۲/ كفر اكبر دے او پدې باندې سړے د دين نه خارجيږى ، لكه يو سړے د لاإلٰه الا الله نه انكار اوكړى ، يا په احكاماتو د شريعت كې د يو حكم نه انكار اوكړى ، يا يو داسې كار اوكړى چه هغه موجب د كفر وى ، نو په هغې سره به سړے كافر كيږى ، نو ابن عباس ﷺ فرمائي : څوک چه د الله په قانون باندې فيصله اونكړى نو هغه كافر دے خو په كفر اصغر سره يعنى كفر دون كفر سره ، نو غټ كافر ندې چه انسان د ملت اسلامى نه اوباسى ، او ماتاسو ته مخكې وئيلي وو چه په ګناه سره سړے نه كافر كيږي « ولا نكفره بذنب » او دغه شان قول د طاوس رحمه الله نه هم رانقل شويدے چه هغه فرمائى چه : «**المراد به كفر دون كفر**» ، يعنى مراد پدې سره كفر دون كفر دے ، دغه شان خبره د امام ابو مجلز رحمه الله نه هم رانقل شويده هغه فرمائى : چه ددې نه مراد كفر دون كفر دے ، او بيا وائى : كه چا انكار اوكړو ، يا حلال ئې اوګنړلو نو بيا دا كافر دے په غټ كفر سره ، نو دا خبره به روستو په شكل د اعتراض كې پيش كوو او بيا به د هغې جواب كوو ، ان شاء الله .

******

## د تحكيم القوانين [ دويمه حصه ]

مسئله د تحكيم القوانين شروع وه چه د الله جل جلاله د قانون په ځائې باندې بل قانون راوړل نو پدې مسئله باندې مونږ بحث شروع کړے وو ، په دې کې خلق مختلف قسمه مصلحتونه راوړاندې کوی او دغه قسمه مصلحتونه شريعت ندی معتبر کړی ، دوی وائې : دا مصلحتونه مونږ ددې وجې نه کوو چه په موجوده دور کې د خلقو د خدمت دپاره دا کار کوو ، دا خبره مخکې منافقينو هم کړی وه لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ ءَامَنُوا۟ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُوٓا۟ إِلَى ٱلطَّٰغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوٓا۟ أَن يَكْفُرُوا۟ بِهِۦ وَيُرِيدُ ٱلشَّيْطَٰنُ أَن يُضِلَّهُمْ ضَلَٰلًۢا بَعِيدًا ۝٦٠ وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا۟ إِلَىٰ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ وَإِلَى ٱلرَّسُولِ رَأَيْتَ ٱلْمُنَٰفِقِينَ يَصُدُّونَ عَنكَ صُدُودًا ۝٦١ فَكَيْفَ إِذَآ أَصَٰبَتْهُم مُّصِيبَةٌۢ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ ثُمَّ جَآءُوكَ يَحْلِفُونَ بِٱللَّهِ إِنْ أَرَدْنَآ إِلَّآ إِحْسَٰنًا وَتَوْفِيقًا ۝٦٢ ﴾ [1] نو ددې آيتونو په آخره کې دا خبره معلومه شوه چه دې منافقانو به هم دا وئيل : چه زمونږ اراده بل څۀ نده مګر دا چه د خلقو سره احسان اوکړو ، او زمونږ اراده خو بس صرف دا ده چه د خلقو په مينځ کې موافقت راولو ، نو باطل چرته هم دا اقرار نۀ کوی چه زۀ تا کافر کوم ، او چرته هم دا اقرار نۀ کوی چه زۀ تا ګمراه کوم .

اوس خلق پدې طمع دي چه کافر به مونږ ته اووائی چه زه تاسو کافر کول غواړم بس مونږ به د هغې مقابلے ته راشو ، دا نۀ چه نن په نوجوانانو کې جزبه ختمه شوے ده پدې غلط فهمئ کې دي چه دا باطل به مونږ ته کله ووائی چه مونږ تاسو کافر کول غواړو اوبه وائی چه مونږ ستاسو شريعت نۀ منو ، نو بيا به مونږ دوی سره جنګ کوو ، نۀ د کفر دا طريقه نده ، هلته خو منافقينو دا طريقه اختيار نۀ کړه چه نبی کريم ﷺ ته راغلے وے چه مونږه ستا

[1] [ سورة النساء : ٦٠ – ٦٢ ] .

شريعت نهٔ منو ، نهٔ مونږ خو وئيل چه بس صلحه ده نو مونږه ځکه دلته کې رانغلو .

نو خلق ئې په غلط فهمئ کې اچولی دی ، او دا رنګه مختلف قسمه مصلحتونه به منځ ته راوړاندی کوی ، او مخکې مونږ د مصلحت پسندئ مستقله موضوع بيان کړه په يو څو حصو کې ، او مونږ پکې دا خبره هم کړے وه چه مصلحت هغه مصلحت معتبر دے چه کوم شريعت معتبر کړے وی ، او هغه مصلحت لره هيڅ اعتبار نشته چه هغه ته په خپل ذهن او عقل باندې جوړوے مصالح دا مقدم ندی په نص باندې ، لکه مخکې زمانه کې يو ملا تير شوے دے طوفی چه دې په فقه کې حنبلی دے او په اصولو کې اشعری دے او په اکثرو عقائدو کې رافضی شيعه دے دهٔ يوه قاعده جوړه کړيده چه : « **المصلحة مقدم على النص** » " دا وائی : چه مصلحت مقدم دے په نص باندې " ، نن بعضی خلق د دهٔ پدې خبره باندې عمل کوی يعنی مصلحت په قرآن او حديث باندې مقدم دے ، ځکه نص خو ديته وئيلی کيږی چه پديکې احتمال د بلې خبرے نهٔ وی ، او دا مسئله مخکې تفصيلی تيره شويده .

نو د مصلحتونو د وجې نه تحکيم القوانين کول چه چونکه موجوده قوانين د معاشرے سره زيات مطابق دی ، بين الاقوامی قوانين دی او دا چه مونږ نافذ کړو نو پديکې به اختلافات او جنګونه به ختم شی او د خلقو خپل حقوق به پوره شی ، حالانکه اسلام د ټولو نه د حقوقو زيات خيال ساتلې دے ، نو دا قسمه دعوے کول دا باطله دعوه ده ، يا بعضی خلق دا خبره کوی چه دا وضعی يعنی جوړ کړے شوی قوانين پدې وخت کې ضرورت دے ، نو مونږ وايو چه دا خبره په حقيقت کې د شريعت نه انکار او په پيغمبر عليه السلام باندې بدګمانی ده ، ځکه الله فرمائی : ﴿ ٱلْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ ٱلْإِسْلَٰمَ دِينًا ﴾ [1] الله وائي چه زهٔ ستاسو دپاره په اسلام باندې خوشحاله يم چه دغه اسلام ستاسو دپاره دين دے ، او دا ستاسو دپاره دائمی قانون دے ځکه بل ځائی کې الله فرمائی : ﴿ وَتَمَّتْ

[1] [ سورة المائدة : ٣ ] .

كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدۡقٗا وَعَدۡلٗاۚ لَّا مُبَدِّلَ لِكَلِمَٰتِهِۦۚ وَهُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلۡعَلِيمُ ﴾ [1] " يعنى كلمه د رب ستا ( يعنى قرآن كريم ) دا په صدق او په عدل سره تمام شويدے نشته څوک تبديلونکي د هغهٔ د كلمو دپاره ( يعنى ځوک د قرآن كريم احكامات نشي بدلولي ) ... " نو الله وائی : چه دا دائمى قانون دے ځوک بدلونکي ورلره نشته او تهٔ وائی چه دا ضرورت دے ، نو پديکي تهٔ بدګمانى كوے په الله جل جلاله باندې ، الله جل جلاله فرمائى : ﴿ فَإِن تَنَٰزَعۡتُمۡ فِي شَيۡءٖ فَرُدُّوهُ إِلَى ٱللَّهِ وَٱلرَّسُولِ ﴾[2] دارنګه : ﴿ أَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُواْ ٱلرَّسُولَ وَأُوْلِي ٱلۡأَمۡرِ مِنكُمۡ ﴾[3] ، نو كه اختلاف راشى هغه به الله او د هغه رسول ته وړل پکار دى ، نو الله ديته دعوت وركړو چه تاسو به فيصلې پدې قانون كوئ يعنى د الله او د رسول الله ﷺ په طريقه باندې ، او دا وائى : چه ددې زمانې ضرورت دا دے ، نو ددې مطلب خو دا شو چه نعوذ بالله چه الله خو دعوت وركوى خو قوانين ئې پوره ندى ، ( والعياذ بالله ) ، نو الله تعالىٰ داسې كلام راليږلې دے چه وخت په وخت په هغې كې اجتهادات كوه نو ټولې مسئلې پرې حل كيږى ، سنت د رسول الله ﷺ شته ستا مسئله په هغې باندې حل كيږى ، اجماع شته ستا مسئله په هغې باندې حل كيږى ، نو ددې باوجود بل نظام ته رجوع كول نو دا خو ددې خبرے دليل ګرځى چه نعوذ بالله الله تعالىٰ مونږ ته دعوت راكوى دې قانون ته خو دا قانون مكمل ندے نو بيا الله تعالىٰ دا كار ولې په مونږ باندې واجب كولو ؟ نو دا سوچ غلط سوچ دے .

بعضى خلق وائى : فتوى په اختلاف د زمانې سره بدليږى رابدليږى ، نو دا خبره هم خطاء ده .

---

1) [ سورة الأنعام : ١١٥ ] .

2) [ سورة النساء : ٥٩ ] .

3) [ سورة النساء : ٥٩ ] .

علماء كرام فرمائی : چه په تغیر د زمانې سره تغیر د فتوی راځی خو هغه چه په حقیقت کې فتوی نه بدلیږی زمونږ د خواهشاتو مطابق بلکه مونږ بدل شو ، دا خو به بیا آسانه شی که فتوی بدلیدل شروع شوے ، لکه اوس ښځې ډریونګ شروع کړو ضرورت شو معاشره عامه شوه اوس به په دې باندې فتوی ورکوو چه په دې عامه معاشره کې ښځو ډریونګ شروع کړو نو د ښځو ډریونګ دې جائز شی ، او یا په موجوده دور کې خلق اقتصادي لحاظ سره د مشکلاتو سره مخ دي مونږ به اجازت ورکوو چه سود دې جائز شی نو فتوی په دې اعتبار سره نه بدلیږی، بعضی خلق ئې بدلوی خو د شریعت مطابق فتوی نه بدلیږی البته که تغیر راغلے دے نو په مونږ کې راغلے دے په فتوی کې تغیر ندے راغلے ، او که فتوی چرته بدلیږی هم نو هغه صرف دومره قدرې بدلیږی چه د شریعت څومره ګنجائش وی د مصلحت مطابق ، خو بیا به هم د عامې اجماع نه مخالفت نهٔ کوي ، لکه مصلحت ما تاسو ته اووئیل کنه چه یو ځائی کې درته شریعت اووئیل چه نه به خورے مرداره او ته په یو بل ځائی کې مجبوره شوے بیا به شریعت جواب درکوی ، مصلحت له اعتبار ورغې خو هغه مصلحت چه په شریعت کې معتبر دے ، اوس دغه شریعت چه ستا د بدن په یو وخت کې ئې مصلحت دا وګڼړو چه ستا بدن او ستا خیال ساتلو دپاره ئې مرداره درباندې حرامه کړه په بل ځائی کې دغه شریعت دے ستا د مصلحت خیال ئې وساتلو ستا د بدن د خرابیدو نه د بچ کیدو دپاره ئې مرداره په تا باندې حلاله کړه نو دا شریعت چه په خپله باندې کوم کوي دغه مصلحت په نفس باندې مقدم کول دا نشته ، او دغه شان فتوی بدلول چه هغه د نصوصو سره مخالف راشی دا خبره په شریعت کې نشته ، او بعضی خلق ددې نه استدلال کوی خو دا غلطے خبرے دي .

نو خبره د تحکیم القوانین ده نو دا کوم وضعی قوانین چه نن صبا جاری شوی دی دا ټول کفر دے ، الله فرمائی : ﴿ وَأَنِ ٱحۡكُم بَيۡنَهُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ وَلَا تَتَّبِعۡ أَهۡوَآءَهُمۡ ﴾[1] " ته فیصله اوکړه د دوی په مینځ کې په هغه کتاب سره چه کوم الله تعالیٰ نازل کړیدے او د دوی د

---

[1] [ سورة المائدة : ٤٩ ] .

خواهشاتو تابعداری مهٔ کوه "، نو د خواهشاتو مطابق فتوی بدلول دا غلطه خبره ده ، دغه شان بل ځائی کي الله فرمائی : ﴿ فَإِن جَآءُوكَ فَٱحۡكُم بَيۡنَهُمۡ أَوۡ أَعۡرِضۡ عَنۡهُمۡۖ وَإِن تُعۡرِضۡ عَنۡهُمۡ فَلَن يَضُرُّوكَ شَيۡـٔٗاۖ وَإِنۡ حَكَمۡتَ فَٱحۡكُم بَيۡنَهُم بِٱلۡقِسۡطِۚ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلۡمُقۡسِطِينَ ﴿٤٢﴾ ﴾[1] نو دا دواړه د یوے خبرے واقعه ده ، نو د یهودو به په خپل مینځ کي اختلافات راتلل نو د هغې اختلافاتو په باره کي الله تعالیٰ فرمائي ، اے پیغمبره ! کله چه دوی تاته فیصله راوړی نو ته د دوی په مینځ کي فیصله کوه په هغه کتاب چه کوم الله نازل کړیدے ، او پدي بل آیت کي ورته اووئیل : که دا خلق تا ته راغلل نو ستا خوښه ده که تهٔ ورلره فیصله کوی او که اعراض ترینه کوے ، او که ته اعراض اوکړے نو تاته هیڅ ضرر هم نشي درکولي ، او که فیصله کوے نو فیصله په عدل سره اوکړه ، نو دلته دوه مسئلي شوے ، یو ځائی کي ورته په وجوب باندي امر کوی چه فیصلي اوکړه ، بل ځائی کي ورته وائی : ستا خوښه ده که فیصلي کوے او که فیصلي نهٔ کوے ، نو دوی به ووائی : چه اوګوره پیغمبر علیه السلام ته اجازت میلاؤ شویدے چه پدي ، که قانون باندي فیصلی کوی او که نه ، نو په جواب کي به ورته اووئیلي شی ، چه هغه خو د کفارو په باره کي وه ، ۲/ بعضی علماؤ لیکلی دی : چه دا آیت بیا منسوخ شویدے ، او دا بل آیت چه : « **وان احكم بينهم بما انزل الله** » فیصله اوکړه د دوی په مابین کي په بما انزل الله باندي نو دا حکم باقی پاتي دے ، او بعضی علماء وائي : چه دا دوه ډلي وے ، یوه هغه ډله وه چه د رسول الله ﷺ د حکومت د لاندي ډله وه ، او دویمه هغه ډله وه چه هغه د رسول الله ﷺ د حکومت نه وتلی خلق وو ، هغه یهود چه هغوی ته پیغمبر علیه السلام راغلي او هغوی سره ئی مصالحت کړے وو چه کوم په مدینه کي وو نو هغوی د پیغمبر علیه السلام د حکم د لاندي داخل وو ، یا هغه یهود ددینه مراد دی چه کوم په خیبر کي وو نو د هغې په باره کي هم ورته الله وائي : « **وان احكم بينهم**

---

[1] [ سورة المائدة : ٤٢ ] .

**بما انزل الله** » ، او هغه چه کومه فیصله دوی ته راغلي وه لکه مخکې آیت کې ذکر شو نو هغه نور یهود وو ، او هغه یهود د نبي کریم ﷺ د حکومت د لاندې نهٔ وو داخل نو ددوی په باره کې ورته الله وائي : که فیصله کوے او که نهٔ کوے ، او چه ستا په کوم ځائی کې حکومت وو نو بیا به فیصله په اسلام باندې کوے .

**اوس دا بله مسئله**: چه الله تعالیٰ فرمائي : ﴿ وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ فَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْكَٰفِرُونَ ﴾[1] " څوک چه د الله تعالیٰ په نازل شده قرآن باندې فیصله نهٔ کوی نو دا خلق کافران دی " ، بل آیت کې ورته ظالمان ویلې شویدی ، بل آیت کې ورته فاسقان وئیلې شویدی ، نو یا خو ددې دری واړو نه مراد کفر دے ، ځکه په کفر باندې اطلاق د کفر خو کیږی دا خو معلومه خبره ده ، او په ظلم باندې هم اطلاق د کفر کیږی لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ إِنَّ ٱلشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ ۝١٣ ﴾[2] ، او په فسق باندې هم اطلاق د کفر کیږي لکه د کفارو باره کې چه کله فسق راشی کنه نو هلته مراد کفر وي ، اوس دا آیت د چا په باره کې نازل شویدے ، نو بعضی حضرات خو وائی : چه دا آیتونه د یهودو په باره کې نازل شویدی ، بعضی حضرات وائي : چه هم الکافرون دا د مسلمانانو په باره کې دے ، او هم الظالمون ، او هم الفاسقون د یهودو په باره کې دے ، د حضرت حذیفه رضي الله عنه نه تپوس اوشو چه دا آیت خو د یهودو په باره کې نازل شویدے ؟ نو هغه ورته په جواب کې اووئیل : « **نعم الاخوة لکم بنو اسرائیل ان کان لکم کل حلو ولهم کل مرٍ والله لتسلکن قدر الشراک حتی لودخلو جحر ظب لدخلتموه** » " ستاسو ډیر ښهٔ وروڼه دی بنی اسرائیل ستاسو دپاره دې هر خوږه خبره وی او د هغوی دپاره دې هره ترخه خبره وی ( یعنی چه په قرآن کې چه کوم تراخه تراخه احکامات راځي نو هغه په هغوی چسپان ( تطبیق ) کوئ ، او چه کوم خواږه خواږه وی نو هغه د ځان

---

[1] [ سورة المائدة : ٤٤ ] .

[2] [ سورة لقمان : ١٣ ] .

دپاره خاص کوئ ) قسم په الله تاسو به ځئ په طريقه د هغوی باندې په اندازې د تسمې باندې ، تردې چه هغوی د سمسرے سوړے ته داخل شوی وے نو تاسو به هم ورداخليږئ "
نو دا حذيفه ﷺ منع اوکړه چه آيتونه صرف په بنی اسرائيلو باندې مهٔ چسپان ( تطبيق ) کوئ ، بل د آيت حکم عام وی ، ځکه قرآن عالمی کتاب دے نو حکم به ئی هم عام وی .

بيا ددې کفر نه کوم قسم کفر مراد دے ، نو فألئک هم الكافرون کې دوه قسمه کفر دے ، يو کفر اعتقادی دے ، چه په هغې سره کفر اکبر راځی ، يو کفر عملی دی چه په هغې باندی سړے په غټ کفر کې نهٔ راځي ، چه مراد ترينه ګناه کبيره ده ، نو دا دواړه پدې آيت کې شته دے ، نو شيخ سفر بن عبدالرحمن بن الحوائس حفظه الله دا په خپله رساله کې چه شرح کړيده د شيخ محمد بن ابراهيم د رسالې چه تحکيم القوانين ده ، دغه فرمائي : چه پديکې چه کوم کفر اعتقادی دے نو دا په پنځه قسمه باندې دے : ۱/ ددې کفر اعتقادی هغه دا دے : چه د الله قانون ته فيصلې نهٔ وړی او بل قانون ته ئی يوسی او د الله د قانون حقانيت نه انکار اوکړی يعنی انکار اوکړی ددې خبرے چه د الله په قانون باندې فيصلې کول واجب دی نو ددې خبرے نه انکار اوکړی ، مثلاً : دا سړے ووائی : چه زهٔ دا منم چه د الله په قانون باندې هم فيصلې کيږی خو دا فيصلې واجب ندی نو دا هم کفر اعتقادی او کفر اکبر دے ، يا ددې قانونی حيثيت نه انکار وکړی چه دا صحيح قانون ندے اوس نن صبا دا خبره خلق په داسې انداز کې کوی تاسو ته چه يره په مخکې دور کې په دې قانون باندې فيصلې کول واجب وو ځکه هغه دور د غربت دور وو او هغه دور ساده دور وو هغه متمدن دور نه وو ، اوس موجوده دور خو جديد او متمدن دور دے نو لهذا په دې دور کې پدې باندې ( قرآن ) فيصلې کول واجب ندی ، او د قانون منل واجب ندی نو دا خبره خو په نصوصو سره معلومه ده ، دا خبره مخکې مونږ ذکر کړه چه د الله په قانون باندې فيصلې کول دا خو فرض دي چه څوک ترې انکار وکړی نو هغه خو د ضرورياتو د دين نه انکار وکړو او ضروريات الدين هغه مسائل دي چه هغه په کتابونو د شرعې کې او په کتابونو د فقه کې مشهورے مسئلې وی هغه مسئلو نه انکار وکړو نو دغه سړے کافر دے لکه مثلا مونځ

دے، نو د مونځ د وجوب نه يو سړی انکار وکړو نو دا سړے کافر دے ځکه شاه انور شاه صاحب وائی : « فإنكار الصلوٰة كفرٌ وكذلک جهلها» د مونځ نه انکار کول دا خو کفر دے ورسره دارنګه جهل د مونځ چه په مونځ باندې نه پوهيږے چه مونځ څه شی دے دا هم کفر دے .

او دا خبره خو معلومه ده چه څوک هم د شريعت د يو جزء نه انکار اوکړی نو په هغې باندې دا کافر کيږی ، او دا خبره هم معلومه ده چه د الله په قانون باندې فيصلې کول فرض دی ، او دۀ د هغې د فرضيت نه انکار اوکړو نو دا د شريعت نه انکار کول دی او څوک چه د شريعت د يو جزء نه انکار اوکړی نو پدې سړے کافر کيږی .

**۲/ قسم** : چه دا ووائی : چه زۀ د الله تعالیٰ قانون منم خو دا اوسني قانون د هغې قانون نه بهتر قانون دے نو پدې باندې هم سړے کافر کيږی ، ځکه چه دۀ فضيلت ورکړو مخلوق ته په خالق باندې ، ځکه د مخلوق قانون ته ئې فضيلت ورکړو په قانون د خالق باندې او دا کفر دے ، او دا خبره به کله په قولی انداز کې کيږی او کله به په فعلی انداز کې کيږی ، په قولی انداز کې به داسې وائي : چه منم چه آو د الله په قانون باندې فيصلې واجب دی او د الله قانون بهترين قانون دے خو د موجوده دور سره او دې موجوده حالاتو سره مطابق او د موجوده دور د ترقی دپاره دا موجوده قانون موافق دے ، او دا خبرے دوی کوی او بيا پرې فخر هم کوی ، او وائی : چه موږه فلانی قانون سازی وکړه نو ملک کې دومره ترقی وشوه او موږه تجارت دپاره فلانې قانون وضعه کړو نو دومره ترقی وشوه ، دا قسمه خبرے کوی کنه نو چه دا قسمه خبرے کوی او الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ فَإِن تَنَٰزَعۡتُمۡ فِي شَيۡءٖ فَرُدُّوهُ إِلَى ٱللَّهِ وَٱلرَّسُولِ إِن كُنتُمۡ تُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِۚ ذَٰلِكَ خَيۡرٞ وَأَحۡسَنُ تَأۡوِيلًا ۝٥٩ ﴾[1]

---

[1] [ سورة سورة النساء : ٥٩ ] .

زما دي كتاب پدي باندې فيصلے کوئ دا خير دے او دا بهتر دے ، اوس چه الله تعالیٰ ورته بهتر اووئيل هر زمانه کې په هر وخت کې په هر مکان کې په هره فيصله کې الله تعالیٰ خپل کلام ته بهتر اووئيل ، او بل يو سړے راشي چه نۀ دديې نه بهتر کلام دا دے ، نو دې انسان د الله تعالیٰ د خيريت د کلام نه منکر شو نو دا د قرآن کريم د يو آيت نه منکر شو او انکار ئې ترې اوکړو او څوک چه د يو آيت نه انکار وکړي نو دا پدې باندې کافر کيږی ، نو دا خلق تاسو ته دغه شان په قولی طريقې سره وائی چه يره موجوده دور سره دغه قانون نه فټکيږی نۀ تطبيق کيږی ، ځکه چه موجوده عالمی قوانين دا خو آزادانه قوانين دي او اسلام کې پابندئ ډيرے دي نو آزادانه قوانين پکار دی هغه دديې دور دپاره بهتر دي ، نو چه دا ديته بهتر وائی نو پوهه شه چه دا اسلام قانون ته بهتر نۀ وائی ، او يا دوی داسې وائی کنه چه يره دا فلانې قانون چه کله نه مونږ جوړ کړے دے نو ډيره ترقی وشوه ډير بهتر قانون دے نو دا د کفر اعتقادی دويم قسم دے .

**۳/ قسم** : چه د الله د قانون نه بغير په بل قانون باندې فيصلې کوی او بيا ورسره وائی : چه د الله قانون هم بهتر قانون دے او په هغې باندې فيصلې کول واجب دی خو دا بل قانون د هغه قانون سره يوشان دے يعنی څرنګه چه د الله قانون ښۀ دے د عالَم دپاره نو دغه شان دا وضعی قانون هم ښۀ دے د عالَم دپاره ، او دا قسم خبرے نن هم کوی کنه خلق لکه هغه د سعودی يو شيخ دے چه هغه به تقارب الأديان کې هم شرکت کولو هغه وائی : چه هر يو قانون د هر ملک چه وی هغه د خپل ملک او اولس د افرادو دپاره خه دے ، نو آيا دا خبره د اسلام سره موافق او برابره ده حالانکه د ټولے دنيا دپاره خه او بهتر قانون هغه د اسلام قانون دے او بل هر قسمه قانون شر دے او ضلالت دے الله فرمائی : ﴿ وَيُرِيدُ ٱلشَّيْطَٰنُ أَن يُضِلَّهُمْ ضَلَٰلَۢا بَعِيدًا ۝ ﴾[1] نو دا قسمه خبرے کول دا هم کفر دے ، ځکه چه دا سړے د مخلوق قانون د خالق د قانون سره برابروی ، يعنی د خالق قانون او آئين سره د مخلوق قانون او آئين

---

[1] [ سورة النساء : ٦٠ ].

برابر وی نو دا کفر دے لکه الله فرمائی : ﴿ تَٱللَّهِ إِن كُنَّا لَفِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ۝٩٧ إِذْ نُسَوِّيكُم بِرَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ۝٩٨ ﴾[1] چه مونږ د رب العالمین سره برابر والي کولو ، نو دا کفر دے ، دغه شان الله په بل ځائی کې بیا فرمائي : ﴿ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ ٱلَّذِى خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ وَجَعَلَ ٱلظُّلُمَٰتِ وَٱلنُّورَ ثُمَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُونَ ﴾[2] ، یعنی چه کوم خلق کافران دی نو هغوی د رب سره مساوات جوړوی نو دغه آئین د رب د آئین سره برابرول دا کفر دے ، او هم بعضی ځائی کې قولی کیږی ، او بعضی ځائی کې فعلی کیږی خو چه اعتقاداً وي .

**٤/ قسم** : د الله د قانون نه په غیر په بل قانون فیصلی کوی او بیا دا خبره کوی چه د الله قانون بهتر قانون دے او زمونږ قانون دې قانون ته نۀ رسی خو زمونږ دا قانون هم جائز دے چه تۀ پرې فیصلې اوکړی ، نو دا هم کفر اعتقادی دے ، ځکه دا وائی : چه د الله قانون خو بهتر دے خو پدې بل قانون هم فیصلی کول جائز دی دا د جواز خبره کول دا ځانته کفر دے ځکه علامه ابن تیمیه رحمه الله فرمائي : « **من حلل الحرام وحرم الحلال فقد كفر بالاجماع** » " چا چه حلال حرام اوګرځول او حرام ئې حلال اوګرځول نو دا په اجماع د امت باندې کافر دے " ، او پدې خبره نصوص قائم دی چه د الله د قانون نه بغیر په بل قانون باندې فیصلې مۀ کوئ دا حرام دی او دغه حرام دۀ حلال کړل نو دا هم کفر اعتقادی دے ، او دا هم کله په قول سره بنائی او کله په عمل سره بنائی .

**٥/ قسم** : چه دا د ټولو نه عام او شامل صورت دے ، چه دا عناد شروع کړی د شریعت سره ، او هغه پدې طریقې سره چه دا خپل عدالتونه جوړ کړی لکه څرنګه چه د شریعت عدالتونه دی ، دارنګه لکه څنګه چه د شریعت مراجع وی یعنی په فیصلې پسې کتابونه ګوری نو دا هم دغه شان مراجع وی او کتابونه ورپسی ګوری ، او دغه شان چه څنګه د

---

[1] [ سورة الشعراء : ٩٧ ـ ٩٨ ] .

[2] [ سورة الأنعام : ١ ] .

شريعت د وئيلو ځايونه وي نو دا هم هغه شان ځايونه جوړ کړی ، نو پدې صورت کې هم دا اعتقادی کفر دے او دا د ټولو نه اشمل ځکه دے چه دا په عناد باندې دے ، او دينه دا معلوميږی چه دا ځانله يو بل شريعت جوړوی ، نو دوی چه خپلې فيصلې کوی نو د هغې دپاره ئې خپل آئين جوړ کړو ، بيا د وکالت دپاره ئې خپل کتابونه جوړ کړل ، بيا ئې د هغې دپاره خپل عدالتونه جوړ کړل ، بيا ئې د هغې د زده کړے دپاره لاء کالجونه جوړ کړل ، نو دا بالکل مقابلې ته ولاړ دے ، ځکه د الله قانون ته دوی د قانون په نظر نۀ ګوری او ځانله بل قانون تياروی ، او دوی د شريعت قانون استخفاف او استهزاء اوکړه نو ددې وجې نه مونږ دوی کافر کوو ، لکه د شرح العقائد مصنف وائی : که يو سړے راغے او په يو اوچت ځائی باندې کيناستلو لکه چه د مفتی دپاره چه څنګه اوچت ځائی وی ، او بيا دا سړے جاهله هم دے او خلقو ته وائي چه راجمع شئ او زما نه فتوی غواړئ زه به فتوی درکوم نو هغه وائی چه نکفره دا سړے مونږ کافر کوو ، ځکه چه دۀ د شريعت استخفاف او استهزاء اوکړه ، نو ددې وجې نه مونږ ددې تکفير کوو ، بل ځائی بيا وائي : چه دا ځکه کافر کيږی چه دۀ مسند د افتاء پورے خنداء اوکړه ، نو چه يو سړے د ټول شريعت پورے استهزاء کوی نو د هغه به بيا څۀ شان وی ، او دا بيا ددې دپاره جنګيږی هم چه کله ترينه څوک د شريعت مطالبه اوکړی ، ځکه شاه انوار شاه کشميری رحمه الله په اکفار الملحدين صفحه ۱۰۹ کې فرمائی : « **ومن ذب عنه او تأول قوله ... يكفر قطعاً ليس فيه توانی** (بيا وائی) **وهل فی ضروريات الدين تأول ... بتحريفها الا ككفر علانی** » " که چرته چا دفاع اوکړه د کفر نه يا ئې تأويل اوکړو د قول د هغۀ نو دغه سړے به قطعا کافر وی او پديکې هيڅ قسمه ګنجائش نشته ، بيا وائي : او په ضرورياتو د دين کې دې څوک تأويل کوی دا ندې مګر داسې دے چه علانيتاً کفر دے "، او دغه دفاع چه دوی د کفر کوی نو پديکې شرح العقائد ملا فرمائي : « **قاتل المؤمن لكونه مؤمناً لا يكون الا كافرا** » " مؤمن ددې وجې نه قتلول چه دا مؤمن دے دا بيا نۀ وی مګر کافر وی " ، نو دوی چه ددې دفاع دپاره جنګيږی نو دا ددې وجه نه مسلمان سره جنګيږی چه دا د

اسلام مطالبه کوی نو دا به کافر وی ، علامه ابن تیمیه رحمه الله په مجموعة الفتاوی ۳۲ جلد کې لیکی : چه ده هغه نه سوال اوشو : چه یو سړے دے او د هغه نه دشریعت مطالبه کیږی او په شریعت باندې د یو سړی سره جنګیږی نو ددې به څۀ حکم وی ؟ نو هغه ورته په جواب کې اوفرمائیل : « **فهذا شر من الکافر معاهد فان هذا کافر محارب بمنزلة الکفار الذین یقاتلون النبی ﷺ واصحابه** » " دا د معاهد کافر نه بدترین کافر دے ځکه دا په منزله د حربی کافر دے او دا په منزله د هغه کافر دے چه کوم د نبی کریم ﷺ او د هغه د اصحابو سره جنګ کړے وو " ، بل ځائی کې علامه ابن تیمیه رحمه الله فرمائی : چه څوک د کفر نه دفاع کوی نو دا سړے کافر دے ، او چاته د شریعت یو حکم ورشی او هغه نه منی نو دغه سړے هم کافر دے ، نو پدې قسمه خلقو باندې دې علماء کرامو د تکفیر فتوی ورکړیده .

**اوس د تحکیم القوانین په مسئله کې د علماؤ اقوال** : الله جل جلاله فرمائي : ﴿ فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا ﴿٦٥﴾ ﴾[1]

علامه ابن کثیر رحمه الله فرمائی : « **لایجدون فی انفسهم حرجا مما حکمت به وینقادون لک فی الظاهر والباطن فیسلمون لذلک تسلیما کلیا من غیر ممانعة ولامدافعة ولامنازعة** » " چه ته کومه فیصله اوکړی او ددې په زړونو کې هیڅ قسمه تنګی نۀ وی نو هله به دوی مؤمن جوړیږی او په ظاهر او باطن کې دوی تاته مائل شی .... " ، دغه شان علامه نسفی حنفی رحمه الله فرمائی : « **کأنه قیل وینقاد لحکمک انقیاداً لاشبهة فیه بظاهرهم وباطنهم والمعنی لایکونو مؤمنین حتی یرضوا حکمک وقضاءک** » " ګویا کې اووئیلې شو : دوی به هله مسلمانیږی چه دوی ستا حکم ته منقاد او تابعدار شی چه په هغې کې هیڅ قسمه شبهه نه وی په ظاهر او باطن کې ، او دوی مؤمنان نشی کیدی تردې چه ستا په حکم او ستا په قضا

[1] [ سورة النساء : ٦٥ ] .

باندې راضی شی ''، دغه شان روح المعانی کې علامه آلوسی رحمه الله فرمائي : چه ددې نه غټ کفر څنګه مراد کوی فرمائي : « **ان المراد عموم النفی بحمل ما علی الجنس لاشک ان من لم یحکم بشیء مما انزل الله تعالیٰ لایکون غیر مصدق ولا نزاع فی کفره** » '' چه مراد داده چه دا نفی عامه ده په حمل کولو د لفظ « ما » په جنس او هیڅ شک نشته چه یقیناً چا چه فیصله اونکړه په ما انزل الله باندې او تصدیق ئی هم اونکړو نو وائي چه شک نشته ددې په کفر کې او نه پکې د چا اختلاف شته ''، دغه شان فتح القدیر کې امام شوکانی رحمه الله فرمائي : چه حکم بغیر ما انزل الله اوکړی او دا استخفافاً او استهزاءً اوکړی نو پدغه صورت کې دا سړے کافر دے ، دغه شان تفسیر ابن کثیر وائی : چه معارضه د رسولانو سره اوکړی ، څکه معارضه دیته وائي : چه د بل دلیل لرې کول او د هغې په ځائی باندې خپل دلیل قائمول ، نو دا ظلم دے او دا سړے مخرج عن الملت دے ، دغه شان ددې آیت په ذیل کې علامه آلوسی رحمه الله په خپل تفسیر روح المعانی کې فرمائی : « **فقد روی عن الصادق رضی الله عنه لو ان قوما عبدوا الله واقاموا الصلاة واتوا الزكاة وصاموا الرمضان وحجوا البيت ثم قالوا لشیء صنع رسول الله صلی الله علیه وسلم الا خلاف ماصنع ، لکانو مشرکین** » '' د صادق رضی الله عنه نه روایت دے چه که چرته یو سړے د الله عبادت کوی مونځ کوی زکات ورکوی ، روژه د رمضان هم نیسی ، حج د بیت الله هم کوی او بیا ووائی : په باره د هغه شی کې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم کړی وی آیا دا کار ئی نوی کړے ددې په خلاف ئی بل کار کړے وې ، یا په زړه کې ترینه تنګی پیدا کړی نو دغه سړے به مشرک وی ''.

اوس دا کار د کله نه پیدا شو چه دوی د الله تعالیٰ په قانون باندې فیصلې مکملې پریخودلې او په بل قانون باندې فیصلې کوی ، نو دا د تاتار په وخت کې چنګیزخان خپل قانون جوړ کړے وو او د هغه قانون نوم ئی کیخودلو « یاسق » او دغه یاسق دده په بچو کې متداول وو ، بیا دده په بچو کې بعضی مسلمانان شول او دغه قانون به ئی چلولو نو علامه ابن تیمیه رحمه الله پدې باندې د کفر فتوی ورکړه او وې ویل : چه کله فیصله بعضی د الله دپاره شی او بعضی

د غير الله دپاره شی نو ددې مونږ تكفير كوو او ددې قتال واجب دے ، او علامه ابن كثير رحمه الله فرمائی : ددې آيت په تفسير كې چه « افحكم الجاهلية يبغون » فرمائی : « **ينكر تعالى على من خرج من حكم الله المحكم المشتمل على كل خير الناهى عن كل شر وعدل الى ما سواه من الاراء والاهواء والاصطلاحات التى وضع الرجال بلا مستند من شريعة الله كما كان اهل الجاهلية يحكمون به من الضلالات والجهالات مما يدعونها بآراهم واهواءهم وكما يحكم به التاتار من السياسات الملكية المأخوذة عن ملكهم الذى وضع لهم الياسق وهو عبارة عن كتاب مجموع قد اقتبسها من شرائع شتى من اليهودية والنصرانية والملة الاسلامية وفيها كثير من الاحكام اخذها من مجرد نظرها وهواء فصارت فى بنيه شرعا متبعا يقدمونها على الحكم بكتاب الله وسنة رسول الله صلى الله عليه وسلم ومن فعل ذلک منهم فهو كافر ويجب قتاله حتى يرجع الى حكم الله ورسوله فلا يحكم فى سواه فى قليل وكثير** » ، دغه شان علامه ابن تيميه رحمه الله ۲/ ۱۲۸ كې فتوى وركړه فرمائي : « **وايما طائفة انتسبت الى الاسلام وامتنعت عن بعض الشرائع الظاهرة يجب جهادها باتفاق المسلمين حتى يكون الدين كله لله** » " هره يوه ډله چه نسبت ئې خو اسلام ته كيږی خو د بعضې احكاماتو شرعيوؤ نه ئې منع اوكړه نو د دوی سره جهاد واجب دے په اتفاق د مسلمانانو باندې تردې چه دين وګرځي ټول دين د الله دپاره " ، دارنګه د بل چا د قانون منلو په باره كې علامه حسين احمد مدنى رحمه الله په خپل كتاب ارشادات مدنى كې صفحه ۲۲۱ كې ليكى : چه يو مسلمان فوجى يا عسكرى دے ده ته مشر آفسر يا امير امر اوكړی چه مسلمان قتل كړه ، او دا ووائی : چه زه دا مسلمان قتلوم ځكه ما ددې مشر نمک ( مالګه ) خوړلې دے نو چه اوس دا ماته څۀ حكم كوی نو دا به زۀ منم نو دا فوجى يا عسكر هم كافر دے او دده سره به دوستى نۀ ساتئ او دده سره به هغه شان تعلق ساتئ لكه چه څنګه د نورو كافرانو سره تعلق ساتل كيږی او دا واجب القتل دے .

**بله فتوى** : علامه شوكانى رحمه الله فتوى وركړيده د هغه خلقو په باره كې چه څوک خپل احكامات طاغوتی حكمرانانو ته وړی ، فرمائی : چه پديكې هيڅ شک او شبهه نشته دے چه

څوک د الله او د هغه د شريعت منکر وی هغه شريعت چه د هغې حکم الله تعالىٰ نبی کريم ﷺ ته زباني ورکړيدے نو د هغوی خلاف جهاد لازم دے تر هغه پورے چه دوی د اسلام احکامات قبول کړی نۀ وی او پدې خبره د دوی يقين نۀ وی کړے او خپل ټول معاملات ئې د شريعت مطابق کړی نۀ وی ، او په هغې باندې ئې فيصلې نۀ وی کړی او تمام طاغوتی او شيطانی امور دوی پريخې نۀ وی چه په هغې کې دوی ملوث دی نو تر هغې پورے دا خلق کافران دی ، او دغه شان علامه ابن کثير رحمه الله په البداية والنهاية کې فرمائی : چه کوم سړے په منسوخو شريعتونو باندې فيصله کوی نو دا سړے کافر دے ، او بيا ورپسې روسته پخپله وائی : چه پدې باندې هم سړے کافر کيږی چه وائی : چه دا خو په يو وخت کې د الله شريعت وو او چه کوم سړے د الله شريعت پريدی او د هغې په بدل کې بل قانون اختيار کړی نو هغه به څنګه کافر نه وی ، لکه چه تاتاريانو د ځان دپاره ياسق جوړ کړيدے .

نو دا چه بيان کړې شوه نو دا ټوله د تحکيم القوانين مسئله وه ، او پديکې دا خبره واضحه کړے شوه چه دغه پنځه صورتونه په چا کې هم راغلل نو دغه سړے به اعتقادی کافر وی .

او هر چه هغه سړے چه د رشوت يا د يو بل لالچ د وجه نه په هغه فيصله اوکړي نو هغه اعتقادي کافر نه دې بلکه کفر دون کفر کې دے ګناه کبيره کې دے مخرج عن الملت ندے .

وبالله التوفيق ، وما ذلک علی الله بعزيز .

❊❊❊❊❊

## 9 / موضوع: جمهوريت [اوله حصه]

مضمون د اکثریت پرستۍ شروع وو چه « منهج الدین بناء علی الحق لا علی الکثرة » چه د دین منهج دا په حق پرستۍ باندې پروت دے نه په اکثریت پرستۍ باندې ، او په هغې کې بیا څلور مضامین واضحه کړے شو ، ۱/ اکثریت پرستی ، ۲/ طاغوت ، ۳/ دین او سیکولرزم ، ٤/ تحکیم القوانین ، او دا څلور خبرے په حقیقت کې داسې وو لکه یوه مقدمه تړل یو نظام طرف ته ، چه دا اکثریت پرستی په کوم نظام کې استعمالیږی نو هغه نظام طاغوتی نظام دے، سیکولرز نظام دے او په دغه کې تحکیم القوانین کیږی قوانینو د غیر الله ته ترجیح ورکول کیږی ، او دا د طاغوت او تحکیم القوانین مسئله چه کومه ده نو دا صرف په یو نظام کې نده بلکه دا په ټولو نظامونو کې ده ، که هغه نظام د کمونیزم دے نو هغه هم د غیر الله قوانین رائج کوی ، که هغه سوشلیزم دے ، که هغه بریټش نظام دے ، د الله جل جلاله د قانون نه غیر چه څومره قوانین دے نو دوی ورلره اختیار ورکوی ، خو چونکه پدې نورو قوانینو کې څه حدبندی هم وه او هر چه جمهوریت دے چه دا مونږ ئې اوس شروع کوو ( بفضل الله ) نو پدې کې هیڅ قسم حدبندی نشته د هر انسان نه دا جمهوریت خدائې جوړوی ، او پدې موضوع د جمهوریت کې به مونږ ان شاء الله ښهٔ واضحه بحث کوو ، او مونږه دلته نه د کمونیزم نه بحث کوو ، نهٔ د سوشلیزم نه ، نه د بریټش نه بلکه د جمهوریت نه به بحث کوو ، دا ځکه چه دا نظام نن صبا په دنیا باندې حاوی ( غالب ) شوے دے ، او په ټوله دنیا باندې یو عفریت ( د پیری نوم دے ) ناست دے نو ځکه به ددې نه واضحه بحث کوو ، او د کمونیزم نه بحث کول نن دومره فائده نه کوي ، هاں لګه فائده ئې شته خو چونکه د کمونیزم دور تیر شو هغه مات شو دارنګه د نورو نظامونو دور تیر شوے دے اوس دغه یو نظام پاتې دے چه جمهوریت دے نو ځکه ددې نه بحث کوو ، او زمونږ مقابله هم ددې سره ده ، او کوم مسائل چه مخکې اووئیل شو نو دا اکثر خلق په جمهوریت کې دننه وائی او مونږ ترینه باهر وضاحت اوکړو ځکه چه کیدے شی صبا جمهوریت مات شی او بل یو نظام رامخکې شی نو بیا ستاسو په ذهن کې دا خبره پرته وی چه بس یره جمهوریت کې طاغوت وو ، یا په جمهوریت کې د تحکیم القوانین

مسئله وه ، نهٔ بلکه د الله تعالیٰ د قانون نه بغیر چه هر قانون راوځی او تحکیم القوانین کوی نو بس هغه طاغوت وی نو امید دے چه په هغه موضوع ګانو به ستاسو ذهن خلاص شوی وی .

اوس جمهویت څهٔ ته وائی : نو دا خو مختلف اصطلاحات دی ، په اردو کې دیته جمهوریت وائی ، په انګلش کې دیته ډیموکریسی وائي ، په پښتو کې دیته دیمکراسی وائی ، او په عربئ کې دیته الدیمقراطیه وائی ، نو دا څلور واړه نومونه تاسو زده کړئ دا د اردو واله نوم جمهوریت دا اصل کې د عربئ نه راخستلے شوے دے نو دا څلور نومونه ددې دي نو تاسو چه پدې کې کومه اصطلاح هم اورئ نو دا یوه خبره ده .

۱/ د جمهوریت تعریف ، ۲/ د جمهوریت څهٔ اصول او فروع دی ، ۳/ او د جمهوریت طریقه او نظام څهٔ دے ، ٤/ دا جمهوریت د کله نه جوړ شو ، ٥/ او په آخر کې به دا خبره واضحه شی چه جمهوریت څهٔ شی دے ،

۱/ جمهوریت لفظ ( ددې ټکی ) تعریف ، بیا د ډیموکریسی تعریف ، او بیا به معلوم شی چه جمهوریت کوم نظام دے ، نو د جمهوریت لفظ ( ټکی ) دا د کومې ژبې لفظ دے ، نو دا د عربئ لفظ ( ټکې ) دے دا په اصل کې جُمهور دے .

**د جمهور لغوی تحقیق** : قاموس چه دا په عربئ ډکشنرو کې مشهوره ډکشنری ده دا وائی : چه «**الجمهور معظم کل شیءٍ**» یعنی د یو څیز اکثرې حیصې ته وائی ، او ددې وجه نه دا وائی : چه «**الجمهور من الناس جُلها**» ، یعنی جمهور د خلقو نه غټې حیصې ته ویلی کیږی ، او د فقهې په کتابونو کې هم داسې راځي «**وبه قال الجمهور**» نو کله داسې اصطلاح راشی ، او کله داسې راشي «**وبه قال الجماهیر**» او کله داسې راشی «**وقالت جمهرة العلماء**» " یعنی د اکثرو علماؤ رائی دا ده ، په عربئ کې جمهور په معنی د ډیر والی سره راځی ، دغه شان " لسان العرب " هم یو مشهور کتاب دے د لغتو هغه وائی : «**جماهیر القوم اشرافهم**» " د یو قوم جماهیر د هغوئ اشرافو ته وائی " ، بیا یو څیز ته کله جمهوری څیز وائی نو بیا دا وائی : «**وقیل له الجمهوری**

**لان جمهور الناس يستعملونه»** " وائی یو څیز ته خلق جمهور وائی ددې وجه نه چه هغه جمهور خلق استعمالوی نو هغې ته خلق جمهوری وائی " ، نو دا لغوی معنی ګانې د جمهوریت شوے ، یعنی معنی ئې د عموم شوه ، د اکثریت ، ډیروالی شوه .

بل دې جمهوریت ته په انګلش کې ډیموکریسی وائی ، نو مونږ ددې ډیموکریسی نه اوس اندازه لګوو چه دا کوم نظام دے ، نو دا ډیموکریسی لفظ په حقیقت کې د دوو ټکو (لفظونو) نه جوړ دے ، یو دے « ډیموس **Demos** » بل ټکې دے « کریټوس **Critus** » نو د ډیموس معنی ده په انګلش کې « **People** » یعنی په معنی د خلقو سره ، او په عربئ کې ورته « شِعب » وائی خلق ، عوام ، او د کریټوس معنی راځي : رول ، ګورنمټ ، یعنی حکومت ، او دا ډیموکریسی لفظ اصل کې د لاطینئ یونانئ ژبې نه راغستل شوے دے ، ځکه دا نظام په اول کې په یونان کې شروع شوے وو نو ددې وجه نه ددې اصطلاحات هم ټول یونانی اصطلاحات دی ، نو دا یو کتاب دے " ماډل آف ډیموکریسی " دا کتاب د ډیوډ هلډ دے ، دا یو انګریز تیرشوے دے مشهور جمهوری انګریز وو او د جمهوریت په نقباؤ کې وو یعنی د جمهوریت چه کوم غټ غټ مشران او کبراء دی نو دا هم د هغې په کبراؤ کې وو نو دې انګریز پخپله په دغه خپل کتاب کې ویلی دی او دائې هم وئیلی دی چه دا اصطلاح په کوم وخت کې انګریزئ ته راغله ځکه دا اصطلاح خو مخکې په انګریزئ کې نهٔ وه دا خو مخکې د یونان نظام وو ، او دا به روسته ان شاء الله راشی چه دا نظام تر **16** صدئ پورے په دنیا کې ډیر مبغوض نظام وو هیڅ چا به هم دې طرف ته توجه نهٔ ورکوله ، خو بیا **16** صدئ کې دا نظام بیا په انګلش او نورو ژبو کې مقبول شو او دغه نظام ته ترجیح ورکړے شوه او بیا روسته دغه نظام عملی اوګرځیدو ، نو دا انګریز وائی : چه لفظ د ډیموکریسی دا انګلش ته راغلې دے په **16** صدئ کې دا د فرانسئ نه راغلې دے ، او ددې خپله معنی ډیموس خلق ، او د کریټوس هغه رول دے ، نو د ډیموکریسی معنی دا شوه : چه حکم العوام ، یعنی د خلقو حکومت ، نو دینه پته اولګیده چه د خلقو حکومت دیته ویلې کیږی ډیموکریسی .

**د جمهوریت اصطلاحی تحقیق** : **۱/ تعریف** : په یونانئ ژبه کې یو کتاب دے د ارسطو چه دا یو مشهور سیاست دان تیر شوے دے د عیسیٰ علیه السلام نه تقریبا **300** کاله مخکې تیر شوے دے او د هغه نوم دے ارسطو او بیا دې یو کتاب لیکلې دے " ریپبلک **Republic** " او بیا د دغه کتاب ترجمه کړیده ابو النصر الفارابی چه کوم مشهور مسلمان سائنس دان تیر شوے دے ، نو دغه الفارابی په خپل کتاب کې دې جمهوری نظام ته نوم ورکړیدے «**المدینة الجماعیة**» یعنی هغه ښار چه په هغې کې جمعیت ، او اکثریت ته کتلې شی ، او بیا دغه الفارابی د «**المدینة الجماعیة**» تعریف کوی چه : «**هی التی قصد اهلها ان یکونوا احرارا ویعمل کل واحد منهم ماشاء**» " دا هغه نظام دے چه اراده کړی وی اهل ددې ښار چه دوی دې آزاد وی ( هم د انسانانو د حکم نه او هم د الله د حکم نه ) او چه د کوم سړی څۀ خوښه وی هغه کار دې کوی " نو بس دیته جمهوریت وائی .

نو ددې تعریف نه مونږ دا خبره معلومه کړه چه په جمهوریت کې حریت شرط دے آزادی پکې شرط دے ، ددې وجې نه پدې خبرونو کې اکثر دا خبره کیږی چه دا آزادی ده مونږ په صحافیانو باندې پابندی نشو لګولې ، یا چه د پیغمبر علیه السلام په باره کې څوک ګستاخی اوکړی نو دوی بیا وائی چه دا خو زمونږ جمهوری حق دے ، ځکه چه د جمهوریت په بنیاد کې دا خبره پرته ده چه هغه دې آزاد وی هم د الله جل جلاله د بندګئ نه او هم د انسانانو د بندګئ نه او د هر سړی چه څۀ خوښه وی نو هغه کار دې کوی ، نو دا د ابو النصر الفارابی تعریف شو .

**۲/ تعریف** : دائرة المعارف کړیدے هغه وائي : د جمهوریت تعریف دا دے : «**جمهوریة دیمقراطیة**» یوه خو دا خبره شوه چه جمهوریت او ډیموکراسی دا یو شی دے ، او دویمه خبره ورسره دا کوی : «**وهي ماتکون بید اکثر الاهالی**» " دا هغه نظام دے چه دا په لاس د اکثرو خلقو کې وی " یعنی د اکثریت په خوښه باندې چه کوم قانون جوړیږی نو دغه نظام ته جمهوریت وائی ، نو دویمه خبره مونږ دا معلومه کړه : چه پدې جمهوریت کې شرط اکثریت

دے ، ځکه اولنی شرط په اول تعریف کې ذکر شو چه هغه حریت وو ، او دویم شرط : اکثریت شو . ددې وجه نه اکثریت پرستۍ بحث مونږه داول نه لګ ډیر بیان کړو چه دلته تاسو ته آسانی وي .

**٣/ تعريف** : علم السیاسی والا دا تعریف کړیدے : «**واذاكان الحكم لاكثرية الشعب كان المنتظم جمهورياً او ديمقراتياً**» " کله چه فیصله د اکثریت خلقو په لاس کې وی نو ددې منتظم ته به جمهوری وئیلی کیږی او یا ډیموکراسی وئیلی کیږی " ، نو ددې نه هم معلومه شوه چه په جمهوریت کې فیصله د اکثریت په لاس کې وی ، او حکم هم د اکثریت په لاس کې وی ، نو حکم او فیصله ئې خلقو ته اوسپارله .

**٤/ تعريف** : «**الامة ، او الدولة يعين ذعيمها لوقت محدود لا بتوارث بل بأنتخاب جمهور الامة**» " جمهور هغه خلقو ته وائی یا هغه حکومت ته وائی چه خپل مشر مقرر کوی د معین وخت دپاره نه په توارث سره ( یعنی په میراث سره نه وی چه پلار ئې مړ شی نو زوئ به ئې خامخا مشر کیږی ) بلکه دا به په انتخاب د اکثرو خلقو سره وی " نو دیته جمهوریت وائی ، نو ددینه دا خبره معلومه شوه چه په جمهوریت کې مشری د معین وخت او قائم دپاره وی او د معین وخت نه بعد هغه سړے معزوله کیږی ، نو پدیکې حکومت محدود وی .

**خلاصه** : نو څلور خبرے معلومې شوے یو حریت چه ددې په باره کې به بیا دا خبره واضحه کړے شی چه حریت پدیکې دا آزادی ده دا کومه آزادی ده نو دا به بیا ددې په اصولو کې راځي چه په هغه اصولو کې دا خبره ده چه جمهوریت حریت غواړی نو کومه آزادی غواړی هغه بیا په تفصیل سره واضحه کړے شی ، دویم : اکثریت غواړی ، نو کوم اکثریت غواړی ځکه اسلام دغه شان اکثریت نۀ غواړی هغه ئې سره د کمال نه ئې منی او بلا کماله اکثریت اسلام نۀ منی ، دریم : ددې حکم اکثریت ته په لاس کې ورکړے شو غیر الله ته ئې په لاس کې ورکړو ، نو اوس دا خبره اسلام نه منی ، څلورم : چه حکومت به محدود حکومت وی او دا هم اسلام نۀ غواړی ځکه اسلام وائی چه یو سړے دې امیر مقرر کړو که هغه فاسق

هم وی نو هغه تهٔ نشی معزول کولې تر هغې پورے چه هغهٔ صفا کفر نهٔ وی کړے او چه کله ئې صفا کفر اوکړو نو د هغې نه پس به هغه معزوله کیږی ځکه حدیث کې راځي «**الا ان ترو کفراً بواحاً**» مګر چه کله تاسو صریح کفر د هغې نه ووینئ نو بیا به ئې معزوله کوئ“ او جمهوریت وائی : چه د معین وقت پورے به مشر وی .

نو دلته زمونږ او د دوی لارے جدا شوے لکه تا اوپیژندله چه ډیموس او کریټوس معنی اوشوله ، یعنی د خلقو حکومت ، لکه د سکول په کتابونو کې دا خبره کوی چه جمهوریت چاته وئیلی کیږی او ددې ورته بیا ډیر صفت کیږی هغه کې وائی : ګورنمنټ آف د پیپل فرام د پیپل ، بائی د پیپل ،

(**The Gournment of the people from the people by the people** )

وائی چه جمهوریت چاته وئیلې کیږی : چه د خلقو دپاره حکومت وی ، په خلقو باندې حکومت وی ، د خلقو حکومت وی ، نو دغه ته جمهوریت وائی ، نو دوی دا تعریف ډیر په فخر سره کوی ، او دا تعریف ئې زمونږ سره مخالف شو په قرآن او سنت کې ځکه قرآن وائی « **ان الحکم الا لله** » ” د قانون سازئ واک او اختیار به د الله په لاس کې وی “ او جمهوریت وائی چه نهٔ «**ان الحکم الا لشعب**» حکومت به نوی مګر د خلقو او د عوامو په لاس کې به وی چه عوامو څهٔ فیصله اوکړه بس هغه به مونږ ته منظوره وی ، نو دلته لارے جدا شوے ، زمونږ نظریه دا شوه : چه لا إلٰه الا الله معبود نشته مګر الله جل جلاله دے ، او ددوی نظریه دا شوه «**لا إله الا الشعب**» معبود بل نشته مګر عوام دی ، نو دوی انسان د معبودیت درجې ته رسوی ، او هر چه کیپټل ازم نظام دے دا سرمایه دارانه نظام دے دا هم ددې یو شاخ دے نو په هغې کې هم دغه خبره ده هغه هم انسان د معبودیت درجې ته رسوی ځکه هغه مقصد د انسان په دنیا کې دا ګنړی چه انسان دې د ځان دپاره په دنیا کې رزق اوګټی ، هغه دې ښهٔ سهولیات حاصل کړی ، او مقصد د انسان دا دے چه هغه دې ډیرے پیسې جمع کړی ، نو هغوی انسان د خپل نفس ( خِیټیے نه تاو وی راتاووی ، ددې وجه نه الله فرمائی : ﴿ أَرَءَيْتَ

مَنِ ٱتَّخَذَ إِلَٰهَهُۥ هَوَىٰهُ أَفَأَنتَ تَكُونُ عَلَيْهِ وَكِيلًا ﴿٤٣﴾ ﴾[1] ، بیا بل ځائی کې الله تعالیٰ فرمائی:

﴿ وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّنِ ٱتَّبَعَ هَوَىٰهُ بِغَيْرِ هُدًى مِّنَ ٱللَّهِ ﴾[2] " چه خپل خواهش ئی خپل معبود ګرځولې وی د خواهش په عبادت کې لګیا وی نو هغه دا دوه نظامونه دی یو جمهوریت او بل کیپټلیزم ، نو د ده او زمونږ لاره اول په تعریف کې جدا شوه .

**اقسام د جمهوریت** : نو جمهوریت کې درې قسمونه دی : ۱/ اول ته په عربئ کې مباشر جمهوریت وائی او دا دیته وائی : چه عوام په خپل خوښه باندې راجمع کیږی روزانه او بیا د ورځې دپاره طریقې جوړوی او قانون رائج کوی ، او دا هم په یو وخت کې تیر شوے دے چه په یونان کې مجلس پنځ صد به ئی ورته ویلو د پنځوو سو « 500 » کسانو مجلس نو دا په هره علاقه کې به پنځه سوه کسان راټولیدل او هغوی به بیا د آفتاب یعنی د نمر د راختلونه مخکې به هغوی مشورې د حکومت دپاره جوړولې ، چه نن دې دا کار اوشی ، او نن دې دا قانون رائج شی ، نو هغې ته مباشر نظام ویلې کیږی ، او دیته په اردو کې عمومی نظام وئیلې کیږی.

۲/ هغی ته په عربئ کې مجلس النواب وئیلې کیږی چه په انګلش کې ورته پارلیمنټیرین وئیلی کیږی ، او پدې طریقه عوام پخپله نۀ شریکیږی بلکه عوام د خپل طرف نه څۀ نمائندګان نائبین جوړ کړی او بیا هغه نمائندګان په اسمبلئ کې ناست وی او هغوی د دوی دپاره قانون جوړوی او بیا د هغه قانون د تنفیذ دپاره طریقه جوړوی ، لکه نن په عامو ملکونو کې چه اسلامیه ځان ته وائی نو دغه نظام پکې روان دے .

۳/ هغې ته په عربئ کې مباشر شبه النیابة وئیلې کیږی ، دا د جمهوریت داسې شکل دے بذات خود خو دې ټول کارونه نه کوي خو داسې هم نده چه دې نمائندګانو ته ئی کارونه پریږدې وی بلکه دوی ددې په مینځ کې وی ، بعضی غټ کارونه چه کیږی نو بیا د دغه عوامو

---

1) [ سورة الفرقان : ٤٣ ] .

2) [ سورة القصص : ٥٠ ] .

نه پختنه کیږی چه څۀ کول پکار دی او چه کومه وړه خبره وی نو هغه بیا دغه نمائنده ګانو ته پریږدي وی ، او دا نظام داسې خاص چرته موجود ندے ، چه دوی د عوامو نه پختنه کوی ، او بیا دغه عوام راپاڅیږی او دا مشر معزوله کوی چه ته بس لرې شه ، نو دا دریم قسم د جمهوریت شو .

**د جمهوریت درې درجې** : نو د جمهوریت درې درجې دی : ۱/ قانون سازی ورته وائی ، ۲/ تنفیذ عملی ، ۳/ تنفیذ بزور شمشیر او د دې نه دفاع کول ، نو قانون سازی دا د پارلمان کار دے ، دا کار د صدر په لاس کې دے ، او دا کار د سینټ او د نظریاتی کونسل په لاس کې دے ، ۲/ تنفیذ عملی د عدالت کار دے ، چه دا د سیشن کوټ نه شروع شی ، اول سیول کوټ دے ، بیا سیشن کوټ بیا ددې نه پورته هائی کوټ دے ، پدې کوټ کې د دوی فیصلې چیلنج کیږی او دسیشن کوټ په خلاف په هائی کوټ کې درخواست تۀ جمع کولې شی ، او ددې نه پورته بیا سپریم کوټ دے چه دا په ملک کې هر کار کولې شی ، ۳/ تنفیذ بزور شمشیر دے ، چه په توره او په زور باندې ددې تنفیذ کول ، او دا کار د هغه ادارو دے چه کومې ادارې دا قانون نافذ کوی ، یعنی قانون نافذونکې ادارے مثلاً عسکر شو او پولیس او انټیلیجنس چه څومره شعبې هم دی ، نو دا درې درجې د جمهوریت شوے .

**دا جمهوری لفظ په سیاست کې د کلنه استعمال شو** : نو دا د ۱۳۰۰ صدئ عیسوی په درمیان کې ویلیم یو سائنس دان دے هغه د ارسطو د کتاب پالټکس په لاطینئ کې ترجمه اوکړه چه په هغې کې د عوامو حکومت ته ارسطو کوم لفظ استعمال کړے وو نو هغه ډیموکریټیا وو ، ددې لفظ ترجمه دغه ویلیم یهودی کوله نو دۀ چه کله په انګلش کې ترجمه کوله نو ددې ترجمه ئې په ډیموکریسی سره اوکړه ، نو ددینه معلومه شوه چه په عمومی سیاست کې دا لفظ په ۱۳۰۰ عیسوی صدئ کې استعمال شو ، او اوس **2000** عیسوی دے نو تقریبا د نن نه ٦۰۰ سوه کاله مخکې دغه لفظ یهودی استعمال کړے دے .

**اوس دا جمهوريت په يونان كې څنګه جوړ شو** : نو اصل كې جمهوريت دا ډيره زړه فلسفه دوی جوړه کړے وه او يونانی فلسفه ده اسلامی فلسفه نده ، او دا جمهوريت دوه نشئته يعنی دوه ځائی کې دا جمهوريت راپاڅيدلې ده ، يو نشئت اولی دے چه دا د عيسی عليه السلام د پيدائش نه مخکې ٤٠٠ کاله يا ٥٠٠ کاله مخکې پيدا شويده ، او دويم نشئت ئی د ١٦٠٠ صدئ نه دے ، د ١٦٠٠ صدئ پورے دا نظام چا نهٔ خوښولو دا يو ناکام سياسی نظام وو .

**او بيا دا چا جوړ كړو** : نو دا اصل کې ښځپله جوړ شوے دے ، ځکه مخکې په يونان کې اووه اته قسمه حکومتونه وو پديکې ارسطو وائی چه زما خوښ حکومتونه درې دی د ارسطوا د سکندرې اعظم په وقت کې وو او دغه سکندرې اعظم په ٣٣٣ صدئ کې تير شوے دے قبل المسيح وو تقريبا درې څلور سوه کاله مخکې جوړيږي : ١/ بادشاهت ، او دا په توارث سره وی چه پلار مړ شی نو بيا ځوئ شی ، چه ځوئ مړ شی نو بيا نوسی (لمسی) شی ، ٢/ نظام چه زما خوښ دے نو هغه اشرافيه دے ، يعنی د شريفو خلقو چه مالدار کورنئ ته وائی ، ٣/ قسم نظام هغه عموميت دے ، چه دا يو قوم پورے خاص ندې بلکه پديکې عموم وو ، بيا دا وائی : چه کله دا درې قسمه سياستونه وران شی ګډ وډ شی ، نو د باشادهت نه جبريت جوړ شی په جبر باندې نظام قابو کړی ، او اشرافيه نظام کله کله وران شی نو دينه جوړ شی مطلق العنانيت ، او بيا ددې دا کار دے چه اوس ددې اشرافيوؤ خپله خوښه ده د حکومت ټولې واکې په خپل لاس کې واخلی او هره طبقه د دوی په لاس باندې مقرريږی ، هر قانون د دوی په خوښه مقرريږی ، او دوی پدې کې هيڅ چا ته ددې قانون اختيار نهٔ ورکوی ، او دريم قسم نظام عموميت وو دا عموميت چه وران شی نو بيا ددينه عواميت جوړ شی او ددې عواميت نوم دې بيا جمهوريت ، نو اوس مونږ د ارسطو د فلسفې نه يوه خبره معلومه کړه اګر چه کافر دے هغه وائی : چه جمهوريت د حکومت وران شوے شکل دے ، او عوامو ته آزادي ميلاؤ شی او بيا حکومت په لاس کې واخلی نو ديته بيا جمهوريت وائی .

اوس دا حکومتونه ولې ورانيږی نو د هغې په تفصيل کې يو کتاب دے مغربی جمهوريت کی حقيقت اور سراب دا کتاب ليکلې دے ډاکټر مستفيد احمد علوی نو هغه وائی چه دا ځکه

جوړ شی : چه کله تاریخ انسانی مطالعه سړے اوکړی نو د بادشاه حیثیت بیا مطلق العنانیت حیثیت اختیار کړی

اول بادشاهت وی بیا هغه ټولې چارے په خپل لاس کې واخلی او په عوامو باندې د جبر او د ظلم کړئ راتنگه شی نو په عوامو کې رد عمل راپیدا شی ، نو عوام بادشاه لری کړی او د حکومت ټول نظام په خپل مشترکه شکل کې واخلی نو بیا د دغه نه جمهوریت جوړ شی ، دې وائی یو قدیم مفکر حواله ورکو یچه هغه وائي چه تر ۱۹۰۰ صدئ پورے دې نظام ته مقبولیت نه وو حاصل شوے او صرف صدئ کې دیته مقبولیت عامه حاصل شوے دے نو دلته مونږه د جمهوریت ابتداء ذکر کړه خو بهر حال یوه بله ابتداء هم بیا ددې ذکر کوو هغه بیا روسته بیانوو .

اوس د جمهوریت خپل شکل څه شی دے : نو دوی وائی چه دا خو په مختلفو لارو باندې راتیر شوے دے ، کله د یونانی په دور کې پاتې شویدے نو دا د یونانی فلسفې نه متأثره دے ، کله په روم کې پاتې شویدے نو د رومی تهذیب نه متأثره دے ، کله په بل ځائی کې پاتې شویدے نو بیا د هغه ځائی نه متأثره شوے دے چونکه د انسانی دماغو نه جوړ قانون دے نو چه چرته هم لاړ شی نو په ده کې د هغه ځائی رنګ راځی نو ددې وجه نه پدیکې مختلف شکلونه دی او مونږ ته پته نۀ لګیږی چه ددې خپله معنی څۀ ده ، حتی چه ساټوی یو سائنس دان دے هغه وائی : چه په واضح طور سره چه مونږ په کوم دور کې وسیږو دا یو داسې دور دے چه دا د یو غیر واضح جمهوریت دور دے ، یعنی جمهوریت پکې واضح ندے ، بیا وائی : که د جمهوریت چرته پنځه یا شپږ معانی لرلې نو ګذاره به شوے وے خو دلته نقصان دا دے چه د جمهوریت دومره ډیرې معانی دی چه مونږه یوه معنی هم نشو اغستلې ، ددې وجه نه یو بل سیاست دان دے چه د هغه نوم دے ډال دا وائي چه : بهر حال چه د کومې اصطلاح ډیرے معانی ګانې وی نو هغه د سره نه څۀ شی ندے ، بعضی پکې وائی : چه د دغه ډیرو معناګانو کولو والا دا ښۀ کار دے چه چونکه پدیکې مختلف تصورات راتلې شی نو هر یو مذهب والا پکې خپله یوه لار ویستلې شی .

**د جمهوريت تاريخ** : اوس مونږ د جمهوريت ابتدائی نقوش واضحه کوو ، نو دوی ابتدائی نقوش د ډير لرې نه رانيسی ، دوی د يونان هغه مثالی رياستونه چه بحيره روم او د دغه بحيرو سره په خوا کې پراته دی ، نو دوی وائی : د هغه بحيرو په کنارے باندې لکه شمالی مقدونيا ده، بلغاريا ده ، المانيا ده ، اټاليا ده نو دغه ملکونه د جمهوريت ابتدائی خاکه ده ، او د روح جمهوريت نه مراد د عوام الناس د مرضئ حکومت کول دی ، او که چرته ته وائی : چه د جمهوريت د روح تعريف دا اوکړے چه ددې نه مراد د عوام الناس د مرضې حکومت دے که چرے دا تعريف تا د جمهوريت اوکړو نو دوی وائی : چه بيا د قبل الطوفان يعنی د طوفان نوح نه مخکې دا نظام راروان دے ، خو د طوفان نوح نه هم مخکې دا نظام د کفر په لاس کې وو، ځکه چه د نوح عليه السلام قوم هم قبل الطوفان دا نظام منلو هغوئ خپل سستم جوړ کړے وو او نوح عليه السلام ورته راغلې او ورته ئی اووئيل چه : ﴿ أَنِ ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ وَٱتَّقُوهُ وَأَطِيعُونِ ۝٣ ﴾[1] چه اے خلقو دا د يغوث ، يعوق او نسر عبادت پريدئ او راشی صرف د يو الله تعالیٰ عبادت وکړئ او د الله نظام اومنئ ، **يعنی خپل حاکميت پريږدئ او د يو الله حاکميت اومنئ** ، خو چونکه دوی د نوح عليه السلام دا خبره اونهٔ منله نو الله پرې طوفان راوستلو او غرق ئی کړل ، او ددوی په نيز باندې دوی وائی : چه دې نظام په خلقو کې اول دا کار اوکړو چه حروف تهجی ئی د خلقو په مابين کې ايجاد کړل چه ليکل به ښنکه کوی ، فن تحرير ئی ايجاد کړو ، د نهرونو طريقې ، او زرعی خوشحالی ئی په خلقو کې راوستلې ، او بيا وائی : دا شمالی علاقې د فرات په کينارو باندې قبل الطوفان آبادې وے ، خو دا خبره غلطه ده ځکه زرعی خوشحالی خو آدم عليه السلام د ځان سره د آسمان نه راوړے ده ، چه آدم عليه السلام کله دنيا ته راغلې نو په دنيا کې د زراعت شعبه شروع کړے وه ، نو دا خبره خو ئی غلطه شوه ، او هر چه د حروف تهجی په باره کې خبره کوی ، نو هغه خو ادريس عليه السلام دې دنيا ته دغه ترتيب د ليکلو راوستې دے ، نو دغه خبره هم غلطه شوه ، او د نهرونو

---

[1] [ سورة نوح : ٣ ] .

خبره چه تاسو کوئ، نو دا خو آدم علیه السلام چه زرعی طریقې کولې نو دا خو ورسره خامخا راځي، دا د جمهوریت طریقه نده، بلکه الله جل جلاله چه آدم علیه السلام ته د ټولو څیزونو نومونه خودل نو دا ئی هم ایزده کړی وو او دنیا ته ئی راوړی وو، نو دا کارنامې اصل کې په حقیقت کې د حاکمیت اعلی دی کوم چه د الله جل جلاله حاکمیت دے، نو دوی دغه کارنامې ځان طرف ته منسوب کوی چه دا د جمهوریت کارنامې دی چه دا کارونه ئی کړی دی، خو بهر حال چه دوی هره خبره هم اوکړی نو دوی ټول نظر پدې ساتی چه نهرونه ئی جوړ کړی وو، زراعت ئی کړے وو، خو الله پرې رد کړے دے الله فرمائی: ﴿ يَعْلَمُونَ ظَاهِرًا مِّنَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَهُمْ عَنِ الْآخِرَةِ هُمْ غَافِلُونَ ﴾[1] او دوی خو ظاهر د دنیا پیژنی خو د آخرت نه غافله دی، او د آخرت په باره کې به تاسو چرته هم څۀ کارنامه ونۀ وینئ.

اوس پدې جمهوریت کې کله مذهبی شکل پروت وی، کله پکې سیکولر نظام پروت وی نو دا نظریات پدې جمهوریت کې د کوم ځائی نه راغلل ؟ : نو دا نظریات اصل کې پدې جمهوریت کې د مغرب نه راغلل ځکه په مغرب او یونان کې د خلقو ذهنونه دوه قسمه وو: یو هغه قسم خلق وو چه هغوی انسان داسې ګنړلو چه انسان د الله جل جلاله معبود دے، چه هغه عیسایان او داسې نور خلق وو چه عیسایت ئی خوښولو نو هغوی به دا وئیلې چه انسان د الله تعالیٰ بنده دے او دا حاکمیت په حقیقت کې د الله جل جلاله دے، او د حکومت دا نظام دا قدرتی نظام دے او دا دې په هغه قدرت کې اوچلولې شی، او دویمه نظریه دا وه: چه دا نظام تخلیقی نظام دے دا نظام انسان پخپله جوړ کړی دے او دا دې انسان پخپله باندې اوچلوی، نو دغه دواړه قسمه نظام چونکه د مغرب نه راغلې دے دا جمهوریت نو د دواړو قسمونو نظریاتو عکس پدې باندې پروت دے، په بعضو ځاینو کې دا جمهوریت تاله زړه بنۀ کړی چه راشه تۀ پدې لاره باندې اسلام هم راوستلې شی خو حقیقت کې داسې نۀ وی، او هغه بل کس له هم زړه بنه کړی چه زۀ خو سیکولر نظام یم د مذهب ماسره هیڅ قسمه تعلق

---

[1] [ سورة الروم : ٧ ].

نشته نو د سيکولر خلقو ترينه هم زړه ښهٔ کيږی .

**نوپدې جمهوريت کې دوه قسمه نظريات دی** : ١/ ايفکيوری نظريات ، دا په مغرب کې يوه نظريه ده ، دا ايفکيورين يو کس تير شوے دے او ددې خلقو نظريات دا دی : هغوی وائی : چه انفرادی خواهشاتو د تکميل په خاطر باندې زندګی تيرول دا حقيقی خوشحالی ده ، خو د ايفکيوری خپله نظريه دا نهٔ وه ، ځکه کتابونو دا ليکلی دی چه د هغې نظريه دا وه : چه حقيقی خوشحالی د اخرت والا ده او په دنيا کې دا انسان خپله زندګی ددې دپاره تيره کړی چه دهٔ ته حقيقی مسرت حاصله شی ، يعنی پابنده زندګی تيره کړی ، او د لاندې خلقو نظريه ئی دا جوړه شوه : چه په دنيا کې په ځان باندې پابندئ مهٔ راوله انفرادي خواهشاتو تکميل کوه ، چه څهٔ دې اوکړل نو ښهٔ دې اوکړل ، نو دا د حريت هغه ماده وه چه په جمهوريت باندې ددې هغه اثر هم پروت دے .

بل طرف ته د رواقيوؤ نظريه ده : او رواقيوؤ دا هم په مغرب کې يوه نظريه چليږی ، يوه خبره دوی دا کوی چه ټول انسانان مساوی دی يو برابر دی که ښځه ده که سړے دے ، که غلام دے دا ټول يو شان دی ، خو اسلام وائی چه نهٔ : ﴿ ٱلرِّجَالُ قَوَّٰمُونَ عَلَى ٱلنِّسَآءِ ﴾[1] لکه روسته به دا راشی ، دويمه خبره : ټول د يو قانون قدرت د لاندې به زندګی تيروی اوس دلته ئې مذهب ته اشاره وکړه ، دريمه خبره : د ټولو حقوق يو برابر دی ، يعنی په ميراث کې چه سړے څومره حصه اخلی نو ښځې ته دې هم هغه هومره حصه ورکړے شی ، نو دا درې واړه نظريات جمس (GM S) ليکلی دی نو پدې باندې کليسائی افکار پراته دی لکه د کليسا سيکولر يو دا دے : چه انسانان ټول يو برابر دی ښځه او سړے يو برابر کوی ، بل طرف ته وائي چه حاکميت د الله جل جلاله دے نو ديته کليسائی افکار په مغرب کې وائی ، او ددې کليسائی افکار يو دا هم دے ، خدائی منی ، او د خدائی عبادت کوی او حاکميت الله ته ثابتوی پدې طريقې سره چه په کليسا کې چه کوم پوپ ناست وی نو دغه پوپ ته دا اختيارات دی

---

[1] [ سورة النساء : ٣٤ ] .

چه دا څنګه قانون جوړ کړی ، او څنګه قانون وران کړی ، او څنګه قانون ته ترجیح ورکړی ، او څنګه قانون مرجوح کړی نو دا ټول اختیارات دوی پوپ ته ورکړل ، دا نه چه په حقیقت کې الله تعالیٰ ته ورکړل خو دوی دیته کلیسائی افکار وائی ، چه قانون قدرت لاندې به زندګي تیروی او د ټولو حقوق به برابر وی ، دا چه جمهوریت کې که تاسو خیال کړې وي دوي مساوات ګلی ډیر یادوی نو دا نظریه ورته ددې رواقیوؤ نه راغلې ده ، نو په حقیقت کې د دوی په روم کې دوه قسمه افکار جوړ شو یعنی مغرب کې : ۱/ چه د حکمرانئ اختیار د الله د طرف نه ورکړے شوے دے نو پدیکې دې د الله جل جلاله احکامات عملی شی ، ۲/ نظریه ئی دا جوړه شوه ، چه هغې ته رومی نظریه وئیلې کیږی او هغه دا وه : چه د قوت او د حکومت سرچشمه هغه ټول عوام دی یعنی دا حکومت د عوامو دے او دا دې د عوامو په خوښه باندې اوچلیږی ، خو دا خبره مخکې مونږه واضحه کړه چه مغرب ته چه کله جمهوریت رسیدلو نو په مغرب کې دغه وخت کې هیڅ قسمه دین نۀ وو موجود ، ځکه چه مغرب ته عیسایت هم ډیر په قلاره او روستو رارسیدلې دے ، او کله چه عیسایت مغرب او یورپ ته رسیدلو نو دا محرف وو تحریف پکې شوے وو ، نو ځکه دوئ اختیارات هغه پوپ ته ورکوی .

خو پدې یورپ باندې یو دور د ظلمت تیر شوے دے چه دوی ورته نشئت عیسایه وائی ، او دا مغرب انتهائی په ذلت او په خوارئ کې پروت وو که تاسو ددوئ تاریخ د صلیبی جنګونو نه مخکې اوګورئ نو په کال کې کم از کم یو میلین خلق د لوږې نه مړه کیدل ، او دومره زیاته قحط سالی وه چه د دوی هیڅ قسمه ذراعت وغیره څۀ نۀ وو ، او چه ارباً پوپ کله راغلې په ایک هزار پچانوې ۱۰۹۵ کې نو ارباً پوپ د دوی په ذهن کې دا نظریه واچوله چه تاسو د مسلمانانو نه بیت المقدس آزاد کړئ نو دوی د بیت المقدس دپاره جنګ شروع کړو د ترکو په لاره باندې نو اول ئې د ترکو سره جنګ اوکړو بیا د انطاکیئ وغیره سره دوئ جنګ کړے وو چه په تاریخ کې دا خبره موجوده ده ، او دوی دا جنګ په ډیر همت سره کړے دے ، ځکه مؤرخینو د دوی د جنګ کیفیت بیان کړے دے چه د جنګ په حالت کې د دوی بلا کسان د لوږې نه مړۀ شویدی ، تردې چه دوی د ځان دپاره سپی حلال کړی وو ، داسې وخت پدوي

باندې راغلې وو چه دوی خپل سامان په سپو باندې ایخودې وو چه د یو ځائ نه ئې بل ځائ ته منتقل کړی ، خو ددې دومره قحط سالئ باوجود دغه پوپ پدې کې دا خبره ورواچوله چه تاسو د مسلمانانو نه بیت المقدس واخلئ او دوی پدغه وخت کې د کلیسائ په نظریه باندې روان وو چه مونږ ته به فتح راځي او عیسی مسیح به راکوزیږی او هغه به د مسلمانانو خلاف جنګ کوی تردې چه دوی په هغه وخت کې دومره ظلمونه اوکړل چه مؤرخین لیکی : چه دوی په بیت المقدس کې دننه ۷۰ هزار کسان دوی شهیدان کړل د مسلمانانو نه او دوی پدې باندې فخر کوی لکه اکثرو مؤرخینو دا خبره لیکلې ده : چه دا ډیره د خوشحالئ ورځ وه چه مونږ د مسلمانانو سرونه کټ کول او بیا په هیکل سلیمانی چه صخره بیت المقدس باندې دوی یو خپل شکل جوړ کړے وو چه پدغه هیکل سلیمانی کې به مونږ اس ګرځولو او په هغې باندې چه کوم سرے سور وو نو ددې مسلمانانو وینې به د هغې د ګوډو ګوډو پورې رارسیدلې ، نو چه کله دوی د دغه دور ظلمت نه په ترقئ ( اوچتې مرتبې ) باندې شول نو بیا په دوی کې دوه قسمه اختلافات پیدا شول : چه یو طرف ته نظریه د رومی راغله چه عوام د قوت سر چشمه ده ، او بل طرف ته نظریه د کلیسائ افکارو راغله ، نو په ۹ صدئ کې د شارلمان په حکومت کې د جاګیردارئ نظام آغاز اوشو چه دا هم د جمهوریت یو اړخ دے ، او دیته کیپټلیزم وئیلې کیږی دا اوس یو یو شاخ ئې جوړیږی نو دا وائی : چه د انسان نه دې پابندئ لرې شی ، او دا چه په اقتصادی لاره کې دې په دۀ باندې پابندی نۀ لګیږی ، خو دغه حکومت کې یو نقصان دا وو : چه غلامی د ده په حکومت کې موجوده وه ، دویم : د ده په حکومت کې طبقاتی تقسیم ډیر زیات وو چه د هغې د وجې نه د دۀ حکومت ډیر خراب وو ، بیا د ده نه پس یو بل کس دے چه نوم ئې **آ ګسټائن** وو چه دۀ د ریاست نظریه پیش کړه ، چه ریاست او حکومت خو امن ته وائی ، او د امن نه دوی څه مراد وی ؟ چه مذهبی جنګ دې نۀ وی ، په مذهب کې دۀ ته آزادی ورکړه ، دویم خبره : چه انصاف دې ورکړے شی چه هر چاته دې آزادی وی ، صحافت ته دې خپله آزادی میلاؤ شی ، وغیره ، نو ددې سره بیا هم غلامی ختمه نۀ شوه ، بیا ددې نه روستو دوه نور سائنس دانان راغلل چه یو نوم پکې **ایمبروز** دے او د بل

نوم **ايسات** دے د دوی نظریه دا وه او دغه د دوی نظریه آکستائن هم وه یو طرف ئې هغه خپله نظریه وه او بل طرف ته ئې د دوی نظریه هم وه : چه انسان چه غلام جوړیږی نو دا د ګناهونو کفاره ده یعنی د دهٔ نه ګناهونه شوی دی نو ځکه ترینه غلام جوړ شوے دے ، خو د آکستائن نظریه پکې دا هم وه چه د کلیسا اختیارات او ددې حکومت دې په بادشاه باندې بالاتر وی یعنی د کلیسا اختیارات دې زیات وی د بادشاه د اختیاراتو نه ځکه چه دهٔ اولنۍ خبره اختیار کړه چه د حکمرانۍ اختیار د الله د طرف نه عطا کړده دے نو کلیسا په زمکه کې د الله نائب دے نو دغه نظام دې کلیسا چلوی ، او دهٔ پسې شاته یو بل سائنس دان دے **ګلیسیس** ورته وائی هغه اووئیل : چه زما دا نظریه نده بلکه زما نظریه هغه ده چه دا ورته نوم ورکوی **دوشمشیری نظریه** او دا هغه نظریه ده چه دا وائی : چه د خدائی دې ځانته اطاعت وشی ، او د بادشاه دې ځانته اطاعت اوشی ، او دا معنی مونږ مخکې د سیکولریزم کړې وه ، خو بیا پدې پسې یو بل سائنس دان راځي او هغه ددې په خلاف وائی چه د هغه نوم دے **ګریکولی** نو د هغه نظریه داسې نهٔ وه ، ځکه دا وائی چه کلیسا ته دې فوقیت ورکړے شی ، او بیا پدوی کې یو بل سائنس دان دے چه د هغه نوم دے **ایکوناس** چه هغه پدیکې د مختلفو حکومتونو نظرې پیش کړے هغه یوه نظریه دا پیش کړه چه معاشره دا یو قدرتی سکیم دے او په هغې کې دې مختلف قسمه حکومتونه جوړ شی ، نو د هغه په نیز باندې تقریبا پنځه شپږ حکومتونه جوړیږی : ١/ یو حکومت دائمی او ابدی دے چه هغه د الله پاک حکومت دے ، ٢/ بل قدرتی او فطری حکومت دے چه هغه الله پاک کلیسا واله ته ورکړیده ، ٣/ بل حکومت الٰهی دے چه دا هم د کلیسا په لاس کې دے او ورسره ورسره کلیسا حکومت هم چلوی ، ٤/ انسانی حکومت دے چه عوام دې حکومت جوړ کړی او بیا د عوامو د رائی مطابق دې حکومت چلوی ، او بیا پدې شاهی حکومت کې هم مختلف شاخونه جوړوی ، اول : متبرک شاهی دے او دا هغه حکومت دے چه د کلیسا پوپ راولی او هغه حکمران جوړ شی ، یابه د کلیسا په هدایاتو باندې قانون سازی کوی او دیته متبرک شاهی نظام وائی ، دویم : او بل صرف

شاهی نظام دے چه حکومت د شاهی په خاندان کې راروان وی ، دریم : سیاسی نظام دے چه هغه سړے دې مخکې شی چه هغه د قوم په سیاست باندې ښهٔ پوهیږی ، څلورم : اقتصادی نظام دے او دا هغه دے چه کوم سړے اقتصادیات ښهٔ کولې شی نو هغه دې مخکې کړی شی ، خو ددې خپله نظریه هغه اول قسم ده چه هغه متبرک شاهی دے ، خو ددې سره په مقابل کې یو بل راپاڅیدو چه داسې نظام ندې پکار بلکه بادشاه دې د خپل حد پورے محدود وی او پوپ دې په خپله کلیسا کې زندګی تیروی ، بهر حال چه دغه نظریات چه دوی ته راوړاندې کیدل نو د دوی په مینځ کې جنګ شروع شو ، یو وخت به داسې راغلې چه د کلیسا پوپ به راتلو او بادشاه ته به ئی تاج په سر کولو هله به بادشاه جوړیدلو ، خو بیا د هغې نه اختلافات جوړ شو بادشاهانو خپل حق غوښتلو او عوامو خپل حق غوښتلو او کلیسا جبر کولو ظلم ئی کولو نو بیا ددې په مینځ کې په فرانس کې ډیرے جګړے اوشوے چه کله د دغه جنګونو نه حکومت فارغ شو په ۱۳ عیسوی صدئ کې نو د دوی محاکمه په صلح سره اوشوه او په دغه صلح کې هم دا خبره اوشوه چه په آخری کې هم دغه نظریاتو ته ترجیح میلاؤ شوه او چه کوم نظریات د کلیسا والا وو هغه ئی ختم کړل او دې ته ترجیح ورکړے شوه چه «**ما کان لله کان لله وما کان للقیصر کان للقیصر** » چه کوم د الله دپاره دی نو هغه د الله دپاره شو او چه کوم د بادشاه دپاره دی نو هغه به د بادشاه دپاره وی ، نو د بادشاه د حکومت سره کار دے د کلیسا سره ئی کار نشته ، او د پوپ د کلیسا سره کار دے د حکومت سره ئی کار نشته ، او په دغه ځائی کې دوی د حقوقو تقسیم اوکړو او دغه تقسیم ته ئی نوم ورکړو د سیکولریزم او ددې رنګ بیا په جمهوریت باندې ورچړاؤ شو ، نوره نظریه د جمهوریت دوی قبوله کړه چه هغه یکسانیت د رواقیوؤ او آزادی شوه دا ټول ئې پکې راوباسل خو لیکن بیا ئې حقوق تقسیم کړل چه په هغې سره دوی خپله جګړه ختمه کړه چه بس «**ما کان لله کان لله وما کان للقیصر کان للقیصر** » ، نو ځکه په جمهوریت کې کله د آزادئ بوئی پروت دے ، کله پکې د مساوات ، کله پکې د مذهبیت او کله پکې د لادینیت بوئی پروت دے ، خو بنیاد د جمهوریت

هغه پدې باندې دے چه ان الحکم الا لشعب » چه حکومت او قانون به د عوامو چليږی او پديکې د الله جل جلاله هيڅ کار نشته ، نو حاکميت دوی انسان ته ورکړو .

اوس د جمهوريت نقباؤ او مشرانو نظريه ددې جمهوريت په باره کې څۀ وه ؟ هغه ګورو :

نو د دوی په مشرانو کې يو غټ مشر د هغې نوم دے " **ميخائيل ستوريټ** " دا وائی : چه کله د يو ملک خلق د يو جمهوری رياست دعوه کوی نو د هغې نه مراد دا وی چه څومره پورې په انسانی سطح باندې ممکنه ده ټولو بالغو خلقو ته دا موقعه ميسره ده چه هغوی د خپل حاکميت حق استعمال کړی ، نو دې خپله نظريه دا پيش کړه چه د جمهوريت حق دا عوامو ته دے .

بل مشر د جمهوريت **سالټاؤ** دده نظريه هم دا ده : دا وائی : چه رياست ددې دپاره وی چه هغه خلقو ته د خپلې ښې زندګئ د تيرولو ښۀ موقعه ورکړی ، بيا وائی : او دا خبره چه د خپلې ښۀ زندګئ فيصله دا به د رياست په اختيار کې نۀ وی بلکه دا به دوی پخپله باندې کوی ، او آخری نکته دا وائی هغه داده : چه د اختيار د حاکميت بنيادی سرچشمه به خلق پخپله باندې وی دا به انسان ته د آسمان نه او د لوح محفوظ نه نۀ راکوزيږی بلکه دا به بذات خود دغه فيصله کوی او هغې لره به اختيار وی او دغه به حقيقی رياست وی او دغه به حقيقی جمهوريت وی .

بل مشر ميکياولی چه دا غټ مشر دے او دا اولنی سياست دان دے چه غير مذهبی او خود مختاره علاقائی حکومت تصور دا ده پيش کړے دے ، او دا وائی چه روحانی دنيا معاملات دې ځانته وی او د حکومت بنياد دې په مادی او ټوس څيزونو باندې پروت وی او معنوی څيزونو لره هيڅ اعتبار نشته ، بيا دا وائی : چه په سياست کې هره بد اخلاقی دا جائز ده نو دا فلسفه په اولنی ځل باندې ميکياولی پيش کړے ده ، يعنی د حکومت د برقرار ساتلو دپاره چه څومره بدکار څومره قتل عام هغه ټول تۀ کولې شی خو حکومت به برقرار ساتې نو دا دده نظريه ده ، او بيا وائی : چه سياست کې په اخلاقی پيمانو باندې يو شی غلط او صحيح ندې بلکه غلط هغه شی دے چه حکومت پرې خرابيږی او صحيح هغه شی دے چه حکومت پرې ښۀ کيږی، بيا پديکې يو بل سياست دان دے ليوبچ هغه هم د ميکياولی نظريات پيش

کړيدی : هغه وئيلی دی چه د ميکياولی نظريات درې خبرے دی : ۱/ ايمورټيزيشن چه د اخلاق اصولو نفی چه ورته وئيلې کيږی نو دا خبره دې ختمه کړے شی ، ۲/ نيشنليزم دې پکې پيدا شی ، يعنی د قوميت ماده دې په خلقو کې پرته وی ، ۳/ سيکولريزم ، يعنی سيکولری دې په خلقو کې پرته وی د دين سره دې څۀ تعلقات نۀ وی ، نو په حکومت کې دې دا درې خبرے وی نو دا د دۀ رائی شوه .

بل د جمهوريت په غټو مشرانو کې تامس هبز دے چه د هغه په نيز بادشاه مطلق العنان دے حتی چه اخلاق به هم د هغه د حاکميت د لاندې وی ، مذهب به د هغه په خوښه باندې چليږی ، او نن په دنيا کې دغه نظام عام دے .

نو دا هغه بحث وو چه جمهوريت په کومه لاره باندې راغلې دے ، نو دوی د نوح عليه السلام د دور نه سلسله راواغستله او بنياد پرستی ئې شروع کړی ده ، او د نوح عليه السلام نه تر دې ځائی پورے ډير انبياء کرام عليهم السلام راغلی دی خو يو نبی هم دا نظام ندې اختيار کړے ، نو دا نظام ارسطو اختيار کړی وو ، افلاطون اختيار کړے وو ، او بيا ئې مختلفې نظريې وے ،

❋❋❋❋❋

## د جمهوريت [ دويمه حصه ]

د جمهوريت متعلق بحث شروع وو چه په مخکې حصه کې دا خبره واضحه کړے شوه چه جمهوريت څۀ ته وائي ، او جمهوريت په کومه لاره باندې راغلې دے ، او موجدين د جمهوريت څوک دي ، نو چونکه جمهوريت د مغرب په لاره باندې راغلې دے او د مغرب او يورپ ته دا خپل دين يعنی مسيحيت هم په خپل وخت باندې ندے رسيدلې بلکه د **پاول** د تحريف نه بعد چه دۀ لکه په انجيل کې تحريف اوکړو نو بيا دغه محرف شده انجيل دويته ورغلې دے ، او پدې محرف شده انجيل کې دوی صرف هغه خبرے پريخې وے چه هغه د عبادت سره تعلق ساتی ، دارنګه د الله سره د تعلق ساتلو کومې طريقې وے نو دا په انجيل کې موجودے وے خو د انسان د اجتماعی زندګئ دپاره څنګه قانون پکار دے نو هغه پکې نوو دغه قسمه قانون ترينه دوی ويستلې وو ، نو چه کله دغه قانون هغوي ته ورسيدو نو مغرب او يورپ والاؤ دپاره آسمانی قانون پاتې نشو نو مغرب پدې خبره باندې راپاڅيدو چه ځان دپاره يو قانون جوړ کړی ، خو بالآخر خبره ديته راورسيده چه دوی اووئيل : چه مونږ د ځان دپاره يو ځان له ( جدا ) قانون جوړ کړو او طريقه ئې دا شوه چه خلق او عوام د قانون سرچشمه ده او بيا په دوی کې دوه ډلې جوړې شوے يوه ډله خو هغه وه چه دوی خلق د قانون سرچشمه اومنله خو بل طرف ته ئې د الله د عبادت نه مکمل انکار اوکړو ، نو دغه قانون جوړ شو په نوم د کمونيزم سره ، او د دغه قانون د ترويج او د تنفيذ ذمه داری دوه کسانو واغستله چه د يو نوم ليلن او د بل نوم ستيلن باندې مشهور وو ، په روس کې پيدا شوی وو نو دغو کسانو کمونيزم چه په عربئ کې ورته شيوعية وئيلې کيږی جوړ کړو او بنياد ئې دا وو او دوی د الله رب العالمين د دين خو بالکل قائل نۀ وو ، خو د هغې نه روسته بيا دوی د هر څيز د اشتراکيت قائل وو ، او دوی به درے خبرے کولې چه زر ، زن ، زمين يعنی زر ( مال ) هم مشترک دی ، زن ښځه هم مشترکه ده ، زمين زمکې هم مشترکې دی او دا نظام په روس کې شروع شو ، او طريقه ئې دا شوه چه سړی به ټول کار حکومت له کولو او ماښام به کورته لاړے ، او بيا د هغوئ دپاره يوه حکومتی منډئ وه چه په هغې کې به ئې سامان اغستلو او مفت به ئې ورکولو

او هغه به ئې کور ته وړلو نو دغه قانون هغوئ ته ډير خائسته شوے وو ، خو بيا دغه قانون په دنيا کې ناکام پاتې شو ، او د هغې غټه وجه دا وه چه دا د الله جل جلاله قانون نهٔ وو ، او خلق ترينه تنګ راغلل ، او د هغې د تنګيدلو ډير وجوهات وو ، ۱/ انسانيت يو قسم ځانله تعلقات دی چه د انسانيت تقاضا داده چه زما دې يو خاص تعلق وي د ښځې او د بچو په مينځ کې نو هغه کمونيزم ختم کړل ، ۲/ کله چه به ته منډې ته لاړے نو په منډې کې به مثلاً لوبيا ، يا دال وغيره يو څيز به ميلاويدلو بل څيز به پکې نهٔ ميلاويدلو او پيسې به تاسره نهٔ وې چه ځانله دې اغستې وے ، نو چه تاته به کوم شی ميلاويدلو نو هغه به د حکومت په خوښه وو ستا په خوښه به يو شی هم نهٔ ميلاويدلو ، ځکه ستا ټول محنت خو به د حکومت دپاره وو او حکومت به ورته وئيل چه ستا علاج ستا د سفر او حضر خرچه به ټوله مونږ برداشت کوو نو دغه نظام خلقو يو جابرانه نظام اوګنړلو ، او بل طرفته داسې قانون راووتلو چه نه عوام د قانون سرچشمه ده په معاملاتو او اجتماعی زندګئ کې او د انسان چه د الله سره کومې رابطې دی نو په هغې کې به انسان ګوتې نهٔ وهی ، يعنی دين دې د عبادت تر حده پورے محدود شی او قانون کې دې ګوتې نهٔ وهی ، او قانون دې د خپل قانونيت ترحده پورے محدود شی په عباداتو کې دې ګوتې نهٔ وهی ، نو دغه جمهوريت والا دغه کار شروع شو چه اکثريت خو منی خو په قانون کې ئې منی ، په حاکميت کې منی ، په سيادت کې ئې منی خو په عبادت کې دوی عوام د قانون سرچشمه نهٔ منی ، نو په دغه ځائې کې دوی لارے جدا کړے ، ددې وجې نه جمهوريت په اول سر کې چاته کفر نهٔ ښکاری حالانکه که د جمهوريت دا يو ضرورت غواړی چه مونږ ته قانون ضرورت دے او هغه قانون دې عوام جوړ کړی نو ددې نه پوره معلوميږی چه دوی د الله جل جلاله د وجود نه انکار کوی د وحي نه انکار کوی خو ليکن په اول وهلت کې دوی ددې اقرار نهٔ کوی ، نو پدې طريقې سره کمونيزم او ډيموکريسی هغه جوړ شو .

نو کله چه ته پدې باندې د کفر فتوی ورکوے نو پکار ده چه ته دا پوره پوره انداز سره اوپيژنې ، نو په تعريفې لحاظ سره خو دا خبره واضحه کړے شوه ، او په تاريخي لحاظ سره هم

ډيموکريسي واضحه شوه ، او په ايجادي لحاظ سره هم ډيموکريسي واضحه کړے شوه ، اوس يوه خبره باقي پاتې شوه چه مونږ د جمهوريت اصول او بنيادي قوانين اوپيژنو نو چه کله مونږ د جمهوريت بنيادي قوانين معلوم کړل نو بيا به مونږ ته پوره معلومات اوشي چه دا جمهوريت اسلامي نظام دے او که کفري نظام دے ، نو اوس د جمهوريت بحث شروع کوو چه په قانوني لحاظ سره ددې جمهوريت څۀ اصول دي ، نو پدې لحاظ سره به اوس بحث شروع کوو ، ان شاء الله .

**جمهوريت د اصولو په لحاظ سره اولاً درې اصول دي** : ۱/ اړخ او طرف د حاکميت او سيادت والا دے ، ۲/ اړخ د دې په مساواتو کې دے ، ۳/ الحرية چه آزادي غواړي ، نو دا ددې ابتدائي اصول دي .

۱/ جمهوريت د حاکميت او سيادت په حقله باندې څۀ غواړي ؟ نو د حاکميت په هکله دده دوه خبرے دي : ۱/ حاکميت څۀ ته وائي ؟ نو دوي وائي : چه حاکميت هغه عالي محکمه ده چه د هغې دپاسه بله هيڅ يوه محکمه نۀ وي ، او هغې ته د قانون جوړولو حق وي ، بعضې خلق وائي : چه دا د امر او نهي هغه عالي محکمه ده چه ددې دپاسه بله محکمه وجود نۀ لري چه ددې فيصلې رد کړي او ددې په خبره باندې اعتراض اوکړي ، نو ديته حاکميت وئيلې کيږي ، نو دا د حاکميت تعريف شو او ددې تعريف نه بعد بيا دغه د حاکميت خپله دوه شاخونه دي : ۱/ د تشريع او د قانون واله شاخ يعني قوانين جوړول او په عربي کې ورته تشريع وائي ښه صفا ورته وائي لکه اردن ، يمن ، مصر وغيره اوس ورته تشريع وائي چه شريعت جوړول ښه صفاء په کفر باندې اقرار کوي او ججانو ته فقهاء وائي دا پوره اصطلاحات دي دا زمونږ اصطلاحات چه عربئ ته واړوې کنه بيا تا ته پته لګيږي لکه مونږ پارلمان ته قانون ساز اسمبلي وايو او په عربئ کې ورته مجلس التشريع وائي ، يعني د شريعت جوړولو اداره ، نو تشريع او تقنين د قانون او تشريع جوړولو چه قانون به څنګه جوړيږي او کوم قانون به وي چه هغه به بيا احکام صادروي .

۲/ شاخ ئې د تنفيذ دے ، يعني ددې تنفيذ به څوک کوي يعني حاکم به څوک وي ، او

ددې حکومت ته د رسيدلو به څه طريقه وی ، اوس ددې اولنی چه تشريع او قانون جوړول ددې څۀ بنياد دے نو هغه بنياد ئی دا دے : چه دوی وائی چه د تشريع او تقنين ( قانون جوړول ) په حقله باندې وائی : چه عوام د قانون سرچشمه ده او عوام به پخپله قانون جوړوی ، يعنی اکثريت د خلقو به قانون جوړوی او د اکثريت نه علاوه بل هيڅ څوک قانون نشی جوړولې ، نۀ د الله قانون صادريدلې شی او نۀ د بل چا قانون ، دويمه خبره دوی دا کوی د قانون په جوړولو کې چه د عوامو رائی مقدسه ده يعنی د عوامو په رائی باندې هيڅ څوک اعتراض نشی کولې لکه تاسو به اوريدلی وی کنه چه عوام کې بالادستی .

٣/ خبره : د حق معيار هغه به د اکثريت رائی وی ، اصل کې دوی خو عواميت غواړی خو ټول خلق په يوه خبره باندې نۀ متفق کيږی نو دوی وائی چه پدې کې به مونږ ګورو چه ډير خلق په کومه خبره متفق شو نو هغې ته به ترجيح ورکوو .

٤/ خبره : مرجع د قانون دپاره عقل يعنی انسانی عقل به پخپله قانون جوړوی ، يعنی انسان به د خپل خواهشاتو او ضروورياتو مطابق په خپل عقل به قانون جوړوی دې وجه نه الفارابی ئی تعريف دا کړے دے : « **هي التى قصد اهلها ان يكون احراراً و يعمل كل واحد منهم ما شاء** » " چه دغه جمهوريت هغه نظام دے چه ددې خلقو اراده کړی وی چه مونږ دې آزاد يو او هر سړے دې هغه کار کوی چه کوم ئی خوښ وی " نو دوی وائی : چه مرجع د قانون به عقل وی چه په عقل باندې کومه فيصله اوکړه نو هغې لره به ترجيح ورکولې کيږی ، نو دا ئې د تشريع او تقنين کې خبره شوه چه ددې څلور خبرو خيال ساتلې کيږی .

بله تنفيذ او حکومت ته به د رسيدلو لاره څۀ وی ، يعنی حکومت ته به څنګه رسيږو ؟ نو اولنی خبره خو دا ده : چه د اکثريت په انتخاب باندې به حکومت ته رسيږی ، ٢/ چه کوم انتخابات کيږی نو پدغه انتخاباتو کې به هيڅ قسمه دينی او مذهبی معيار به نۀ وی ، ٣/ خبره: چه خلق به په يو شان طريقې سره په انتخاباتو کې شريک کيږی او انتخاباتو ته به اودريږی، مطلب دا شو : چه مذهب او د دين به پکې هيڅ قسمه رعايت نۀ وی ، چه دا سړے کافر دے او دا مسلمان دے ، دا فاسق دے او دا صحيح دے ، دارنګه د مذکر او مؤنث معيار به پکې

ختم کړے ، ٤/ طريقه د حکومت ته د رسيدو هغه داده : چه کوم انتخاب کوی نو په هغې خلقو کې به مساوات وی ، يو خو هغه وو چه هغه منتخب کيږی نو په هغې کې هم مساوات وو ، بل دا چه کوم خلق ئې انتخاب کوی نو په هغې کې به هم مساوات وی په هغې کې به هم معيار د عقل ، معيار د صلاحيت ، معيار د تقوئ نو دا ټول معيارونه به پکې سلب کړے دا به پکې نۀ وی ، يعنی که يو طرف ته يو غټ عالم دين وی او بل طرف ته يو غټ فاجر او فاسق وی نو د دواړو ووټونه به يو برابر وی ، ٥/ خبره : چه کوم حکومت جوړ شی نو د هغه خبره به هغه خلق هم منی چه هغوی په حکومت کې راغۀ شی ، برابره خبره ده که هغه سړی د هر مذهب نه وی ، او که هغوی هر قسمه قانون جوړ کړو ، البته د حزب اختلاف په شکل باندې په قانون باندې اعتراض قدرې کولې شی ، او هغه سړے به اعتراض کوی چه هغه اسمبلئ ته تلې وی او په حزب اختلاف کې ناست وی نو حزب اختلاف والا اعتراض کولې شی ، بيا برابر خبره ده که د هغوئ اعتراض ته ترجيح ورکړے شوه نو صحيح ده او که ترجيح ئې ورته ورنۀ کړه نو هغه خبره به بيا هم په خپل ځائې باندې پاتې وی ، نو دا پنځه اصول شو د حکومت ته د رسيدلو دپاره ، نو دا د حاکميت هغه طرف وو.

**دويمه خبره د دوی مساوات ده** : نو دوی څلور قسمه مساوات منی : ١/ مساوات د قانون مخې ته چه قانون مخې ته به برابر والې وی ، يعنی په قانون کې به د سړی يا ښځې فرق نۀ وی ، ٢/ مساوات د فيصلې مخې ته ، ٣/ مساوات د وظائفو مخې ته ، يعنی چاته څۀ نوکری ميلاويږی نو په هغې کې به هم مساوات وی يعنی دا خبره به پکې نۀ وی چه دا سړے هندو دے دا نوکری ورته مۀ ورکوه ، دا سړے قاديانې دے دا نوکری ورته مۀ ورکوه ، وغيره دا خبرے به پکې نۀ وی ، ٤/ مساوات د ټيکسونو مخې ته ، يعنی ټيکسونه به ټول خلقو باندې يو شان کيخودلې شی ، خو دې خبره کې بيا دوی پخپله هم خلاف کوی ، ځکه چه څنګه ټيکسونه عوام ورکوی هغه شان حکومتی خلق ئې نه ورکوی ، اګر چه دوی کوم ټکسونه نن مقرر کړی دی کنه دا د اسلام خلاف دي ، او بل دوی زکوٰة ته هم د ټيکس په نظر ګوری او عوام خو داسی ندی نو عوام يو طرفته حکومتی ټيکسونه ورکوي او بل طرفته بيا زکوٰة هم ورکوي

ځکه هغوی مسلمانان دي د اسلام خیال ساتي خو د حکومتي خلق بیا دا نه ورکوي هغوي سره د اسلام غم نوي نو دوی نه حکومتي ټیکسونه ورکوي او نه زکوٰة ورکوي ، نو دا د مساواتو طرف وو .

**دريمه خبره د حريت والا وه** : نو د حریت والا خبره دوی په درې مادو کې تقسیم کړې ده : ۱/ حریت شخصی ، ۲/ خریت اقتصادی ، ۳/ حریت سیاسی .

حریت شخصی ، یعنی د سړی خپل ذاتي حریت ، او بیا دا حریت شخصی هم په درې قسمه جوړوی : ۱/ حریت مادی دے ، یعنی مادی طریقې سره تهٔ آزاد ئی ، ۲/ حریت معنوی ، یعنی معنوی طریقې سره تهٔ آزاد ئی ، ۳/ حریت اجتماعی ، یعنی اجتماعی طریقې سره تهٔ آزاد ئی .

**اوس حريت مادى** : ۱/ حق الحیات ، یعنی د ژندګئ په حق کې سړے آزاد دے هر سړی ته د خپلې ژندګئ تیرولو اجازت شته دے پدیکې څوک شرائط نشی لګولې ، دوی کله کله حق د حیات ځناورو ته هم منتقل کوی یعنی ځناور هم نشی قتل کولې ، نو دوی اولنې د اسلام په فکر باندې اټیک کوی خو په اوړدو ورته راتاویږی ، وائی : چه انسان ته دي د حیات او ژندګئ حق ورکړے شی ، نو دا خو مونږ هم منو چه وردې کړی شی ، خو دا د ژندګئ حق دوی په بله لار باندې راتاووی ، مقصد ئی دا دے : چه که دا په هره لار باندې روان وی نو دهٔ ته تهٔ د قتل دهمکی نشی ورکولې ، نو حق الحیات دومره نقصان اوکړو : که یو سړی قتل اوکړو نو د دوی په نظام کې پانسی نشته وائی ځکه چه ده خو قتل اوکړو خو دا قاتل هم انسان دے نو د دهٔ حق د حیات سلب کول پکار ندی ، خو اسلام وائی : « **كتب عليكم القصاص فى القتلى** » چه قصاص واخلئ ، او دوی وائی : چه نه دا بل هم انسان دے .

**۲/ حق التنقل** دے یعنی د یو ځائی نه بل ځائی ته نقل مکانی کول نو پدیکې دوی پابندی نهٔ لګوی چه په هیڅ چا باندې پابندی نشته ، خو اسلام وائی چه نهٔ که چرته تهٔ حربي ئی او دار الاسلام ته راځی نو تاته اجازت نشته تردې چه تهٔ مستأمن شی او د خلیفه نه اجازت واخلې او بیا هم تهٔ به یو کال تیروے او که د کال نه زیات وخت تیروے نو بیا به ذمی حسابیږی

او تېكس به درنه اغستلې كيږي ، او دوى وائي : چه نۀ دا حق التنقل دے او دا پكې آزاد دے چه كوم خوا دا ځي نو تلې شي څه پابندى پرې نشته .

دغه شان اسلام وائي : كه ته مسلمان يې او دار الحرب ته ځې او هلته څه مسلمانان وى او تبليغ ته ورځى نو ورشه ، يا د جنګ دپاره ځى يا د مسلمانانو د طرف نه د جاسوسۍ په تدبير سره ورځى نو بيا هم تاته اجازت دے ورشه ، خو كه تۀ د تجارت دپاره ورځې يا د استوګنې دپاره ورځې نو بيا تاته اجازت نشته اسلام په تا باندې پابندى لګوى ، دوى وائي چه حق التنقل انسان ته ميلاؤ دې ، نو دا د جمهوريت بل اصل شو .

**۳/ خبره**: حق الامن دے ، دوى وائي : چه هر سړى ته دې په هر ځائى كې امن ميلاؤ شى ، او كه دا په هرې طريقې سره خپل تبليغات كوى نو پديكې دۀ ته امن دے او څۀ پابندى به پرې نۀ وى ، **٤/ خبره**: حق عدم الاسترقاق : يعنى حق د عدم غلامۍ ، يعنى كه كافر سره دې جنګ راغلې نو حق د دۀ دادے : چه دا انسان دے او د انسانى حقوقو نه دا خبره ده چه دا به غلام نۀ جوړوے ، او دا اوس چه بعضې مليان دا خبره كوى چه يره جى اوس غلامان او وينځې نشته نو كوم آيت په تا باندې نازل شو چه دا پكې منسوخ شول دا يهود او نصارىٰ دي زمونږ لاس ته راشى نو بيا ګوره چه څنګه ترى غلامان جوړه وو خو دا خبره چه دوي كوي كنه نو دا په اصل كې بين الاقوامى يوه معاهده شوے وه او يو بل ته ئې دستخطونه كړى دى چه مونږ به خلق غلامان نۀ جوړو ، او دليل دا وائي : كه چرته دلته مونږ د كفارو نه غلامان جوړ كړو نو هلته د كفارو په ملكونو كې بلا مسلمانان دى نو كافران به د هغه مسلمانانو نه غلامان جوړ كړى ، نو هغه خو هسې هم هلته د غلامۍ ژوند تيروي او بل دا چه مونږه به د دوى دپاره د اسلام يو حكم پريدو ، ټول كار خو دلته خرابيږي كنه ، ته يو ځل اسلامي نظام راوله بيا ګوره چه څنګه پدې عمل كيږي كنه .

**۵/ حق حرمة المسكن**: يعنى د مسكن او د اوسيدلو آزادى ، كه كافر لاړ شى او د بيت الله په خوا كې كور جوړ كړى ، اګر چه الله فرمائى : ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِنَّمَا

ٱلْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ فَلَا يَقْرَبُوا۟ ٱلْمَسْجِدَ ٱلْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ هَٰذَا ﴾[1] خو جمهوريت وائی: چه نۀ دا كار به نۀ كوې حرمة المسكن به كوے ، يعنی د دۀ مسكن او د ده اوسيدو دۀ ته آزادی وركړه . نو دا پنځه قسمه په حرية المادية كې شول .

**دويم حرية المعنويه** : بله آزادی هغه معنوی آزادی ده ، يعنی تاسره چه كوم پټ او باطنی خيزونه دي كنه لكه ستا اخلاق ، ستا صفات ، ستا علم ، ستا سوچ او عقيده ده نو د هغې متعلق خبره كوی چه په هغې كې هم تاته آزادی ده ، نو دوی چه په شخصی آزادی دومره قائله دی چه دوی انسان د ځناور نه لاندې غورځولې دے هم دغه وجه ده چه د اكثرو خلقو خيال دا دے چه دا حريت شخصی زمونږ په ملكونو كې نشته دے ، دا پدې ټولو ملكونو كې هم موجوده ده لكه په مختلف ځاينو كې چكرې ( د بې حيائی اډې شته ) او موجودې دي او حكومت په هغې باندې ايكشن نۀ اخلی ځكه چه حرية شخصی دے ، يعنی شخصی آزادی هغوی ته حاصله ده ددې وجې نه هغوی ته غږ نشی كولې ، او داسې نور ډير مثالونه دي ، او چه كوم خلق د اسلامی جمهوريت چغې وهی نو په اصل كې غټ ګمراه هم دغه خلق دی ، ته څنګه پديكې تقسيم كوے دا خو مغرب والا و جوړ كړے دے د هغوي تعريف او اصطلاحاتو له به اعتبار وی د پردو خلقو په نظامونو كې ته راځې او ته پكې تقسيمات كوے دا ټول مسلمانان دغه خلقو ګمراه كړل ته به چرته هم دا ونه وينی چه يهودی جمهوريت يا عيسائی جمهوريت يا هندو جمهوريت او دوی پكې مسلمان ګمراه كولو دپاره اسلامي جمهوريت راويستو صرف په نوم سره د يو شی حقيقت نه بدليږي ، حقائق الأشياء ثابتةٌ » .

ځكه شاه انور شاه كشميری رحمه الله فرمائی : چا چه د كافر يا د كفر نه دفاع اوكړه نو دا سړے هم پشان د هغه كافر دے چه هغه علانيتاً كفر كوی ، او ديته هغه شخصی آزادی وائی، او ددې مثالونه ډير زيات په خارجی ملكونو كې موجود دی لكه جنس پرستی وغيره .

---

[1] [ سورة التوبة : ٢٨ ] .

خو قرآن ددې په مقابله کې فرمائي : ﴿ ٱلزَّانِيَةُ وَٱلزَّانِي فَٱجْلِدُواْ كُلَّ وَٰحِدٖ مِّنۡهُمَا مِاْئَةَ جَلۡدَةٖ ﴾[1] دغه شان فرمائي : ﴿ وَٱلَّذَانِ يَأۡتِيَٰنِهَا مِنكُمۡ فَـَٔاذُوهُمَا ﴾[2] دا رنګه نبي کریم ﷺ هغه کس ته سزا ورکړيده چه هغې شراب څکلي وو ، دا ځکه چه اسلام انسان ته مکمل آزادی نۀ ورکوی ، اسلام انسان ته آزادی ورکوی خو تر يو حده پورے د هغه حد نه به بهر نۀ وځي، نو دا د حريت شخصي په باره کې بعضې خبرے وې چه دلته بيان کړے شوے .

**اوس د حريت معنوي** په باره کې : نو دوی وائي : چه پديکې يو حرية العلم دے ، يعنې تاته د علم اجازت دے چه څرنګه علم حاصلوې نو تاته اجازت دے په تا باندې د علم په لحاظ کې څوک پابندی نشي لګولې ، نو که چرته تۀ علم سحر حاصلوې نو په تا باندې پابندی نشته ، که څوک په تا باندې پابندی لګوی نو جمهوريت به ستا تر څنګ ولاړ وی او ستانه به دفاع کوی ، دارنګه که ته علم نجوم حاصلوې نو تاته اجازت دے ، وغيره .... خو اسلام دا خبره نۀ مني ، بلکه اسلام د ساحر په باره کې د قتل فتوی ورکوی که ساحر سحر کوی نو دا دې قتل کړے شي ، نو اسلام تاته د دغه علم اجازت نۀ درکوی ، دارنګه اسلام تاته دعلم النجوم اجازت نۀ درکوی ، اسلام وائي : که څوک فال او قسمت معلومونکی ته لاړو نو د دۀ نه ايمان سلب کيږی ( ختميږي ) ، دارنګه اسلام وائي : چه د منسوخو شريعتونو علم به نۀ حاصلوې پدې وخت کې لکه حديث کې راځي چه نبي کريم ﷺ د عمر فاروق رضي الله عنه په لاس کې د تورات پاڼړې اوليدلې او ورته غصه شو او بيا ئې ورته اووئيل : « **والله لو كان موسى حياً لاتبعتموني** »[3] " که چرته موسی عليه السلام ژوندې وے نو هغه به هم زما تابعداری کوله " نو دوی وائي : چه حرية العلم د علم په باره کې تاته اجازت دے که تۀ هر

---

1 [ سورة النور : ٢ ] .

2 [ سورة النساء : ١٦ ] .

3 [ مسند أبي يعلى الموصلي ، رقم : ٢٠٨١ ] .

ښځګه علم حاصلوي نو پديکي په تا باندې څوک پابندي نشي لګولي .

**بله خبره** چه جمهوريت وائي : حرية الاعتقاد او دا هم په معنوی کې راځي ، يعنى که ته هر قسمه عقيده ساتي نو په تا باندې پابندی نشته که يو کافر وی نو په هغه باندې د قتل يا د جزيې هيڅ قسمه پابندی په هغه باندې نشی لګولي بلکه هغه ته اجازت دے ، دغه شان سړی ته اجازت دے که هغه په ورځ کې شل کرت کافر کيږی نو پابندی پرې نشته ، يعنى مذهبى آزادی ده ، په مذهب کې دې آزاد دے چه کوم مذهب ته څه وقت ځی نوتلې شی ازاد دے ، او دا حرية العلم ، او حرية الاعتقاد په هر ځائی کې ددې مثالونه موجود دی ، که څومره خلق د مسلمانانو نه عيسايان شول څومره قاديانان شول او څومره خلقو د پيغمبرئ دعوے وکړې او څومره د اسلامي احکاماتو بې عزتی وشوه چا ورته څه سزا ورکړه ، خو بس تا ته صرف دومره اختيار شته چه راوزه او پر امن احتجاج وکړه ، اسلامی اقدام او سزا به نه ورکوې ځکه آزادی ورته حاصله ده ، نو اسلام چه څرنګه حرية العلم نۀ منی نو دغه شان حرية الاعتقاد هم نۀ منی ځکه اسلام وائي : « **من بدل دينه فاقتلوه** » " چا چه خپل دين بدل کړو نو دا سړے قتل کړئ " ، او خلق ورته تأويلونه کوی ، نو اسلام وائي : چه يو سړے مسلمان شو او بيا ئې دا دين پريخودلو نو دا به پدې باندې قتل کيږی ،

**دريمه خبره** : حرية التعبير عن الراى : يعنى د رائې تعبير آزادی ده دۀ ته ، چه يو سړے د خپلې رائې نه ښکاره هم تعبير کوی ، خو بيا پديکې دوه څيزونه راځي ، يو ته وئيلې کيږی حرية البيان ، او بل ته وائي حرية الرأى ، د حرية الرأى صورت دا دے : چه دۀ ته د رائې اجازت دے چه دا په هر خبره کې څۀ رائې ورکوی ، يعنى يو سړے جاهل دے زنديق دے او هغه راپاڅيږی او د قرآن په باره کې مختلفې رائې ورکوی نو دۀ ته د رائې حريت دے نو تۀ په دۀ باندې هيڅ قسمه رد نشی کولې، حالانکه د مجتهد نه غير په بل هر شخص باندې دا پابندی ده چه دا دې په يوه دينی مسئله کې رائې ورکړی او هغه به هم بيا د نورو نصوصو سره کتلې شی خو بهر حال دا خو د اسلام په دائره کې او دوی خو ئې پدې نيت نه کوی ، او څوک چه

په دين کې د ځان نه خبرے کوی نو دا زنديق دے او د زنديق سزا قتل دے نو دا به په اسلام کې قتل کيږی ، او دوی وائی : چه د رائی آزادی ده چه څهٔ قسمه رائی دا ورکوی نو ورکولې شی ، دويم حرية البيان دے : يعنی د بيان متعلق چه دا څنګه کالم ليکی ، څنګه دا د خپل رائی اظهار کوی نو هغه دا کولې شی مثلاً دا په کالم کې د جهاد او د اسلام خلاف خبرے ليکی نو بس دا د ده خوښه ده کولې شی ، په حرية البيان کې نعوذ بالله دا د پيغمبر په شان کې ګستاخی کوی نو دا دهٔ ته آزادی ده ، او که چرته دا د الله په شان کې خبرے کوی نو دا هم دهٔ ته آزادی ده ، مثلا .......... ، او دا متفق عليه مسئله ده چه : « **من سب الله فقد كفر** » " چا چه د الله په شان کې ګستاخی اوکړه نو ده کفر اوکړو " ، دا رنګه قرآن وائی : ﴿ لَّئِن لَّمْ يَنتَهِ ٱلْمُنَٰفِقُونَ وَٱلَّذِينَ فِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ وَٱلْمُرْجِفُونَ فِى ٱلْمَدِينَةِ لَنُغْرِيَنَّكَ بِهِمْ ثُمَّ لَا يُجَاوِرُونَكَ فِيهَآ إِلَّا قَلِيلًا ﴿٦٠﴾ مَّلْعُونِينَ ۖ أَيْنَمَا ثُقِفُوٓا۟ أُخِذُوا۟ وَقُتِّلُوا۟ تَقْتِيلًا ﴿٦١﴾ ﴾[1]

**څلورمه خبره**: په حرية الشخصية کې حرية الشکویٰ ، يعنی دهٔ ته د شکوی حق دے چه دا په چا باندې هم شکايت کوی نو دهٔ ته اجازت شته پديکې آزاد دے ، نو پديکې يو طرف دا هم دے او بلهٔ طرف دے : چه غريب سړے هم شکايت کولې شی ، مالدار سړے هم شکايت کولې شی ، خو که يو سړے دا شکايت کوی چه مونږ د مساجدو د منارو نه تنګ راغلی يو نو بيا به دغه مناره غورځولې کيږی ، که يو سړے دا شکايت اوکړی چه زهٔ ټيوی ګورم او دلته د قرآن ترجمه کيږی او بيان کيږی په سپيکر باندې آواز ئې تيز دے يا دارنګه په ريډيو وی نو بيا به هلته ايف ايم بند کړی د مسجد امام نه ، نو وائی : چه پدی شکايت کې هم دهٔ ته آزادی ده ، او که دا د اسلام په باره کې شکايت کوی نو په دې باندې هيڅ قسمه پابندی نشته.

**پنځم**: حرية تقديم العرائض : آزادی ده د درخواستونو پيش کولو په حقله ، يعنی يو سړے چه په هر څهٔ باندې شکايت ورکوی نو ده ته اجازت دے ، خو دلته يوه بله خبره هم شته ، چه

[1] [ سورة الأحزاب : ٦٠ ـ ٦١ ] .

يو سرے دا شکايت پيش کړی چه دلته مونږه د مساجدو نه تنګ يو او دلته مونږ ګرجه جوړول غواړو نو وائی : ده ته هم اجازت دے چه ددې په شکايت باندې عمل شروع شی ، نو دا ټول حرية المعنوية شو چه تا اوپيژندله .

**٣/ حرية اجتماعی** : نو دوی وائی : حرية عقد الاجتماعات وحضورها ، يعنی ده ته اجازت دے چه دا اجتماع ګاني مقرر کړی جلوسونه مقرر کړی او هغې ته حاضريدل ، او دا جلوسونه چه تۀ په هره خبره باندې قائموې نو تاته اجازت دے ، که ته د همجنس پرستئ دپاره احتجاج اوباسی نو تاته اجازت دے ، که تۀ د اسلام خلاف احتجاج اوباسی نو تاته اجازت دے ، او ددې برعکس هم کړې شی اجازت دے خو صرف احتجاج به وی اقدام نه نو هر قسمه اجتماع ته حاضريدلې شی ، حالانکه قرآن وائی : ﴿ وَإِذَا رَأَيْتَ ٱلَّذِينَ يَخُوضُونَ فِىٓ ءَايَٰتِنَا فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ حَتَّىٰ يَخُوضُوا۟ فِى حَدِيثٍ غَيْرِهِۦ ۚ وَإِمَّا يُنسِيَنَّكَ ٱلشَّيْطَٰنُ فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ ٱلذِّكْرَىٰ مَعَ ٱلْقَوْمِ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٦٨﴾ ﴾[1] نو دا اسلام پابندی اولګوله ، خو دوی وائی : چه تاته د اجتماعاتو اجازت دے چه کومه اجتماع ته منعقد کوې او په هر خبره چه ئې منعقد کوے نو تاته اجازت دے ، او هغې ته بيا د حاضری هم تاته اجازت دے .

**بله خبره** : حرية تكوين الجمعيات والانتساب اليها : يعنی چه ته کومه سياسی پارټی د ځان دپاره جوړوے نو هم تاته اجازت دے او چه کومې پارټئ ته تۀ نسبت کوے نو په تا باندې پابندی نشته ، حالانکه اسلام د مختلفو ډلو جوړولو اجازت نۀ ورکوی ، اسلام وائی : « **اذا بويع لخليفتين فاقتل الآخر منهما** »[ رواه مسلم ] " کله چه په علاقه کې د دوو خليفه ګانو نه بيعت شروع شی نو دويم خليفه ترې قتل کړه " ، يعنی اسلام د تفريقه جوړولو دپاره د يو مسجد سره په خوا کې بل مسجد هم نۀ منی ، دا ځکه چه د مسلمانانو جمعيت ته تفرقه ونۀ رسيږی ، خو ليکن دوی د تفرقے د جوړولو دپاره پوره اجازت ورکوی ، نو تاته اختيار

---

1) [ سورة الأنعام : ٦٨ ] .

درکوی کـه تـهٔ د شيعه ګانو قاديانانو سره ، سيکانو سره ، عيسيانو سره ، جمعيت او اتحاد اجازه تشته دے ، حالانکـه اسلام وائی : چه د کافر سره به تهٔ نهٔ ودريږی .

******

## جمهوريت [ دريمه حصه ]

د جمهوريت متعلق بحث روان وو چه د جمهوری نظام څۀ اصول او فروع دی څکه روسته بيا ددې حکم بيانوو نو کـم از کـم چه مونږ خو ددې جمهوريت په هر حيثيت باندې پوهه شو ، نو ددې دپاره مونږ د جمهوريت اصول او فروع شروع کړی وو نو په هغې کې مونږ د جمهوريت شخصی په باره کې څۀ نا څۀ خبره واضحه کړه او هغه شخصی آزادی مونږ په درې حيصو کې واضحه کړه چه مادی آزادی ، معنوی آزادی ، او اجتماعی آزادی نو په هغې کې اجتماعی آزادی مونږ پوره واضحه کړه د الله په فضل او کرم سره .

**اوس دويم نمبر** : الحرية الاقتصادية ده يعنى اقتصادی آزادی ددې مطلب دا دے : چه مال دولت ګټل پديـکې انسان آزاد دے ، ددې وجه نه د جمهوريت بل شاخ راځی کيپټيليزم په اردو کې ورته سرمايه دارانه نظام وائی ، نو دا د سرمائی په نظام کې د کمونيزم سره مکمل مخالف دے دواړه انسانی نظامونه دی او داوړه باطل نظامونه دی ، سرمايه دارانه نظام وائی : چه انسان آزاد دے په کومې طريقې سره چه مال ګټلې شی او ددې دپاره دوی سودونه او بينکونه وغيره کولاؤ کړيدی ، او دې سرمايه دارانه نظام نقصان دا اوکړو چه ددې مال مالکان ئ په دنيا کې بس يو څو کسان اوګرځول او دا يو څو يهوديان دی چه د ټولو بينکونو مشری د هغوي په لاس کې ده او د دنيا پدې ټول مال باندې د هغوی قبضه ده ، او دا سرمايه دارانه نظام هم اسلام نۀ منی چه بس مال دې څه کسانو ته ورکړی شی ، او ددې په خلاف کمونيزم د معاشی مساوات قائله دے او دا وائی : چه معاشی مساوات داسې پکار ده چه انسان ته دې

شخصی ملک نشی میلاویدلې او انسان دې د شخصی ملک نه محرومه شی نو دا هم نارواه خبره ده ، ځکه چه اسلام سړی ته شخصی مِلک هم ورکوی ، او بیا پدیکې بعضی خلق داسې دی چه هغوی اسلامی معاشی مساوات نظام منی ، او اسلامی کمونیزم یو قسم ته جوړوی ، او هغه نور بیا آیتونه هم پیش کوی وائی : « **ان الارض لله** » " ګوره زمکه د الله ده " نو پدې کې مطلب دا دے : چه دا په عمومی سطح باندې چلول پکار دی ، خو دوی دیته نۀ ګوری چه وروسته پدې آیت کې کومه خبره ده ؟ وروسته دا دی : « **یرثها من یشاء** » " وراثت کې ورکوی چاته چه ئې خوښه شی "یعنی شخصی مالک ئې جوړولې شی ، دا د کمونیزم والا کار دے ، او ددې په مقابله کې بیا سرمایه دارانه نظام هغه قیودات لری کوی .

بیا دا حریة اقتصادی پدیکې یو قسم دے **حریة حق التملک** دے یعنی د تملک په لحاظ سره چه ته ځان د یو څیز مالک جوړوے نو پدې لحاظ سره تاته یو څو قسمه آزادئ درکوی :

**١/ طریقة التملک** : آزادی درکوی په طریقې د تملک چه ته کومه طریقه اختیاروے هغه آزادی درکوی ، یعنی که ته ځان مالک جوړوے د مال په فاسده بیع باندې نو دوی وائی : چه بس تاته اجازت دے ، که ته ځان په باطله بیع باندې مالک جوړوے نو هم تاته اجازت دے ، دغه شان ته د مال د مالک کیدلو دپاره فاسدے او باطلې اجارے کوی نو هم تاته اجازت دے ، پدې طریقو کې په تا باندې څۀ پابندی نشته .

**٢/ آزادی** درکوی په شی مملوک کې ، چه کوم شی ته مملوک جوړوے نو په هغه شی مملوک کې تاته اجازت درکوی په تا باندې پابندی نشته ، مثلاً : ته په یو شی کې ځان مالک جوړوے نو که هغه شی هر څیز وی که شراب وی نو هم ته مالک جوړیدلې شی ، که سودی مال هم که هغه خنزیر وی نو په هغې کې هم ته مالک جوړیدلې شی او پدیکې په تاباندې څۀ پابندی نشته ، یعنی کوم څیز چه ستا مملوک وی نو هغه هر څیز ته اخستلې شی او خرڅولې شی پدیکې په تا باندې پابندی نشته دے او طریقة التملک دا تاته دا اجازت هم درکوی که تۀ په ګډوډو طریقو سره پیسې ګټې نو تاته اجازت دے ګټلې شې ، نو په حق التملک کې ته

آزاد شوے نو پديکې بيا د عمل اجازت راغلې که هر قسمه کار تهٔ کوې نو کوه د کار پابندی په تا باندې نشته ، نو که ته بدعملی کوی ، که ته سنيما چلوې ، که ته چکله ( د زنا اډه ) چلوې ، وغيره وغيره پديکې په تا باندې پابندی نشته دے ځکه دا حرية حق العمل دے .

**بل حرية حق الاجر** دے يعنی چه ته په کومه طريقه باندې مزدوری کوے نو ته هغه کولې شی، بل حرية حق الراحت دے ، يعنی تاته به اجازت وی چه ته په کومه طريقه باندے خپل خواهش پوره کوے خپل راحت حاصلوې نو تاته اجازت دے .

**دريم نمبر** : حرية سياسی ، يعنی سياسی لحاظ سره ته آزاد ئی ، بيا پديکې هم مختلفې آزاديانې دی : **١/ حرية حق الانتخاب** دے ، نو دا رعيت ته اجازت دے چه کوم سړے هم دې منتخب کوی نو پده باندې پابندی نشته مثلاً : که دا کافر منتخب کوی نو هم اجازت دے ، که دا مسلمان منتخب کوی نو اجازت دے ، که دا ښځه منتخب کوی نو پابندی پرې نشته، حاصل دا چه هر قسمه سړے او ښځه دا منتخب کولې شی او دا خبرې د اسلام خلاف دی.

**٢/ حرية حق الترشيح** : يعنی کوم سړے چه پخپله باندې سياست ته ځان رامخکې کوی نو په هغه باندې پابندی نشته هغه هر قسمه سړے رامخکې کيدې شی ، که هغه کافر وی ، که مسلمان وی ، که مشرک وی وغيره خو چه د جمهوری لحاظ سره هغه برابر وی نو هغه ته اجازت دے چه هغه ځان مقرر کړی خلقو ته .

**٣/ حرية حق التشريع** : يعنی ته چه په کومه طريقه باندې تشريع شريعت جوړوے نو تاته آزادی ده پابندی نشته ، پديکې مثلا ستا د ذهن مطابق خبره ده نو هغه ته پيش کولې شی .

**٤/ حرية حق مراقبة الحاکم** : يعنی هر سړے په بادشاه باندې اعتراض کولې شی چه مثلا پدې بادشاه کې دا خطاء ده دا ګناه ده ، دا غلطی ده .

**٥/ حرية عزل الرئيس** : د حاکم او بادشاه په معزوله کولو کې خلق آزاد دی ، يعنی که بادشاه ئی خوښ نشی نو د بادشاه په مخالفت کې دې راپاڅيږی او د هغې مخالفت دې اوکړی

او هغه دي د بادشاهۍ منصب نه لری کړی .

٦/ **حق تولی الوظائف العامة** : چه چاته هم عامي وظیفي ورکوے نو هم تاته اجازت دے.

٧/ **حرية تكوين احزاب السياسية والانتهاء والانتباء اليها** : یعنی چه ته کومه ډله سیاسی جوړوے او هغي له بیا ځنګه او په څه شی ترق ورکوے نو تاته اجازت دے او په تاباندي هیڅ قسمه پابندی نشته ، ددې وجه نه په مغربی ممالکو کې چه کوم مالداره ممالک دی نو هغوی بیا پدې غریبو ممالکو کې داسې ډلي جوړوی ، مثال : ............ ، نو دا یو څو قسمه حریتونه او آزادۍ په جمهوریت کې ملحوظې دی ، او ددې نه دا خبره معلومه شوه چه د جمهوریت بنیاد په حاکمیت ، په مساوات ، او په حریت باندې شو ، او بیا په حریت او آزادۍ کې بیا دومره آزادۍ دی ، نو په حقیقت کې دوی انسان د الله د بندګۍ نه آزاده وی ، او دا د دوی مقصد او اصلی هدف دے که لګ سوچ ورته تاسو وکړۍ .

**د جمهوریت په کفر باندې دلائل** : نو رومبنۍ په هغې کې د حاکمیت والا اړخ او طرف وو نو د حاکمیت په طرف کې به مونږ دلائل پیش کړو چه دا کفری نظام دے ، نو د حاکمیت په طرف کې مونږ څلور خبرے ذکر کړے وے :

١/ **د تشریع او تقنین وه** : چه خپله به شریعت جوړوی او خپله به قانون جوړوی ، نو دا کفر دے : ځکه چه د شریعت جوړول او د قانون جوړول حق صرف د یو الله جل جلاله دے لکه الله تعالیٰ فرمائی : « **ان الحکم الا لله** » " حکم او فیصله نده مګر د الله جل جلاله دپاره ده " ، نو قانون سازی د الله جل جلاله حق دے لکه الله فرمائی : ﴿ أَمۡ لَهُمۡ شُرَكَـٰٓؤُاْ شَرَعُواْ لَهُم مِّنَ ٱلدِّينِ مَا لَمۡ يَأۡذَنۢ بِهِ ٱللَّهُ ﴾[1]

دغه شان په بل ځائی کې الله جل جلاله فرمائی : ﴿ لَا مُعَقِّبَ لِحُكۡمِهِۦۚ وَهُوَ سَرِيعُ

[1] [ سورة الشورى : ٢١ ] .

ٱلۡحِسَابِ ۝٤١ ﴾[1] مخكي په تحكيم القوانين كې چه خومره خبري شوے دى هغه دلته رايادې كړه ، نو په تحكيم القوانين كې مونږ دا خبره كړې وه چه تشريع او تقنين بخپله كول نو دا كفر دے، ځكه چه ته د الله تعالىٰ د قانون په ځائى باندې ملعون وضعى قانون كيږدې، او دا معارضه ده د الله د قانون سره او دا په حقيقت كې د الله په قانون باندې عدم رضا ده او څوک چه د الله په قانون او د الله په دين باندې رضا نشو نو دا سړے كافر دے په نيز د عامو علماؤ اجماع ده پدې باندې ، ځكه دوى د تشريع او تقنين حق انسان ته وركوى او پدې باندې د جمهوريت نظام كفر دے ، ځكه الله تعالىٰ فرمائى : « **ان الحكم الا لله**» " حكم او فيصله نده مگر د الله جل جلاله دپاره ده " ، او دوى وائى : « **ان الحكم الا لشعب** » چه فيصله قانون جوړول دا به د خلقو كار وى ، دا رنگه اسلام وائى : كه چرته يو كس اراده كړى وه چه مونږ به د غير الله په فيصله باندې فيصله كوو نو اسلام اووئيل : « **يزعمون انهم امنوا بما انزل اليک** » ، دا رنگه اسلام د هغوى په مقابله كې اووئيل : ﴿ فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤۡمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيۡنَهُمۡ ﴾[2] نو څوک چه د الله د قانون نه بغير بل قانون حاكم جوړوى او قانون سازى كوى ، نو قانون سازى خو د الله حق دے او څوک چه د الله حق په خپل لاس كې اخلى نو ديته شرک وائى ، نو شرک بالله دې په صفت د حاكميت كې : ﴿ وَلَا يُشۡرِكُ فِي حُكۡمِهِۦٓ أَحَدٗا ﴾[3] نو په دغه مرتبه كې چه ته قانون سازى د انسان گرځوې نو دا كفر دے .

او مخكې مونږ وئيلى وو كنه چه يو جاهل سړے صرف دومره قدرې اوكړى چه د مفتى په

[1] [ سورة الرعد : ٤١ ] .

[2] [ سورة النساء : ٦٥ ] .

[3] [ سورة الكهف : ٢٦ ] .

منصب باندې كيني او وائي چه راځئ زه فتوى دركوم نو پدې سره دا كافر كيږي شرح العقائد حواله مونږ وركړې وه ، ځكه چه دا د افتاء د منصب بې آدبي اوكړه نو يو كس چه د منصب الـٰهي بې آدبي وكړي نو څه دي خيال دے .

**دويمه خبره** : دوى وئيلي وو چه د عوامو اراده مقدسه ده ، يعنى د خلقو اراده رد كول د جمهوري لحاظ سره دا صحيح ندى ، حالانكه الله جل جلاله د عوامو ارادې ته ترجيح نه وركوى بلكه فرمائي : ﴿ وَأَنِ ٱحۡكُم بَيۡنَهُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ وَلَا تَتَّبِعۡ أَهۡوَآءَهُمۡ ﴾[1] نو اراده خو د الله تعالىٰ مقدسه ده ځكه چه هغه « **فعال لما يريد** » ذات دے ، نو دوى د الله د ارادې په ځائي باندې دوى د عوامو اراده رامخكې كړه نو دا هم معارضه ده ، ځكه د الله اراده مقدسه ده الله فرمائي : ﴿ لَا يُسۡـَٔلُ عَمَّا يَفۡعَلُ وَهُمۡ يُسۡـَٔلُونَ ﴿٢٣﴾ ﴾[2] د الله نه تپوس نهٔ كيږي او د انسان نه تپوس كيږي دوى وائي چه نه عوام آزاد دى ، نو دوى ددې آيت قانونيت په خپل عقل سره منسوخ كړو ، او د هغې په ځائي باندې ئې بله خبره رامخكې كړه چه اراده د انسان مقدسه ده ، د عوامو او دا اولس اراده مقدسه ده د عوامو په اراده به عمل كيږي او قرآن د الله اراده او خبره مقدسه كړې ده او « ان حكم بينهم بما انزل الله » او دا انسان اراده او فيصله ئې ، « ولا تتبع أهواءهم » هغه ئې مردوده وګرځوله نو دوى ددې آيت په مقابله كې خپل قانون رواړو او معارضه ئې وكړه دې آيت سره د ( ولا تتبع أهواءهم ) په ځائي (اتبعوا أهواءهم) اووئيل او بيا څوک چه د الله د فيصلې خلاف وكړي نو دوى هغهٔ ته هيڅ نه وائي او كه چا د عوامو د فيصلې او قانون نه خلاف وكړو نو هغه ته بيا څنګه فوراً سزا وركوي دا ئې د هغه تقدس صورت شو لكه نن تاسو ګورئ كنه په مغربى ملكونو كې چه څوک د دين عيسايت خلاف كوى او بيا عيسايت پريدى د هغوي په نيز مرتد شي هغوى عيسايان دى دينى لحاظ سره نو

---

[1] [ سورة المائدة : ٤٩ ] .

[2] [ سورة الأنبياء : ٢٣ ] .

هيڅ ورته نه وائي ، او که چرته د عوامی وضعی قانون جمهوريت نه خلاف وکړی او يا جمهوريت انکار وکړی نو بيا هغه باغی شمارل کيږی هغه سزا ورکوی او د هغه خلاف جنګ هم کوی نو د هغه تقدس شو او دغه رنګه زمونږ او ستا ملکونو کې هم ځومره خلق د احکام الهی نه خلاف کوي او ښه ښکاره ئې کوی باقاعده ځايونه ورته جوړ دی او سود خو هسی هم ښکاره کيږي تردې چه خلق د اسلام نه واړوی نو هم څه ورته نه وائی ، او که چرته د جمهوريت خلاف ئې وکړو نو بيا څنګه سزاګانې ورکوي ، نو ګورئ يو کس دې هغه يوه ګناه کوی او بل کس دے هغه دې ګناه ته جائز وائی او يا ئې ورته قانون جوړ کړې وی نو پديکې ډير فرق دے او مونږ په اول کې دا قاعده وئيلې وه چه د خالق قانون په ځائی د مخلوق ملعون وضعی قانون کيخودل دا کفر دے تردې چه يو سړے د عالم نه مخکې شی د هغه د علم د وجه نه نو علماء پدې سړی د کفر فتوی ورکړے ده نو چه يو کس د عوامو جمهوری قانون رامخکې کوی نو د هغه به څه حال وي ، او ددې ډير مثالونه دي نو چه کوم سړے د الله په قانون باندې ځان مخکې کوی نو هغه خو کافر شو ، الله فرمائی : ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تُقَدِّمُوا۟ بَيْنَ يَدَيِ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ۖ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ١ ﴾[1] نو دغه تقديم کول ددې وجه نه علامه ابن کثير رحمة الله عليه په خپل تفسير کې په هغه تقديم باندې فتوی د کفر ورکړيده ، لکه ابن کثير رحمة الله عليه فرمائی : ياسق د تاتاريانو قانون وو او دې خلقو دغه ياسق قانون مقدم ګنړلې وو په قرآن او حديث باندې ، نو سوال خو دا شو چه جمهوريت والا خو دا مقدم نهٔ ګنړی ؟ **جواب** : هم دغه ئې مقدم ګنړل دی ځکه چه دوی د الله د ارادې په ځائی باندې خپله اراده کيخودله او بيا دا خپله اراده مقدسه ګنړی د ارادې د قرآن نه ، ځکه د دوی سره يو قانون دے چه هغې ته اساسی قانون وائی او دا د جمهوريت مطابق وی ، نو کله چه دوی د قرآن قانون په پارلمان کې پيش کړی چه دا دې منظور شی نو پارلمان والا ورته وائی چه دا به

---

1) [ سورة الحجرات : ١ ] .

مونږ د اساسی قانون په نظر کې ګورو نو د یو طرف نه به هندو راپاڅیږی چه پدیکې دا قانون غلط دے ، د بل طرف نه به بل راپاڅیږی هغه به رد شروع کړی او بیا وائی چه دا د آساسی قانون مخالفه ده ، نو دوی آساسی قانون خبره مقدسه ګڼړی او د قرآن فیصله د هغې تابع ګڼړی که چرته دا د قرآن فیصله د اساسی قانون سره موافقه راغله نو بیا به دا د قرآن فیصله په ملک کې نافذ کیږی او که چرته د اساسی قانون سره مخالفه راغله نو بیا دا خبره رد کیږی ، نو ددې وجه نه د شریعت بل په پارلمان کې پیش شی او بیا رد شی نو عوام خو پدې باندې نۀ خبریږی چه دا ولی پیش شو او دا ولې رد شو ځکه چه هغوی دا د اساسی قانون په رنړا کې ګوری ، نو ددې وجه نه مونږ پدې باندې فتوی د کفر ورکوو ځکه چه دوی اساسی قانون د قرآن د قانون نه پورته ګڼړلې دے ، او ددې وجه مونږ دا خبره کوو چه جمهوریت په کفرونو کې د کفر سردار دے ، کمونیزم ځان ته یو کفر دے ، سوشلزم ، یهودیت ، او نصرانیت ځانته یو کفر دے خو دا جمهوریت د کفرونو سردار دے ، دا ځکه چه جمهوریت ته اساسی حیثیت حاصل دے او هغه دا دے چه دوی د عوامو اکثریت ته ګوری نو که حلقو یو کمیونز سړی ته ووټونه ورکړل او کمیونز سړے پاس شو نو په ملک کې به کمونیزم نظام نافذ کوی نو د جمهوریت په لاره باندې کمونیزم هم راتلې شی ، دارنګه که یو سوشل سړے ئې پاس کړو نو هغه به په ملک کې سوشلیزم قانون راولی نو د جمهوریت په لاره باندې سوشلیزم هم راتلې شی ، حاصل دا چه د جمهوریت په لاره چه تا کوم سړے پاس کړو نو هغه بیا دغه جمهوریت په ملک کې راولی، نو جمهوریت دا بنیاد د کفر دے ، نو دا د حاکمیت دویمه خبره شوه .

**دريمه خبره** : دوی وائی چه اکثریت رائی معیار د حق دے چه اکثریت په کومه خبره متفق شو نو هغه به زمونږ رائی وی ، خو د اکثریت د متفق کیدو دپاره دوی دوه طریقې اختیاروی ، په وړو امورو کې د اکثریت طریقه دا وی : چه یو طرف ته د نصف نه یو هم سوا شو نو بس دۀ ته اکثریت حاصل شو ، بل طرف ته دو تهائی اکثریت دے چه مثلاً : دا خلق شپږ حیصې کړه نو پدیکې چه د څلورو حیصو خبره په کومه باندې متفقه شوه نو دیته

وئيلى كيږى دو تهائى ، نو ديته به ترجيح ورکول کيږى ، او په پارلمان کې فيصلې په دو تهائى باندې کيږى ، او ددې په مقابله کې قرآن د محض اکثريت نه انکار کوى او فرمائى : ﴿ وَإِن تُطِعْ أَكْثَرَ مَن فِي ٱلْأَرْضِ يُضِلُّوكَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾[1] " که چرته تا د اکثريت تابعدارى اوکړه نو دا به تا د حق نه گمراه کړى " ، نو دلته قرآن دا قانون کيخودو چه د اکثريت تابعدارى مۀ کوه د حق تابعدارى کوه ، او ددې په مقابله کې دوى قانون جوړ کړو چه اطيعوا اکثر من فى الارض ، يعنى اطاعت کوئ د اکثر من فى الارض ، نو د الله د امر نه خلاف بل امر شروع کړو نو پدې باندې به سړے نۀ کافر کيږى ؟ مثلا يو سړے زنا کوى ، او بل سړے د زنا دپاره قانون جوړ کړى چه زنا کول جائز دى نو دا کفر دے ، ځکه چه د الله د قانون نه مخالف ده امر شروع کړو نو دغه شان دا هم دے چه دوى وائى چه د اکثريت تابعدارى کوئ نو دا ئې د الله د قانون سره معارضه اوکړه ، او بيا ئې دې خبرے ته دومره تقدس ورکړو که چا ددې خبرے خلاف اوکړو نو د هغه خلاف به ټوپک راوچتيږى او د هغه سره به جنګ کيږى ، نو بيا هغه طرف ته لاړ شه چه : « **اما اذا قتله على دين الاسلام مثل ما يقاتله النصراني على دينه فهذا شر من الكافر المعاهد فان هذا كافر محارب بمنزلة الكفار الذين يقاتلون النبى واصحابه** » يعنى دا په منزله د هغه کافرانو دے چه د پيغمبر او د هغې د ملګرو سره جنګ کړے وو ، نو دا دريم صورت شو .

**څلورم صورت** : چه دوى وائى : د حاکميت په طرف کې عقل معيار د قانون سازئ دے نو په عقل باندې به فيصله کيږى چه عقل څۀ وائى نو په هغې باندې به فيصله وى ، حالانکه اسلام دا نۀ منى ځکه اسلام د شريعت تابعدارى منى او دا ځکه چه عقل کله کله د شريعت سره هم مخالف راتلې شى ، او پديکې يوه خبره دا ده : چه اسلام د شريعت تابعدارى ځکه کوى چه خلق د اختلافاتو نه بچ کوى ځکه که په عقل باندې فيصله شى نو په عقل کې يو

[1] [ سورة الأنعام : ١١٦ ] .

نقصان دا دے چه عقلونه د خلقو مختلف وی چه د یو سړی په عقل باندې یوه خبره صحیح وی خو د بل سړی په عقل باندې هغه خبره غلطه وی ، یو سړے به وائی چه دا کار چا اوکړو نو ده ته دې انعام میلاؤ شی د بل سړی عقل به وائی چه ده ته دې سزا میلاؤ شی نو د عقلونو په اعتبار سره خبره مختلفه ده نو ددې په وجه شریعت عقل لره اعتبار نۀ ورکوی ، دویمه خبره دا ده : چه عقل نن په یوه خبره باندې فیصله کوی صبا له بیا دا عقل په هغه خپله خبره باندې رد کوی ځکه چه د عقل په فیصله کې مضبوط والې نه وی او د شریعت په فیصله کې مضبوط والې وی د هرے زمانې ، د هر وخت ، د هر مکان سره د هغه خبره اتله وی او هغه یوه فیصله وی او هغه د ټولو ځاینو سره موافق راځی .

**ځلورمه خبره دا ده** : چه څنګه عقل د زمانې د بدلون سره بدلیږی نو دغه شان عقل د خواهشاتو نه هم متأثره کیږی چه کله پده باندې د خواهشاتو بوج راشی نو بیا عقل کار نۀ کوی نو ددې په وجه عقل د یو څیز په صحیح معلومولو کې یا غلط معلومولو کې کافی ندې، دا رنګه د معتزلو دا رائی وه : چه صرف عقل تمیز کوی په ما بین د حلالو او حرامو کې ، او مونږ وایو : صحیح ده څۀ نا څۀ درجه د عقل شته خو لیکن ددې سره خبره د شریعت وی او که د شریعت په مقابله کې عقل راغلې او بیا دې په عقل باندې فیصله اوکړه نو بیا عقل د ګمراهئ سبب دے ځکه عقل په اشیاء باندې د حرمت او د جواز حکم نشی لګولې ، وائی : « که په عقل لار موندې شوے بې د فضله ... چا به ضال نۀ وئیلې ابو علی سینا ته » نو ابو علی سینا بیا ولې ګمراه شو ځکه ابو علی سینا خو غټ عاقل وو ، نو معلومه شوه چه عقل کافی ندې په تمیز د اشیاؤ کې ، نو دا خبره کول چه عقل معیار د حق اوګرځوی نو دا خبره نقصانی ده ، نو دائی هم د کفر کار دے چه دوی عقل ته د إلٰـهیت درجه ورکړه ، نو مونږ وایو : چه د الله شریعت معیار د حق دے ، دوی وائی : چه عقل معیار د حق دے .

اوس راشه دویم نمبر ته چه مساوات دے : د مساوات په باره کې قرآن فرمائی : ﴿ ٱلرِّجَالُ

قَوَّٰمُونَ عَلَى ٱلنِّسَآءِ ﴾[1] " سړی به حاکمان وی په ښځو باندې " ، بيا بل ځائی کې الله فرمائی : ﴿ قُلۡ هَلۡ يَسۡتَوِي ٱلَّذِينَ يَعۡلَمُونَ وَٱلَّذِينَ لَا يَعۡلَمُونَ ﴾[2] " آيا عالمان او جاهلان يو برابر دی ؟ " ، نو دا دواړه ندی برابر ځکه عالمانو ته الله تعالیٰ فضيلت ورکړيدے په جاهلانو باندې ، لکه الله تعالیٰ بل ځائی کې فرمائی : ﴿ يَرۡفَعِ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مِنكُمۡ وَٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡعِلۡمَ دَرَجَٰتٖ ﴾[3] نو الله ټولو مؤمنانو ته افضليت ورکړے دے خو چه کومو کسانو سره علم دې نو د هغوی دپاره بيا درجې دی پدې نورو ، دغه شان الله تعالیٰ په بل ځائی کې فرمائی : ﴿ هَلۡ تَسۡتَوِي ٱلظُّلُمَٰتُ وَٱلنُّورُ ﴾[4] آيا تيارې او رڼړا يو برابر دی يعنی کفر او اسلام يو برابر دی ؟ نو دا يو برابر ندی ، او په بل ځائی کې الله جل جلاله فرمائی : ﴿ أَفَنَجۡعَلُ ٱلۡمُسۡلِمِينَ كَٱلۡمُجۡرِمِينَ ٣٥ ﴾[5] آيا مونږ مسلمانان د مجرمانو پشان ورکرځوو ؟ نو نهٔ مسلمان د مجرم پشان ندې ، دا شان بل ځائی کې فرمائی : ﴿ أَفَمَن كَانَ مُؤۡمِنٗا كَمَن كَانَ فَاسِقٗاۚ ﴾[6] آيا يو سړے چه مسلمان دے نو دا پشان د هغه سړی دے چه هغه فاسق او کافر وی ؟ نهٔ ، دغه شان بل ځائی کې فرمائی : ﴿ إِنَّ أَكۡرَمَكُمۡ عِندَ ٱللَّهِ أَتۡقَىٰكُمۡ ﴾[7] نو الله پدې ټولو آيتونو کې

---

1 [ سورة النساء : ٣٤ ] .

2 [ سورة الزمر : ٩ ] .

3 [ سورة المجادلة : ١١ ] .

4 [ سورة الرعد : ١٦ ] .

5 [ سورة القلم : ٣٥ ] .

6 [ سورة السجدة : ١٨ ] .

7 [ سورة الحجرات : ١٣ ] .

فضيلت ورکړو متقی سړی ته په غیر متقی باندې ، مؤمن ته ئې فضیلت ورکړو په کافر باندې، او عالم ته ئې فضیلت ورکړو په جاهل باندې ، سړی ته ئې فضیلت ورکړو په ښځه باندې ، دغه شان الله تعالیٰ د کفارو په باره کې فرمائی : ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ كَٱلۡأَنۡعَٰمِ بَلۡ هُمۡ أَضَلُّ ﴾[1] بل ځائی کې الله فرمائی: ﴿ لَقَدۡ خَلَقۡنَا ٱلۡإِنسَٰنَ فِيٓ أَحۡسَنِ تَقۡوِيمٖ ۝٤ ثُمَّ رَدَدۡنَٰهُ أَسۡفَلَ سَٰفِلِينَ ۝٥ ﴾[2]

نو الله تعالیٰ داسې قانون جوړ کړو ، او د هغې په مقابل کې بل سړے راپاڅیدو او خپل قانون ئې جوړ کړو چه الرجال والنساء سواء » چه سړی او ښځې یو برابر دی په مینځ کې هیڅ قسمه فرق نشته ، دا رنګه بل سړے راغلې او د عالم او د جاهل په باره کې قانون جوړ کړو چه «**العلمأء والجهلاء سواء**» عالمان او جاهلان دا یو برابر دی ، او داسې ددې نورو مثالونو په مقابل کې دوی ځانله یو بل قانون جوړ کړو ، نو پدې ټولو قانونو کې دوی معارضه اوکړه د الله تعالیٰ په قانون کې ، د الله تعالیٰ د پاک قانون په مقابل کې خپل وضعی ملعون قانون کیخودلو ، او بیا ددې قانون د تقدس خیال اوساتلو که چرته څوک ددې خبرے مخالفت کوی چه سړے او ښځه یو برابر نشی نو د هغې په خلاف ئې بیا خپل این جی او ګان جوړ کړل او د هغې په خلاف ئې خپلې محکمې جوړې کړے چه هغه محکمی ته به هغه سړے راطلب کیږی او د هغې په خلاف به په حکومت کې مقدمه درج کیږی چه دا د جمهوریت خلاف دے دا د زمونږ د ملک د آزادئ خلاف دے نو د هغه په خلاف به ایکشن اغستلې شی ، او داسې دا ټول مساوات تاسو اوګورئ نو د دوی دا مساوات دا کفر دے او دا مساوات په اسلام کې وجود نهٔ لری او تحلیل د ماحرم الله ئې اوکړو ، الله د دوی په مابین کې برابر والې حرام کړی وو او دوی پکې حلال والې راوستو .

---

1) [ سورة الأعراف : ١٧٩ ] .

2) [ سورة التين : ٤ ـ ٥ ] .

**اوس حريتونو ته راشه** : اول پکي حريت شخصی دے : نو په حريت شخصی کې دوی اووئيل: چه حق الحيات به هر چاته حاصل وی ، نو مونږ به د اسلام په رنړا کې دا حق الحيات ګورو ، الله تعالیٰ فرمائی : چه داسې حق الحيات هر چاته نهٔ ميلاويږی لکه الله فرمائی :
﴿ قَٰتِلُواْ ٱلَّذِينَ لَا يُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ وَلَا بِٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِ وَلَا يُحَرِّمُونَ مَا حَرَّمَ ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥ وَلَا يَدِينُونَ دِينَ ٱلۡحَقِّ مِنَ ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡكِتَٰبَ حَتَّىٰ يُعۡطُواْ ٱلۡجِزۡيَةَ عَن يَدٖ وَهُمۡ صَٰغِرُونَ ٢٩ ﴾ [1] نو تا سره درې لارے دی ، يا اسلام قبول کړه ، يا جزيه ورکړه، يا قتال ته تيار شه ، نو داسې حق الحيات تاته ندې حاصل چه تهٔ دې ژوندې ګرځې بغير د پابندئ نه ، نو جمهوريت راغلې او د هغې په مقابله کې اووئيل : چه نهٔ پدې باندې نهٔ اسلام پيش کولې شی په زور سره ، نه قتال او نهٔ جزيه نو جمهوريت د اسلام ددې قانون په مقابله کې بل قانون جوړ کړو ، ددې وجه نه دوی وائی : چه ته په خپل ملک کې هر قانون جاری کوے نو ستا ګاونډی ملک سره هيڅ قسم رشته نشته چه ته هغه ته ووائی چه ته هم دا قانون جاری کړه ، نو په حق الحيات کې دا خبری دی چه اسلام ، قتال ، جزيه به په چا باندې نهٔ پيش کوے .

دغه شان حق التنقل خبره مخکې ذکر شوه چه نقل مکانی کول ، نو الله تعالیٰ د هغې نه هم منع اوکړه فرمائی : ﴿ وَإِنۡ أَحَدٞ مِّنَ ٱلۡمُشۡرِكِينَ ٱسۡتَجَارَكَ فَأَجِرۡهُ حَتَّىٰ يَسۡمَعَ كَلَٰمَ ٱللَّهِ ثُمَّ أَبۡلِغۡهُ مَأۡمَنَهُۥۚ ﴾[2] اسلام د هغې اجازت ورکړے دے خو محدود اجازت ئې ورکړے دے ، که چرته يو سړے راځي او ستا نه امن غواړی نو امن ورته ورکړه خو مجتهدينو علماء کرامو د هغې تعين په يو کال سره کړيدے ، چه يو کال حربی کافر په حيثيت د مستأمن سره د مسلمانانو په ملک کې پاتې کيدلې شی ، خو د هغې هم دوه حيثيته دی ، يا به د تجارت دپاره راځی ، يا به د الله د کلام د اوريدلو دپاره راځی ، دريم صورت چه خپل تبليغ له راځي چه هغه اوکړی

---

[1] [ سورة التوبة : ٢٩ ] .

[2] [ سورة التوبة : ٦ ] .

نو د هغې اجازت کافر ته نشته په هغې باندې پابندي ده ، او دوی وائی : چه نۀ حق التنقل دے چه کوم ځائی ته سړے نقل مکانی کوی نو دا دۀ ته اجازت دے او پدې باندې څوک پابندی نشی لګولې ، نو دوی د الله د قانون په مقابل کې دوی بل قانون جوړ کړو او د الله د قانون په ځائی باندې ئی کیخودو ، نو مونږ وایو چه څوک د الله د قانون په ځائی باندې خپل قانون کیږدی نو هغه قاعده ورته متوجه کیږی چه دا سړے کافر دے .

**۳/ نمبر خبره**: دوی اووئیل چه حق عدم الاسترقاق ، چه د انسان نه به غلام نۀ جوړوے، او مونږ وایو : چه الله تعالیٰ مونږ ته پدې باندې اجازت راکړیدے چه د دوی نه مو کوم کسان په ګرفت کې راغلل نو د هغوی نه غلامان جوړ کړئ ، نو الله ئی مونږ ته تحلیل اوکړو ، او دوی د هغې تحریم اوکړو چه انسان به غلام نۀ جوړوے ځکه چه دا دده د آزادئ حق دے ، نو څوک چه تحریم د ما احل الله کوی نو دا کفر دے .

**بل حق حرمة المسکن وو**: یعنی دوی وائی : چه ده ته د مسکن په حقله باندې اجازت دے چه دا په کوم ځائی خپل مکان جوړوی نو هغه جوړولې شی ، نو مونږ وایو چه دا خبره د دوی غلطه ده ځکه پیغمبر علیه السلام د وفات کیدو په وخت کې فرمائی : « **اخرجوا الیهود النصارٰی من جزیرة العرب** » [ بخاری ] " یعنی یهود او نصاری د جزیرة العرب نه اوباسئ "، بل روایت کې راځي چه اخرجوا المشرکین من جزیرة العرب ، دغه شان الله تعالیٰ فرمائی :

﴿إِنَّمَا ٱلْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ فَلَا يَقْرَبُوا۟ ٱلْمَسْجِدَ ٱلْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ هَـٰذَا ﴾[1] نو الله د مسجد حرام نه اوباسل ، او دوی وائی چه زه په عربو کې پاتې کیدې شم ، نو دغه د جمهوریت اثر دے چه نن دوی په عربو کې آباد دی ، نن د عربو په ریګستان کې د امریکې فوج پروت دے .

---

[1] [ سورة التوبة : ۲۸ ] .

**بل دې حق الامن** : چه بس هر سړی ته دې امن حاصل شی ، که بالفرض يو سړے زنا کوی نو هغه ته به امن حاصل وی ، که هره بدعملی هغه کوی نو هغه ته به حق الامن حاصل وی ، مونږ وايو : چه دا خبره غلطه ده که دۀ قتل اوکړو نو دۀ ته به امن نۀ وی ځکه الله فرمائی : ﴿كُتِبَ عَلَيۡكُمُ ٱلۡقِصَاصُ فِي ٱلۡقَتۡلَىۖ ﴾[1] دغه شان که ده چرته زنا اوکړه نو قرآن وائی : ﴿ ٱلزَّانِيَةُ وَٱلزَّانِي فَٱجۡلِدُواْ كُلَّ وَٰحِدٖ مِّنۡهُمَا مِاْئَةَ جَلۡدَةٖۖ ﴾[2] او که چرته نکاح ئې وی نو بيا به رجم کيږی ، دغه شان که ده غلا اوکړه نو بيا به د ده نه لاس کټ کيږی ، دارنګه که چا دين اسلام پريښودو هغه ته هم امن نشته دے جمهوريت راغې او دا ټول قوانين ئې ختم کړل او خپل قانون ئې مخې ته را وستلو چه حق الامن دے نو دا ئې د شخصی په نامې باندې کفر اوکړو ، او ديته هم هغه قاعده بيا متوجه شوه چه دا کافر دے ، نو دا ئې په حرية مادی کې خبرے شوے .

**اوس حرية معنوی** کې د دوی يوه خبره حرية العلم وو : نو اسلام د حرية العلم اجازت نۀ ورکوی ، لکه اسلام وائی چه ساحر قتل کړئ ، بلک خاص علوم به حاصلوې ، خو داسې علوم چه اسلام د هغې نه منع کوی نو هغه به نۀ حاصلوې نو دا د اسلام يو اټل قانون شو ، نو ددې په مقابل کې جمهوريت قانون جوړ کړو چه انسان ته حرية العلم حاصل دے که هر قسمه علم حاصلوې نو تاته اجازت دے که علم النجوم حاصلوې ، که علم السحر حاصلوې نو دا تاته اجازت دے پديکې په تا باندې پابندی نشته ، نو د اسلام دا پابندی لرې کول دا تحليل د ما حرم الله دے ، او علامه ابن تيميه رحمه الله په مجموعة الفتاوی کې فرمائی : « **من حلل الحرام وحرم الحلال المجمع عليه فقد كفر** » دغه شان بحر الرائق والا فرمائی : « **من اعتقد الحلال حراما فقد كفر** » .

---

[1] [ سورة البقرة : ١٧٨ ] .

[2] [ سورة النور : ٢ ] .

**بل حرية الاعتقاد** دے : نو دوی وائی : چه د مذهب په لحاظ سره تهٔ آزاد ئی ، او اسلام فرمائی: چه نهٔ قرآن فرمائی : ﴿ وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ ٱلْإِسْلَـٰمِ دِينًا فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِى ٱلْـَٔاخِرَةِ مِنَ ٱلْخَـٰسِرِينَ ﴾[1] نو دغه شان اسلام فرمائی : « **من بدل دينه فاقتلوه** » نو جمهوريت ددې قانون په مقابله کې بل قانون جوړ کړو ، او ددې قانونی حيثيت صحابه کرامو دومره خيال ساتلو لکه ابن عباس ﷺ يمن ته لاړو د هغه والی خواته چه کوم په يمن کې مقرر وو نو د هغه په خوا کې يو سړے تړل شوے وو ، نو ورته ئی اووئيل : چه دا سړے مو ولې تړلې دے نو هغه ورته اووئيل : چه دا يهودی وو بيا الله پاک په اسلام باندې مشرف کړو او بيا ئی اسلام پريخودلو او يهودی شو نو ځکه مې تړلې دے ، نو ابن عباس ﷺ ورته اووئيل : چه دا قتل کړه او زه تر هغه پورے نه کينم چه تر څو پورے د الله فيصله نوی عملی شوے ، نو هغه سړے ئی قتل کړو نو بيا ورسره کيناستلو ، نو تر دومره پورے صحابه کرمو ددې خيال ساتلو، نو جمهوريت دغه قانونی حيثيت ختم کړو او بل قانون ئی جوړ کړو چه هغه حرية الاعتقاد دے .

**بل حرية التعبير عن الرئى** دے ، يعنی چې د خپلې رائے نه چه ته څنګه تعبير کوے نو پديکې په تا باندې څه پابندی نشته ، نو اسلام په دين کې هر سړی ته د رائی اجازت نهٔ ورکوی بلکه اجازت ورکوی خو هغه هم مجتهد ته او هغه په هغه ځائی کې چه نص موجود نهٔ وی ، او هغه هم د خپلې رائی نه خبره نهٔ کوی بلکه هغه به د قرآن او حديث نه راخلی ، نو دومره شرطونه پکې دی ، او دا رنګه قرآن فرمائی : ﴿ وَإِن نَّكَثُوٓا۟ أَيْمَـٰنَهُم مِّنۢ بَعْدِ عَهْدِهِمْ وَطَعَنُوا۟ فِى دِينِكُمْ فَقَـٰتِلُوٓا۟ أَئِمَّةَ ٱلْكُفْرِ ﴾[2]

نو قرآن کريم پابندی اولګوله ، او ددې په مقابله کې دوی حرية التعبير عن الرائی قانون

---

[1] [ سورة آل عمران : ۸۵ ] .

[2] [ سورة التوبة : ۱۲ ] .

جوړ کړو ، چه سړے د خپل رائی نه تعبير کوی چه څنګه تعبير کوی نو دا ده ته ازادی ده ، هم دغه وجه ده چه سلمان رشدی يو مرتد دے او دې د خپلې رائی نه تعبير اوکړو او يوه رساله ئی اوليکله په نوم د شيطانی آياتونه باندې ، او پديکې د قرآن کريم آيتونه را واغستل او هغې ته ئی نوم کيخودو شيطانی آياتونه ، او بيا چه کله مسلمانان د هغې په خلاف راپاڅيدل چه دا مرتد دې محاکمه شی نو برطانئ حکومت د هغه په سر باندې اودريدو چه نهٔ دا د تعبير عن الرأئی حريت دے او پديکې دا مرتد څوک نشی پابند کولې او بيا هغې ته نوم ورکړو سر سلمان رشدی لقب ئی ورته ورکړو ، داسې نور مثالونه هم ډير دی ، نو څوک چه د ائمه د کفر تحفظ کوی نو هغه به کافر وی او که نه ؟

**بل حرية عقد الاجتماعات وحضورها** : نو په هغې کې خبره مخکې شوے وه ، نو اسلام ددې په باره کې اوفرمائيل : ﴿ فَلَا تَقۡعُدُواْ مَعَهُمۡ حَتَّىٰ يَخُوضُواْ فِي حَدِيثٍ غَيۡرِهِۦٓ ﴾[1] او دا وائی چه د اسلام په خلاف اجتماعاتو کې د حاضريدلو اجازت تاته شته دے ، نو دا تحليل د ما حرم الله دے او که نه ؟ خو بيا هم پدې باندې دچا ذهن نه کولاويږی چه جمهوريت کفر دے .

**اوس حريت اقتصادی ته راشه** : نو پديکې دوی تاته د سود اجازت درکړو ، دارنګه د بيع باطلې اجازت ئی تاته درکړو ، نو که چرته يو سړے په اجتماعی حيثيت سره ديته جائز ووائی نو آيا دا سړے به کافر نهٔ وی ؟ دا رنګه سود نصی کفر دے لکه الله فرمائی : ﴿ فَإِن لَّمۡ تَفۡعَلُواْ فَأۡذَنُواْ بِحَرۡبٍ مِّنَ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦۖ ﴾[2] او ددې په مقابله کې دوی د سود اجماعی حلت ثابتوی او دا جائز ګنړی ، او پديکې حرية التملک هم دے او تاته اجازت درکوی ، نو دا تحليل دما حرم الله دے او دا اجماعی کفر دے ، بيا هم جمهوريت ته کفر نشی ويلې .

---

[1] [ سورة النساء : ١٤٠ ] .

[2] [ سورة البقرة : ٢٧٩ ] .

**د ارنېكه حرية تكوين الجمعيات والانتساب اليها** : وائی ته ځانته مختلفې ډلې په جمهوريت کې جوړولې شی ، او دا تاته آزادی ده ، حالانکه اسلام وائی : « **اذا بويع لخليفتين فاقتلوا الاخر منهما** »[1]

او جمهوريت د دې په مقابله کې وائی : اذا بويع لخليفتين فأيد الآخر منهما ، نو اسلام حزبيت او تفرق ختموی ، ځکه تفرقه کول په اسلام کې حرام دی ، او چه جمهوريت راشی نو دغه حرام شيز جائز کوی ، دا ئی يو ځانله قانون جوړ کړو چه خلق دې مختلفې ډلې جوړې کړی ، او دا خبره ياده ساته چه مونږ بار بار ذکر کړه : چه څوک د الله تعالیٰ د قانون په ځائی باندې ملعون وضعی قانون ګډی نو دا اجماعی کافر دے ، ځکه چه دې کفری قانون ته په اسلامی قانون باندې ترجيح ورکړه .

**اوس آخری خبره** : چه حرية السياسی دے : چه ته هر قسم سياست کولې شی ، که کمونيزم سياست کوې ، که قوم پرستئ سياست کوې ، حاصل دا چه د کوم شيز نه اسلام منع کوی ، نو هغه درته جمهوريت جائز کوی نو دا جائز کول او قانونی حيثيت ورکول دا کفر دے ، ځکه چه تجويز ورکول دا تحليل د ما حرم الله دے ، او قانونی حيثيت ورکول دا د الله د قانون سره معارضه کول دی او څوک چه هم د الله د قانون سره معارضه يا مقابله کوی نو دا کافر دے ، نو دا آخری خبره ځان سره ياده ساتئ چه کومه په تحکيم القوانين کې پنځم صورت وو، چه د شريعت پشان قانونی جوړ کړی ، او هغه دا دے : چه څنګه د شريعت محکمې دی نو دوی هم دغه شان محکمې جوړ کړی ، چه څنګه د شريعت مراجع دی کتابونه دی قرآن دے سنت دے او د فقه کتابونه دی ، نو دغه شان دوی خپل مراجع او دفعې جوړے کړی ، او څنګه چه د شريعت د مراجعو خپل ځايونه دی مثلا مدرسې دی نو د هغې په مقابل کې دوی لاء کالجونه جوړ ل کړل ، نو په داسې حيثيت سره د الله د قانون مقابله دا کفر دے ، ځکه ددينه معلوميږی چه دا د الله په قانون باندې رضا ندې ، او څوک چه د الله په قانون

[1] [ رواه مسلم ] .

باندې رضا نهٔ وی نو دا کافر دے ، او دا د عقائدو متفق علیه خبره ده چه په قضاء الٰهی باندې رضا واجبه ده ، او څوک چه په قضاء الٰهی باندې راضی نه وی نو هغه حرام کار دے ، او څوک چه په دین الٰهی باندې راضي نهٔ وی نو دا کافر دے .

نو دا د جمهوریت اصول ذکر شو ، او ددې په مینځ مینځ کې د هغې د تکفیر مسئله هم اوشوه .

*****

## د جمهوریت موضوع [ څلورمه حصه ]

نو د مخکې حصو نه دا معلومه شوه چه جمهوریت دا شرکیه او کفریه قانون شو ، او ددې شرکیت او کفریت د وجه نه دا داسی شو لکه چه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ ءَأَرۡبَابٞ مُّتَفَرِّقُونَ خَيۡرٌ أَمِ ٱللَّهُ ٱلۡوَٰحِدُ ٱلۡقَهَّارُ ۝٣٩ مَا تَعۡبُدُونَ مِن دُونِهِۦٓ إِلَّآ أَسۡمَآءٗ سَمَّيۡتُمُوهَآ أَنتُمۡ وَءَابَآؤُكُم ﴾[1]

نو ددې زمانې د جمهوريانو د مخکنی مشرکینو صرف دومره قدرې فرق دے چه هغوی به د کانړی او د ګټې نه بوت جوړ کړو او بیا به ئی پرې نوم کیخودلو لات ، عزی ، ود ، سواع وغیره او بیا به ئی د هغې عبادت شروع کړو نو دا نومونه به ئی ورلره بڅپله باندې کیخودل ، نو دوی هم دا سړے بڅپله مشر کړو ووټونه ورلره ورکوئ او بڅپله باندې ئی دغه کرسئے ته ورسوی او وربانډې بڅپله دا نوم کیږدو چه دا قانون ساز دے او دا وزیر قانون دے ، دا وزیر دفاع دے او وغیره وغیره نومونه وربانډې کیږدو او د دغه وزیر قانون بیا مونږ قانون هم منو، نو نومونه پرې هم مونږ کیخودل او تا خو ددې دپاره مشر کړے وو چه دا دربانډې د الله

[1] [ سورة يوسف : ٣٩ ـ ٤٠ ] .

قانون جاري کړي نو دۀ درباندې خپل قانون جاري کړو ، نو دا بالکل ددې آيت مصداق اوګرځيدلو، ددې وجه نه مجاهدين علماء کرام فرمائي : چه حاکميت مشرې پديکې خدائي درجې له ځي او اکثريت هم خدائي درجې لره ځي ځکه دوي اکثريت ته حاکميت ورکوي چه عوامو ته حاکميت حاصل دے عوام به خپلې فيصلې پخپله کوي او نه پکې د عالَم بالا کار شته ، نو ددې په نيز دا جمهوريت باقاعده يو مستقل دين شو، لکه فقه يو دين دے او پدې فقه کې د عواقبو عقوباتو ( سزاګانو ) مسئلې شته دے ، او دغه سياسي مسئلې هم پکې شته دے چه حد به داسې جاري کوے ، رجم به داسې ورکوے ، قصاص به داسې کوے ، نو دغه ټولې مسئلې جمهوريت په لاس کې واغستلې نو دا يو مستقل دين شو ، نو مونږ وايو چه دا يو مستقل دين دے او دا خبره مونږ د ځان نه نکوو بلکه د دې جمهوريت په مشرانو کې د بعضو کسانو رائې دا ده : چه دا جمهوريت يو مستقل دين دے او يو مستقل مذهب دے ، او دوي وائي : چه دا جمهوريت د دنيا يو نوے مذهب دے او دا خبره ئې په " ديموکريتيا تيوري اينډ پريکټس " يو کتاب دے چه په ۱۳ صفحه کې ئې دا خبره ليکلې ده ، نو چه دا جمهوريت د دنيا يو نوے مذهب شو نو دوي ځانته يو خدائي جوړ کړو کنه ، نو د عوامو طبقه دوي ځانته يو خدائي جوړ کړو ، او د پارلمان طبقه ئې خپل يو نمائنده جوړ کړو لکه چه خدائي پاک يو رسول راوليږي نو دوي هم دغه شان دا پارلمان جوړ کړو ، نو دا جمهوريت يو دومره نقصاني څيز دے .

**د جمهوريت نقصانات**: نو د جمهوريت ډير زيات نقصانات دي من جمله د هغې نه : ۱/ **اتهام الشريعة بأنها ناقصة** : شريعت پدې باندې متهم کول دي چه دا شريعت ناقص دے ، او دا په دوه طريقو سره متهم کيږي : ۱ ـ پدې طريقې سره چه تۀ نوے آئين جوړوے د خلقو په خوښه او ته ځان ته مسلمان وائې ، نو ولې دې اسلام د تا دپاره قانون ندې راوړے ؟ نو که ته ووائې : چه په اسلام کې دا قانون نشته ، يا په اسلام کې دا قانون شته دے خو د نن صبا زمانې سره مطابق ندے نو ددې مطلب دا شو چه ته ووائې : ( نعوذ بالله ) چه شريعت ناقص دے او د خلقو دپاره پکې قانون نشته دے ، يا شريعت ناقص دے پدې اعتبار سره چه ددې

زماني سره مطابق قانون پکې نشته ، نو دا شريعت ته په ناقص نظر سره کتل دی ، او الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ ٱلۡيَوۡمَ أَكۡمَلۡتُ لَكُمۡ دِينَكُمۡ وَأَتۡمَمۡتُ عَلَيۡكُمۡ نِعۡمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ ٱلۡإِسۡلَٰمَ دِينٗاۚ ﴾[1] نو الله تعالیٰ په قرآن باندې او په شريعت باندې فتوی ېڅپله لګولې چه دا کامل دے ، نو څوک چه ددې د کمال نه انکار کوی نو آیا دا به مسلمان وی ؟ دغه شان شاه انور شاه کشميری رحمة الله عليه په اکفار الملحدين کې فرمائی : چه کله يو سړے د يوے خبرې نه صراحتاً نه معلوميږي چه داکار داسې دے خو د هغه خبرې سره کفر لازميږي نو دا هم کافر دے ، او الله جل جلاله په بل ځائی کې فرمائی : ﴿ وَلَا يَأۡتُونَكَ بِمَثَلٍ إِلَّا جِئۡنَٰكَ بِٱلۡحَقِّ وَأَحۡسَنَ تَفۡسِيرًا ۝٣٣ ﴾[2]، يعنی قرآن ښه تفسير او تفصيل کړيدے ، دغه شان الله جل جلاله بل ځائی کې بيا فرمائی : ﴿ وَكَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ ٱلۡأٓيَٰتِ وَلِتَسۡتَبِينَ سَبِيلُ ٱلۡمُجۡرِمِينَ ۝٥٥ ﴾[3] قرآن کريم آيتونه ښه تفصيلی واضحه دي .

بل ځائی بيا فرمائی : ﴿ إِنَّ هَٰذَا ٱلۡقُرۡءَانَ يَهۡدِي لِلَّتِي هِيَ أَقۡوَمُ ﴾[4]

بل ځائی کې بيا فرمائی : ﴿ أَوَلَمۡ يَكۡفِهِمۡ أَنَّآ أَنزَلۡنَا عَلَيۡكَ ٱلۡكِتَٰبَ يُتۡلَىٰ عَلَيۡهِمۡۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَرَحۡمَةٗ وَذِكۡرَىٰ لِقَوۡمٖ يُؤۡمِنُونَ ۝٥١ ﴾[5]

يعنی قرآن د رحمت او هدايت کتاب دے .

---

1) [ سورة المائدة : ٣ ] .

2) [ سورة الفرقان : ٣٣ ] .

3) [ سورة الأنعام : ٥٥ ] .

4) [ سورة الاسراء : ٩ ] .

5) [ سورة العنكبوت : ٥١ ] .

دغه شان بل ځائ کې فرمائی : ﴿ فَبِأَيِّ حَدِيثٍۭ بَعۡدَهُۥ يُؤۡمِنُونَ ۝٥٠ ﴾[1]
نو دوی پدې کتاب باندې ایمان نهٔ راوړی بلکه دوی د ځان دپاره خپل کتاب جوړ کړے دے چه آئین ( د ملک بنیادی قانون یا دستور اساسی ) ورته وئیلې کیږی نو الله فرمائی :
﴿ فَمَاذَا بَعۡدَ ٱلۡحَقِّ إِلَّا ٱلضَّلَٰلُ ﴾[2]

دغه شان الله فرمائی : ﴿ وَنَزَّلۡنَا عَلَيۡكَ ٱلۡكِتَٰبَ تِبۡيَٰنٗا لِّكُلِّ شَيۡءٖ وَهُدٗى وَرَحۡمَةٗ وَبُشۡرَىٰ لِلۡمُسۡلِمِينَ ۝٨٩ ﴾[3] نو الله فرمائی چه پدیکې هر یوه خبره شته صحیح ده چه بعضې خبرے تشریح پکې نشته نو د هغې تشریح پیغمبر کړیده نشته مطلب دا ندې چه بالکل پکې موجود ندي نه موجود دي خو زمونږ او ستاسو علم دومره ندې چه هره مسئله ترې راوباسو ، لکه بعضې خبرے به ترینه مجتهدینو په خپل قیاس سره راویستلې وی ، نو دا مطلب هم ندے چه مونږ دې ووایو چه هر یو څیز پکې مفصّل پروت دے ، خو خبره داده چه قرآن کامل کتاب دے لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ مَّا فَرَّطۡنَا فِي ٱلۡكِتَٰبِ مِن شَيۡءٖۚ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّهِمۡ يُحۡشَرُونَ ۝٣٨ ﴾[4] ما په خپل کتاب کې څهٔ کمې ندے کړے ، بل ځائ کې الله فرمائی :
﴿ فَمَنِ ٱتَّبَعَ هُدَايَ فَلَا يَضِلُّ وَلَا يَشۡقَىٰ ۝١٢٣ ﴾[5] یعنی څوک چه ددې هدایت تابعداری اوکړی نو هغه به نه گمراه کیږی او نه به بدبخته کیږی ، خو دوی ددې هدایت تابعداری نهٔ کوی خپل کتاب او قانون پسې روان دي ، بل ځائ کې فرمائی : ﴿ إِنَّ هَٰذَا ٱلۡقُرۡءَانَ يَقُصُّ عَلَىٰ

---

1) [ سورة المرسلات : ٥٠ ] .
2) [ سورة يونس : ٣٢ ] .
3) [ سورة النحل : ٨٩ ] .
4) [ سورة الأنعام : ٣٨ ] .
5) [ سورة طه : ١٢٣ ] .

بَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ أَكۡثَرَ ٱلَّذِي هُمۡ فِيهِ يَخۡتَلِفُونَ ﴿٧٦﴾ ﴾[1] نو دغه شان الله جل جلاله په ډيرو آياتونو کې د قرآن او د شريعت محمدی د کمال دعوه کړيدے ، او په حقيقت کې دا خلق هغه دعوه رد کوی چه داسې نده بلکه مونږ ته د قانون ضرورت دے ، بله خبره دا ده : چه بعضی خلق وائی : چه مونږ پدې لاره باندې هم دغه قانون نافذ کوو، نو دا قسمه خلق هم په حقيقت کې په شريعت باندې د نقصان دفعه لګوی ، او هغه پدې طريقه چه تاسو د دې نه تپوس اوکړئ چه دا جمهوريت د چا نظام دے ؟ نو دا د کفر لاره ده او چه دا کافرانو جوړه کړے لاره ده نو مقصد ئې دا شو چه شريعت خو کامل دے او مونږ هم دغه شريعت نافذ کوو خو مونږ ورته د کفر په لاره باندې ځو ، نو حاصل ئې دا شو : چه دوی وائی : شريعت خو کامل دے خو د شريعت لاره د تنفيذ نشته ، او د تنفيذ لاره به ورته زه د ځانه جوړ ووم چه دا شريعت پرې نافذ کړو که هغه زه په جمهوريت باندې ورته ځان رسوم او که په بله طريقه ، حالانکه د اسلام خپله لاره شته دے لکه الله فرمائی : ﴿ وَأَنَّ هَٰذَا صِرَٰطِي مُسۡتَقِيمٗا فَٱتَّبِعُوهُ ﴾[2] بل ځائی کې الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ ٱدۡعُ إِلَىٰ سَبِيلِ رَبِّكَ بِٱلۡحِكۡمَةِ وَٱلۡمَوۡعِظَةِ ٱلۡحَسَنَةِ ﴾[3] نو د قرآن دعوتی لاره هم شته دے ، او د قرآن سره د تنفيذ لاره هم شته دے ، اسلام سره د خپلې دفاع او د اقدام لاره هم شته دے ، لکه الله فرمائی : ﴿ وَقَٰتِلُوهُمۡ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتۡنَةٞ ﴾[4] نو د فتنې د ختمولو دپاره او د شريعت د نافذ کولو دپاره الله جل جلاله د قتال لاره خودلې ده ، نو کوم خلق چه وائی : چه شريعت خو کامل دے او شريعت نافذ کووم

---

[1] [ سورة النمل : ٧٦ ] .

[2] [ سورة الأنعام : ١٥٣ ] .

[3] [ سورة النحل : ١٢٥ ] .

[4] [ سورة البقرة : ١٩٣ ] .

خو د جمهوريت په لاره ورته ځم نو معلوميږی دا چه دده عقيده دا ده چه يره د شريعت سره خپله کامله لاره نشته چه زه ورته په هغې باندې ورسيږم نو دا په شريعت باندې د نقصان دفعه لګوی ، نو د اسلام سره خپله لاره او منبع شته دے او اسلام په خپله لاره او منبع کې چاته ندې محتاج ، او اسلام په خپل مقصود او منزل کې چاته محتاج ندې نو پدې درې واړو طريقو کې اسلام مستقل دے ، او څوک چه پدې دريو طريقو کې اسلام مستقل نۀ ګنړی نو دا په حقيقت کې د الله جل جلاله دين ته په ناقص نظر باندې ګوری ، او دا د الله جل جلاله دين ناقص ګنړی ، او دا دين دومره کامل دے لکه چه رسول الله ﷺ فرمائی : «**انه من يعش منكم فسير اختلافا كثيراً فعليكم بسنتى وسنتى خلفاء الراشيدين المهديين**» [1] دغه شان رسول الله ﷺ فرمائی : «**إِنِّي قَدْ تَرَكْتُ فِيكُمْ شَيْئَيْنِ لَنْ تَضِلُّوا بَعْدَهُمَا : كِتَابَ اللَّهِ وَسُنَّتِي ، وَلَنْ يَتَفَرَّقَا حَتَّى يَرِدَا عَلَيَّ الْحَوْضَ**» [2] ما په تاسو کې دوه څيزونه پريخی دی تاسو په هغې باندې منګولې ولګولې نو تاسو به نه ګمراه کيږئ يو کتاب الله دے او بل سنت د رسول الله ﷺ دی او تاسو مۀ پريږدئ تر هغه پورے چه زما حوض ته راورسيږئ " ، نو څوک چه دا پريږدی نو دا په حقيقت کې شريعت ناقص ګنړی .

**۲/ نقصان د جمهوريت** : **تضييع الولاء والبراء** ، ولاء او براء دا دعقيدې يوه مسئله ده ، چه اسلام ته داسې آزاد نه ئی پريخې اسلام وائی : چه ستا د دوستئ دپاره به هم خپل ځائی وی د هغې نه اخوا به د هر چاسره دوستی نۀ کوے ، خپل منشور به په انسان دوستی باندې نه مبنی کوے بلکه مسلمان دوستی به وی ، که انسان دوستی وے نو الله تعالىٰ به دا نۀ فرمائيل : ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُواْ ٱلۡيَهُودَ وَٱلنَّصَٰرَىٰٓ أَوۡلِيَآءَ ﴾ [3] دغه شان دا به ئی نه فرمائيلی :

---

[1] [ مسند الشاميين للطبراني : ۲ / ٦٧ ] .

[2] [ المستدرک علی الصحيحين : ۱ / ۲۱۷ ] .

[3] [ سورة المائدة : ٥١ ] .

﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُوٓاْ ءَابَآءَكُمْ وَإِخْوَٰنَكُمْ أَوْلِيَآءَ إِنِ ٱسْتَحَبُّواْ ٱلْكُفْرَ عَلَى ٱلْإِيمَـٰنِ ﴾[1] نو د ورور او د پلار نه به ئې درلره بيزارى نۀ راوستله ، د يهودو او نصاراؤ نه به ئې درلره بيزارى نۀ راوستله ، نو که چرته تۀ وائې چه د ولاء او براء معيار په اسلام کې ندے ، نو دا د ولاء او براء معيار په اسلام کې موجود دے لکه الله تعالىٰ فرمائى : ﴿ إِنَّمَا وَلِيُّكُمُ ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱلَّذِينَ يُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَيُؤْتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ وَهُمْ رَٰكِعُونَ ۝٥٥ وَمَن يَتَوَلَّ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ فَإِنَّ حِزْبَ ٱللَّهِ هُمُ ٱلْغَـٰلِبُونَ ۝٥٦ ﴾[2] المائدة: ٥٥ – ٥٦] . د الله ډله دغه ده چه د الله او د هغه د رسول سره دوستى کوى ، او د الله ډله د مؤمنانو سره دوستى کوى ، الله جل جلاله په بل ځائې کې فرمائى : ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مَن يَرْتَدَّ مِنكُمْ عَن دِينِهِۦ فَسَوْفَ يَأْتِى ٱللَّهُ بِقَوْمٍ يُحِبُّهُمْ وَيُحِبُّونَهُۥٓ أَذِلَّةٍ عَلَى ٱلْمُؤْمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى ٱلْكَـٰفِرِينَ يُجَـٰهِدُونَ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ وَلَا يَخَافُونَ لَوْمَةَ لَآئِمٍ ۚ ذَٰلِكَ فَضْلُ ٱللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَآءُ ۚ وَٱللَّهُ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ ۝٥٤ ﴾[3] نو الله فرمائى : چه دوست د مؤمنانو هغه خو الله تعالىٰ دے او د الله دپاره دوستى لکه پيغمبر عليه السلام اوفرمائيل : الحب فى الله والبغض فى الله » محبت د الله دپاره وى دوستى به د الله دپاره وى ، الله چه درته په کوم ځائې کې اجازت درکوى چه محبت اوکړه نو هلته به محبت کوے ، او چه کوم ځائې کې درته اجازت درکړے چه دلته بغض اوکړه نو هلته به بغض کوے ، نو جمهوريت ددې په مقابله کې ولاړ دے چه جمهوريت ولاء او براء نه منى ، حالانکه الله تعالىٰ فرمائى : ﴿ مُّحَمَّدٌ رَّسُولُ ٱللَّهِ ۚ وَٱلَّذِينَ

---

1 [ سورة التوبة : ٢٣ ] .

2 [ سورة المائدة : ٥٥ ـ ٥٦ ] .

3 [ سورة المائدة : ٥٤ ] .

مَعَهُۥٓ أَشِدَّآءُ عَلَى ٱلۡكُفَّارِ رُحَمَآءُ بَيۡنَهُمۡ ﴾[1] مؤمنانو به په خپل مابين کې ترحم وی او په کافرانو باندې به ئ شدت وی سخت به وی ، نو ولاء او براء جوړه شوه ، چه دوستی دې د مؤمنانو سره شوه او دوشمنی به د کافرانو سره کوے ، نو که چرته مور او پلار درته د اسلام په لاره کې رکاوټ راشی او اسلام نه دې اړوی ، نو اسلام وائی : ﴿ قُلۡ إِن كَانَ ءَابَآؤُكُمۡ وَأَبۡنَآؤُكُمۡ وَإِخۡوَٰنُكُمۡ وَأَزۡوَٰجُكُمۡ وَعَشِيرَتُكُمۡ وَأَمۡوَٰلٌ ٱقۡتَرَفۡتُمُوهَا وَتِجَٰرَةٞ تَخۡشَوۡنَ كَسَادَهَا وَمَسَٰكِنُ تَرۡضَوۡنَهَآ أَحَبَّ إِلَيۡكُم مِّنَ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَجِهَادٖ فِي سَبِيلِهِۦ فَتَرَبَّصُواْ حَتَّىٰ يَأۡتِيَ ٱللَّهُ بِأَمۡرِهِۦۗ وَٱللَّهُ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلۡفَٰسِقِينَ ﴾[2] نو اسلام د ولاء او براء دومره پورے لحاظ کوی ، نو اوس د مسلمانانو نه مطالبه دا ده : چه هغوئ دې ځان په حفاظت کې وساتی د یهودو نصاراؤ نه د کفر نه او د فساقو او فجارو نه ، او ددې په مقابله کې جمهوریت وائی : چه دا انسان دوستی ده بس د انسان سره دوستی کوه بس چه نفس انسان وی ددې وجه نه د دوی تنظیمونه پدې نوم وی تحفظ حقوق انسانی ، نو دوی د ښځو په بې حیائی سره ګرځیدل ، او کافر باندې په شرائطو زندګی نۀ تیرول نو ددې تحفظ ورته ورکوی ، او بیا د خپلو مفاداتو دپاره د کافر سره هم په صف کې ودریږه ، او کافر او شیعه سره هم اتحاد کوه چه پارلمان ته ورسیږی ، دا خبره مخکې شوې وه چه په جنګ کې د مشرک نه امداد اغستل شته خو په شرائطو سره ، « **ولا بأس بأن يستعان من المشركين اذا كان الحكم هو الاسلام** » د مشرکانو نه مدد اخستلې شې خو چه فیصله په اسلام کیږی ، او چه ستا فیصله بیا په اسلام نه کیږی نو بیا به د مشرک نه امداد نۀ اخلې ، مثلا : .... ، نو جمهوریت د دوستئ او د دشمنئ مدار ختموی ځکه دوی وائی : چه دوستی به د هغه چا سره کوے چه څوک جمهوریت منی او دشمنی به د هغه چا سره کوے چه څوک جمهوریت نۀ منی ، نو چه په کومو ممالکو کې

[1] [ سورة الفتح : ٢٩ ] .

[2] [ سورة التوبة : ٢٤ ] .

جمهوريت نۀ منل کیږی نو د هغوئ سره جنګ کیږی او چه کوم ممالک جمهوريت منی نو د هغوئ سره دوستی کیږی ، نو چه په کومو ملکونو کې مارشل لاء اولګی نو دوی ډارک په هغه ملکونو باندې اقتصادی پابندیانې اولګوی ځکه چه دا د جمهوریت نه مخالف شو نو ملکونه ورسره تعلقات کټ کړی ، نو دا خبره هم معلومه شوه چه جمهوريت يو ځان له دين دے دا اوګوره د ولاء او براء دپاره ئ هم يو مدار جوړ کړے دے نو چه چرته مارشل لاء قائمه شی نو جمهوريت ختم شی ، نو دوی ورسره په هغه ټائم تعلقات ختم کړی تر هغه پورے چه بيا دوباره جمهوريت نۀ وی قائم شوے ، او چه چرته په يو ملک کې درې کرته مارشل لاء قائمه شوه نو هغه ملک به د اقوام متحدې د ليسټ نه اوځی ، نو پدوی کې اسلامی ولاء او براء نشته بلکه د جمهوريت دوستی او دشمنی ده ، خو په بعضی ملکونو کې سره د دينه چه هلته جمهوريت نه وی او دوی ورسره دوستی کوی ، لکه په عربو کې جمهوريت نشته بلکه شاهنشايت دے او د امريکې ورسره ښه مضبوط تعلقات دی ، اصل کې د دوی مقصد کفر وی ، او پدې ممالکو کې په جمهوريت باندې دا کفر مضبوطيږی او په هغه ملکونو کې په شاهنشايت باندې کفر مضبوطيږی ځکه هلته په کفر کې د امريکې سره صرف يو شاهی خاندان دے چه دا ورسره کفر منی ، او که چرته عوامو ته خبره راغله نو عوامو د ټولو ذهن دا دے چه يره په ملک کې دې اسلام نافذ شی نو قيصه ورته خرابيږی نو ددې وجه نه هلته جمهوريت نۀ نافذ کوی ، نو د ولاء او براء مدار په اسلام باندے دے ، او جمهوريت تاته ولاء او براء په خپل طريقه باندې قائموی چه ولاء او براء به پدې طريقه باندې کوے .

**۳/ د جمهوريت د نقصا ناتو نه تجويز دے د حملې د کافرانو**، يعنی جواز ورکول دی د حملې د کافرانو ته ، نو چه کله د خلقو په ذهن کې دا خبره کينی چه جمهوريت جوړول د زندګئ يو مقصد دے نو کله چه امريکې په افغانستان باندې حمله کوله نو دا خبره ئ کوله چه زه په افغانستان کې جمهوريت قائموم ، او د عوامو په ذهن کې د جمهوريت يوه مسئله د شريعت نه جوړه شوے وه نو دغه علماء سوء خو د عوامو په ذهن کې د جواز يو سبب جوړ کړو ، چه يره که چرته يو ملک په بل ملک باندې حمله کوی ددې دپاره چه په هغې کې جمهوريت يقينی

جوړ شی نو هغه ملک ته جائز دی چه حمله پرې اوکړی ، نو دا د دغه علماء سوء د وجې نه چه هغوي په ملک کې د جمهوريت د قائمولو دپاره دومره دلائل بيان کړل چه د خلقو په ذهنونو کې ئې دا خبره واچوله چه جمهوريت جوړول صحيح دی .

**٤/ نقصان د جمهوريت** : الخضوع لدساتير العلمانية ، سيکولر دستورونو ته خکته کيدل دی او د هغوئ د آئين د لاندې زندګی تيرول دی ، نو دا خبره په رعيت کې هم شته او په حکومت کې هم شته ، په رعيت کې داسې ده : که چرته په رعيت کې يو سړے راپاځی او هغه ووائي چه زه د فلانی ملک آئين نۀ منم نو ډارک په هغه باندې د باغيت پرچه کټ کيږی او فورا به ګرفتاريږی ، او په حکومت طبقه کې هم شته او هغه داسې : چه دوی حلف اوچتوی نو وائی : « احلف او اقسم بهذا الکتاب انی سأقضی بهذا الکتاب » نو دا د علمانی سيکولر دستورونو ته خکته کيدل دی او دا په جمهوريت کې راځي ، او بل دا چه پدې سيکولر دستورونو باندې هيڅ قسمه رد نۀ کول دی .

**٥/ نقصان د جمهوريت** : **ايهام المسلمين** ، په مسلمانانو کې يو وهم پيدا کول دی ، لکه چه پدې اوټونو کې خلق پاځيږی که چرته زۀ پاس شوم نو زه به پارلمان ته زم او اسلامی قانون به پاس کوم ، نو دا ايهام المسلمين دی مسلمانان پدې سوچ کې اچوی چه کيديشی پدی لاره کې اسلام راشی ، او دا خبره ئې هم د ګمان کړی وی ، لکه الله تعالیٰ په قرآن کريم فرمائی : ﴿إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا ٱلظَّنَّ وَإِنۡ هُمۡ إِلَّا يَخۡرُصُونَ ۝١١٦﴾[1] نو دا اسلامی قانون نشی نافذ کولې ځکه چه دا کله اسمبلئ ته لاړ شی نو هلته خو بيا هغه ازادی راځی کوم چه مخکې د هغې تذکره اوشوه ، نو دا هسې د ګمانونو خبرے دی ، او حديث کې راځي : «**إِيَّاكُمْ وَالظَّنَّ فَإِنَّ الظَّنَّ أَكْذَبُ الْحَدِيثِ**»[2] ځان اوساتئ د ګمان نه ځکه چه ګمان په خبرو کې دروغجن خبره ده " .

---

[1] [ سورة الأنعام : ١١٦ ] .

[2] [ صحيح البخاري ، رقم : ٤٧٤٧ ] .

**دا خبره هم ياده کړئ**: چه جمهوريت ته د شريعت رنګ ورکول : وائی : يره جی دا خو شرعی طريقه ده او بيا صحابه کرامو ته هم ورسوی او پديکې دا علمی طبقه ډيره خرابه طبقه ده ځکه چه هغه نورو ته ئی چل نه ورځی او دوی ئې بيا دلائلو سره ثابتوی ، نو دا جمهوريت نظام خو سيکولر نظام دے او دا سيکولر خلقو جوړ کړيدے او بيا ئی تاته راليږلې دے آيا سيکولر خلقو تاته دا فرصت درکړو چه دوی پکې اسلام راولی ؟ نو سيکولر خلق خو دا نهٔ غواړی چه اسلام دې راشی ، او پدی لاره باندې چه کوم اسلام راشی نو هغه به هم صحيح اسلام ندې ، ځکه اسلام به نافذولې شی ددې حيثيت نه چه دا د الله دين دے او په جمهوريت کې اسلام ددې حيثيت نه منلی شی چه د پارلمان د اراکينو پدې باندې اتفاق راغلی ، نو په اسلام کې مقصد اعلاء د کلمة الله ده «**لتكون كلمة الله هى العلياء**» ددې دپاره چه د الله جل جلاله کلمه پورته شی ، او د کلمة الله هى العلياء مطلب دا دے : چه **هى القاضية على جميع القوانين او على جميع الكلم** ، چه د الله کلمه په ټولو قوانينو باندې قاضی اوګرځيږی ، او چه د جمهوريت په لاره باندې تا اسلام راوستلو نو پدې صورت کې بيا جمهوريت اوچت او اسلام لاندې کول دی ، نو جمهوريت اساسی قانون وو خو چونکه په جمهوريت کې منظوره شوه چه اسلام دې نافذ شی نو اسلام ته عاليت ميلاؤ نشو او اسلام د جمهوريت ماتحت شو .

**٦ / نقصان**: پديکې خدمت دے د يهودو او نصاراؤ او هغه داسې چه دا د هغوئ ملت دے ځکه په يهوديت کې نن تورات نشته محرف دے دارنګه انجيل نشته د هغوئ دا دين ندې ، ځکه که څوک نن د صحيح يهوديت او نصرانيت ته مرتد شی نو بيا پرې هغوئ پابندی نه لګوی ، او که څوک د جمهوريت نه مرتد شو او جمهوريت نهٔ منی نو بيا پرې پابندی لګوی ، او دا به مونږ د الله تعالیٰ ددې کلام نه معلوموو : ﴿ وَلَن تَرْضَىٰ عَنكَ ٱلْيَهُودُ وَلَا ٱلنَّصَٰرَىٰ حَتَّىٰ تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ ﴾[1] اوس راشه چه په يو ملک کې دوه کسان راپاخيږی او دواړه د اسلام نعره

[1] [ سورة البقرة : ١٢٠ ] .

لګوی چه پدې ملک کې دې اسلامی نظام نافذ شی نو اوس دغه يو سړے په غرۀ کې زندګی نشی تيرولې ، او دا بل په دار الخلافه کې زندګی تيروی ، او دغه يو سړے په خپل ملک کې دا نعره نشی لګولې او دا بل سړے ددې نعرے دپاره نورو ملکونو ته هم ځی او هلته بيا کانفرنسونه کوی ، دارنګه دا يو سړے دلته د لوږې نه مړ کيږی او دا بل سړے دې د لندن په هوټلو کې خوارکونه کوي ، او يهود او نصارىٰ او اقوامه متحده او دارنګه د نورو ملکونه دۀ ته څه هم نۀ وائی نو دده نه دا يهود او نصارى په څۀ باندې خوشحاله شو ؟ دا ځکه چه دوي خپل ملت بدل کړے دے چه هغه ملت جمهوری دے دا ئی اختيار کړے دے او دا په هر ځائی کې د اسلام نعرى لګوی نو ده ته اجازت دے ، دارنګه پديکې هم لږ سوچ پکار دے چه دوی د ووټونو دپاره څومره پيسې خرچ کوی ، دارنګه د تعليم ابتدائی مرحلو دپاره څومره د بهر ملکونو نه دوی ته امداد ميلاويږی ، نو دا اصل کې د خپل نظام دپاره کار کوی ځکه ترينه خوشحاله دی ، او ددې په مقابله کې الله تعالىٰ فرمائی : ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ يُنفِقُونَ أَمْوَٰلَهُمْ لِيَصُدُّواْ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾[1] نو دلته الله تعالىٰ يوه قاعده کليه کيخودله چه کافر کله هم مال خرچ کوی نو ته پدې پوهه شه چه دا خلق پرې د الله د لارے نه واړوی ، نو چه په جمهوريت باندې مال خرچ کوی نو ته پوهه شه چه دا د الله د لارې نه بندول کوی ، نو بيا الله فرمائی : ﴿ فَسَيُنفِقُونَهَا ثُمَّ تَكُونُ عَلَيۡهِمۡ حَسۡرَةً ﴾[2] نو دوی چه دا مالونه خرچ کوی نو دا د خپل خدمت دپاره مالونه خرچ کوی ، ځکه دوی د يهودو او نصاراؤ دپاره خدمت کوی .

❋❋❋❋❋

---

[1] [ سورة الأنفال : ٣٦ ] .

[2] [ سورة الأنفال : ٣٦ ] .

## د جمهوريت موضوع [ پنځمه حصه ]

مخکې حصه ددې موضوع کې مفاسد د جمهوريت شروع وو چه بعضې پکې ذکر شو :

**۷ / نقصان د جمهوريت** : مخالفت د پيغمبر عليه السلام په مواجه د اعداؤ کې ، د پيغمبر عليه السلام چه د دشمنان په باره کې کوم موقف وو هغه موقف د انتخاباتو او د جمهوريت په لاره کې پاتې کيږی ، لکه مونږه پـه مخکنۍ موضوع کې ددې تاريخ ذکر کړو چه دا د قبل المسيح نه 300 کاله نه مخکې راروان دے تراوسه پورے نو دا د چا په طريقو باندې راغے نو پديکې د کفر طريقه اختيارول راځي ځکه چه دا جمهوريت د کفر په لاره راغلې دے ، دويمه دا چه نبي کريم ﷺ د کفر سره ځنګه مخالفت کړے دے نو هغه مخالفت ئې ورسره په طريقه کې هم کړے دے ، بل دا چه نبي کريم ﷺ د کفر سره هيڅ قسمه نرمي نده کړے ، او پدې جمهوريت لاره کې د کفر سره نرمی راځي ، بيا تهٔ ګوره چه نبي کريم ﷺ د کفر سره دومره نرمي هم نده کړے لکه کله چه نبي کريم ﷺ مديني منورے ته لاړو نو بيت المقدس ته ئې مخ کړو په مانځه کې نو دا بيت المقدس حقه قبله وه ، خو چونکه د يهودو او نصاراؤ قبله وه نو نبي کريم ﷺ په هغه قبله هم نهٔ وو خوشحاله ، او په زړه د رسول الله ﷺ کې دا خبره وه چه زهٔ کعبې شريفې ته تاؤ شم ، لکه قرآن کريم کې الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ قَدْ نَرَىٰ تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي ٱلسَّمَآءِ ۖ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضَىٰهَا ﴾[1] نو کله چه پيغمبر کعبې شريفې ته تاؤ شو نو بيا ئې زړهٔ مطمئن شو ، نو دا اوګوره د نبي کريم ﷺ د هغوي قبله هم نه وه خوښه د هغوي طريقه ئې هم نهٔ وه خوښه ، دغه شان د نبي کريم ﷺ د هغوئ سره مخالفت اوګوره چه کله نبي کريم ﷺ مديني منورے ته لاړو نو يهوديانو به روژه نيوله د لسم محرم ( يوم العاشوری ) نو د يهودو نه ئې پوښتنه اوکړه چه تاسو دا روژه د څه نيسئ ؟ نو هغوئ ورته اووئيل : چه پدې ورځ مونږ روژه ځکه نيسو چه پدې ورځ باندې الله تعالیٰ موسیٰ عليه السلام د غرق کيدلو نه بچ کړے وو او په درياب باندې ئې صحيح او سالم پورے

---

[1] [ سورة البقرة : ١٤٤ ] .

کړے وو او فرعون ئې غرق کړے وو، نو پيغمبر عليه السلام ورته اووئيل : چه موسى عليه السلام خو زما ستاسو نه ښۀ ورور وو نو نبی کريم ﷺ هم دا روژه نيول شروع کړل، خو د وفات په وخت کې بيا فرمائې : «**لئن عشت الی قابل لأصومن التاسع**» [1] که چرته الله تعالیٰ زه آئنده کال ته پاتې کړم نو زه به ورسره نهم ورځ روژه هم نيسم ځکه خالص د لسمې ورځ روژه نيول دا د يهودو کار دے، نو دا ښۀ طريقه وه خو ويل ئې چه زه به ورسره نهمه هم نيسم ددې دپاره چه د دوئ سره مشابهت ختم شی، دغه شان د نبی کريم ﷺ د يهودو سره دومره مخالفت وو چه بنو نضير ئې خو ټول اوباسل، بيا بنی قريظه هم ختم کړل، د خيبر واله ئې هم ختم کړل، او بيا پيغمبر عليه السلام وفات شو او د وفات نه مخکې ئې امر اوکړو چه «**اخرجوا اليهود والنصارى من جزيرة العرب**»[2] او بيا حضرت عمر رضي الله عنه پدې باندې عمل اوکړو چه د ټول جزيرة العرب نه ئې اوباسل، نو دا مخالفت په جمهوريت کې ختميږي، او د پيغمبر عليه السلام چه کوم موقف وو نو هغه موقف په جمهوريت کې ختميږی، او حضرت عمر ﷺ بيا امر اوکړو او منع ئې اوکړه چه تاسو به د اهل کتابو سره مشابهت نه راولئ په هيڅ څيز کې به ورسره مشابهت نۀ کوئ، حتی چه حضرت عمر ﷺ اهل کتابو ته امر اوکړو چه تاسو به ټوپۍ نه په سر کوئ، او دغه شان حضرت عمر رضي الله عنه اهل کتابو ته امر اوکړو چه تاسو به د اسلام د شعائرو نه يوه نخه هم نه استعمالوئ، لکه پټکې شو، وغيره چه دا به په سر باندې نۀ ايږدی، حتی چه دا ئې ورته اووئيل : چه تاسو به په غير د ضرورت نه په سورلئ اس باندې هم نۀ ګرځئ، نو تر دې پورے صحابه کرامو ورسره مخالفت اوکړو، او اوس يو سړے راشي او وائي : چه دا خو جمهوريت دے او بيا د هغوئ طريقې هم کوی او د هغوئ کارونه هم کوي او د هغوئ سره مينه هم کوي او دا بد ګڼړی چه ته دې د يو کافر سره په سخته لهجه کې خبرے اوکړے، يا د کافر سره په سخت انداز کې ميلاؤ شی نو دا وائی چه يره دا خو مناسبه

---

[1] [ مسند احمد، رقم الحديث : ۲۰۰۲ ].

[2] [ متفق عليه ].

نۀ وه ، حالانکه پدې باندې علامه ابن القيم رحمه الله يو کتاب ليکلې دے چه د هغې نوم " اليهود والنصارى " دے ، او علامه ابن تيميه رحمه الله پرې هم يو کتاب ليکلې دے چه د هغې نوم " اقتضاء صراط المستقيم " دے ، او پدې دواړو کې دوى سخت رد کړے دے پدې چه څوک د يهودو او نصاراؤ سره دوستى کوى او يا هغوى سره څوک نرمى کوى نو پدې کې پرې سخت ردونه کړى دى ، حتى چه نبى کريم ﷺ په لاره کې په تيريدو کې هم د يهودو سره سختى کړى ده ، حديث کې راځي رسول الله ﷺ فرمائى : « **لا تبدؤ اليهود ولا النصارى بالسلام** »[1] په يهودو او نصاراؤ باندې په سلام کې ابتداء مۀ کوئ ، او بل ځائى کې فرمائى : « **وإذا لقيتم فى الطريق فاضطروهم إلى اضيقه** »[2] او چه کله درسره په لاره کې مخامخ شي نو تنګ طرف ته ئې محتاجه کړئ " ، نو که اوس دې جمهوريت والاؤ ته دا خبره اوکړے نو دوى به وائى : چه يره دا خو بد اخلاق دى ، نعوذ بالله ، د پيغمبر عليه السلام اخلاق څۀ بد وو ؟

حالانکه د هغه په باره کې الله فرمائى : ﴿ وَإِنَّكَ لَعَلَىٰ خُلُقٍ عَظِيمٍ ۝٤ ﴾[3] او دا خبره مخکې مونږه ثابته کړه چه دوې د خير او شر د خو اخلاقو او د بدو اخلاقو مدار د جمهوريت په بقاء باندې ايخودې دے ، لکه مخکې د نکاؤلى په نظريه کې دا خبره مونږ کړے وه چه هغه وائى : چه يو حکمران لره ښۀ اخلاق ساتل دا هيڅ ضرورى خبره نده چه په کومو څيزونو باندې د دۀ حکمرانې برقرار پاتې کيږى اګر که هغه بد کار ولى نۀ وى نو هغه د ټولو نه ښۀ کار دے ، او چه په کومو څيزونو باندې د دۀ حکمرانئ ته نقصان رسيږى اګر که هغه ښۀ ښکار وى نو دغه د ټولو نه بد کار دے ، نو دوې داسې کار کوى ، نو پدې جمهوريت کې د نبى کريم ﷺ سره مخالفت راځي ، لکه الله تعالىٰ نبى کريم ﷺ ته فرمائى چه تۀ دې کافرانو ته ووايه : ﴿ قُلْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْكَٰفِرُونَ ۝١ لَآ أَعْبُدُ مَا تَعْبُدُونَ ۝٢ وَلَآ أَنتُمْ عَٰبِدُونَ مَآ أَعْبُدُ ۝٣ الى آخر

---

[1] [ متفق عليه ] .

[2] [ صحيح مسلم ] .

[3] [ سورة القلم : ٤ ] .

سورة .... ﴾[1] ته ورته ووايه : اے کافرانو ! زه عبادت نه کوم په هغه طريقه چه تاسو ورله عبادت کوئ ، او د سورة په آخره کې ورته وائې : «**لكم دينكم ولي دين**» نو دا اوس چه کوم خلق د جمهوريت د جنډې د لاندې راجمع کيږی نو دا معلوميږی چه دا ځانته يو مستقل دين دے ، لکه نن صبا چه کوم کانفرسونه دی د جمهوريت نو هغه ټول په لندن او نيويارک کې وی دا ځکه چه دا د هغه ځائې نه راغلې نظام او راغلی دين دے ، نو زمونږ منهج دا دے چه مونږ څۀ هم قبلوو نو په منهج إلهی باندې قبلوو ، او چه څۀ هم ترک کوو نو هغه به د منهج إلٰهی د وجه نه ترک کوو ، نو د دوئ افکار ، د دوی طريقې به مونږ ترک کوو ځکه چه دا د منهج إلهی نه خلافه خبره ده ، او نن خلق پدغه جمهوريت پسې روان دی او د پيغمبر عليه السلام د هغه حديث د لاندې ځان راولې چه پيغمبر عليه السلام فرمائې : «**لتتبعن سنن من كان قبلكم شبرا بشبرٍ ، وذراعاً بذراعٍ حتى لو سلكو جحر ضبٍ لسلكتموه قالوا : اليهود والنصارى ؟ قال : فمن**»[2] " چه تاسو به تابعداري کوئ د هغه خلقو چه کوم ستاسو نه مخکې تير شوی دی او داسې تابعداری به ئې کوئ چه لويشت په لويشت او ګز په ګز تابعداری به ئې کوئ حتی که هغوئ د سمسرے ( خادمئ ) غار ته دننه شوی وی نو تاسو به هم ورداخليږئ ، نو صحابه کرامو اوفرمائيل : آيا د يهودو او نصاراؤ په طريقو ؟ نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل : نو نور څوک ، يعنی هم دغه مراد دی " ، نن خلق په دغه طاغوتی اداره کې په دغه طاغوتی دين باندې روان دی او پدغه طاغوتی دين باندې متدين کيږی او هيڅ قسمه خبره نۀ محسوسوي چه يره دا خو د الله د دين مخالفت کيږی ، او دا خو د هغه ارسطو او دغه شان نورو خلقو سره مشابهت راځي ، او رسول الله ﷺ فرمائې : «**من تشبه بقوم فهو منهم**» " چا چه د يوقوم سره تشبه حاصله کړه نو دا د هغوئ نه ګرځي " ، نو اسلام د نهج مخالفت هم غواړی ، اسلام د منزل مقصود مخالفت هم غواړی ، اسلام د سرچشمې مخالفت هم غواړی ، هله به تۀ صحيح

---

[1] [ سورة الكافرون : ١ ـ ٣ ] .

[2] [ متفق عليه ] .

مسلمان جوړېږے چه ستا سر چشمه د جاهلیت د سرچشمې نه جدا وی ، ستا لاره هم د جاهلیت د لارې نه جدا وی ، او ستا منزل مقصود هم د جاهلیت د منزل مقصود نه جدا وی ، نن خلق د جمهوریت سره په یوه لاره باندې روان دی او پدې باندې خوشحالی کوی او پدې باندې فخر کوی لاسونه ئې پکې د یو بل سره اوچت کړی دی .

**۸/ نقصان په جمهوریت کې** : الوسیلة المحرمه ؛ یعنی حرامې وسیلې اختیارول ، دا خبره خو واضحه شوه چه جمهوریت یوه حرامه وسیله هم ده ، خو دا یهودو او نصاراؤ یوه قاعده جوړه کړے ، او دا خبره هم مونږ مخکې واضحه کړے وه چه دا قاعده نکاؤلی واضحه کړے ده : «الغایة تبرر الوسیلة » او په اردو کې ترجمه داسې وه : " مقصد ذرایع کو نیک بناتا هے " ، چه مقصد دې صحیح وی نو که تهٔ هره لاره اختیار کړے نو بس صحیح ده ، خو اسلام دا خبره نهٔ منی ، نو دا د دوئ یوه قاعده ده ، او د یهودو پخوانۍ قاعده دا وه چه اسلام راوړل خو د دوئ په نیز باندې حرام وو نارواه وو خو دوی به اسلام ته هم ددې دپاره راتلل چه « الغایة تبرر الوسیلة » مقصد دپاره که هره طریقه اختیاروے نو دا صحیح دے ، نو دوی به خپلو کشرانو ته وئیل چه تاسو لاړ شئ او هلته ایمان راوړے نو په سحر کې ایمان راوړئ او په ماښام کې مرتد شئ ددې دپاره چه « لعلهم یرجعون » دا مسلمانان درسره پدې لاره راروان شی ، نو دوئ به دا قاعده عملی کوله ، او دا طریقه اوس نام نهاد مسلمانانو هم اختیار کړه چه راځئ د جمهوریت په لاره اسلام راولو ، نو که مقصد نیک دے نو خیر دې که لاره ئې غلطه ده نو دا غلطه لاره ورسره هم صحیح کیږی ، ددې وجه نه علامه ابن القیم په " اعلام الموقعین " کې پدې خبره باندې ۹۹ دلائل راوړی دی چه په حلال مقصد حاصلولو سره حرامه وسیله نه حلالیږې چه ته ووائې : چه مقصد صحیح دے نو وسیله به دې هم صحیح شی ، بلکه داسې ده که مقصد خراب وی نو وسیله هم خرابه ده ، نو کله چه وسیله خرابه وی نو د هغې مقصد خو به خامخا خراب وی او نتیجه به هم خرابه وی ، لکه الله تعالیٰ شراب حرام کړیدی ځکه چه دا د سړی عقل خرابوي نو که تهٔ ووائې : چه یو څاڅکې څکم نو په یو څاڅکي خو نشه نهٔ راځي ، بلکه بدن ته پرې تقویت میلاویږی ، نو مقصد دې نیک شو نو آیا دا وسیله به

نیکه وی ، نهٔ دا نهٔ صحیح کیږی او نهٔ ستا دپاره جائز دی ، دغه شان چه کوم شی نتیجه غلطه ورکوله نو هغه څیز هم الله حرامه کړیده او طریقه ئی ورلره هم حرامه کړیده ، لکه الله تعالیٰ فرمائي : ﴿ وَلَا تَسُبُّوا۟ ٱلَّذِينَ يَدۡعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ فَيَسُبُّوا۟ ٱللَّهَ عَدۡوَۢا بِغَيۡرِ عِلۡمٍ ﴾[1] نو دلته نتیجه حرامه ده نو وسیله ئی ورلره هم حرامه کړه ، او ددي حرمت قطعی شو نو تاته د کنځلو اجازت چرته هم نشته دے ، خو بیا دوی وائی : چه یره دا خو وسیله ده او وسیله کول خو جائز دی ؟ نو دا خبره هم غلطه ده وسیله په هر ځائی کي جائز نده ، لکه الله تعالیٰ فرمائی: ﴿ لَّا يَتَّخِذِ ٱلۡمُؤۡمِنُونَ ٱلۡكَٰفِرِينَ أَوۡلِيَآءَ مِن دُونِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَۖ وَمَن يَفۡعَلۡ ذَٰلِكَ فَلَيۡسَ مِنَ ٱللَّهِ فِي شَيۡءٍ إِلَّآ أَن تَتَّقُوا۟ مِنۡهُمۡ تُقَىٰةً ﴾[2] اوس پدي آیت کي الله تعالیٰ تقیه جائز کړیده ، د تقیي مطلب دا دے : چه په تا باندي کافر اکراه اوکړی او تهٔ پوهیږے چه دا کافر ما قتلوی نو ته ورسره خوږه دوستی وغیره جوړ کړے دپاره د بچاؤ د خپل ځان نو دغه ستا دپاره جائز دی ، خو دا هم د ضرورت د وجي نه جائز دی ، اوس یو سړے دا خبره یوه وسیله جوړه کړی او دلیل ئی ونیسی چه بس د کافرانو سره دوستی کوه او د کافرانو سره بغض مهٔ کوه ځکه چه الله تعالیٰ تقیه مشروع کړیده ، اوس دا یوه وسیله ده او دا وسیله په یو ځائی کي جائز شوه ، خو هم دغه وسیله ده چه بیا پرې په بل ځائی سړے کافر کیږی ، ځکه چه په کوم ځائی دا جائز وه نو هغه د اضطرار د وجي نه جائز وه ، او چه کله مجبوری نه وی او بیا ئی هم څوک کوی نو بیا پرې سړے کفر ته رسیږی .

**۹ / نقصان د جمهوریت** : تفریق وحدة المسلمین ، چه په جمهوریت کي د مسلمانانو وحدت او طریقه ماتیږی او دا حرام کار دے ، ځکه چه د مسلمانانو وحدت ماتول دا حرام کار دے ځکه چه پیغمبر علیه السلام په ډیرو ځایونو کي منع کړے ده د مسلمانانو د وحدت ماتولو

[1] [ سورة الأنعام : ۱۰۸ ] .

[2] [ سورة آل عمران : ۲۸ ] .

نه ، حديث كې راځي پيغمبر عليه السلام فرمائی : «**مَنْ أَتَاكُمْ وَأَمْرُكُمْ جَمِيعٌ عَلَى رَجُلٍ وَاحِدٍ يُرِيدُ أَنْ يَشُقَّ عَصَاكُمْ أَوْ يُفَرِّقَ جَمَاعَتَكُمْ فَاقْتُلُوهُ**»[1] " يو سړے تاسو ته راغلې او ستاسو اجتماعيت په يو سړى باندې راجمع شوے دے او هغه دا اراده اوكړه چه ستاسو اجتماعيت مات كړى نو هغه قتل كړئ كه هر څوک وى او كه هر څنګه سړے وى "، يا بل روايت كې هم داسې راځي : « **چه إذا بويع لخليفتين فاقتلوا الآخر منهما** » نو دا اوګوره چه پيغمبر عليه السلام د سړي په قتل باندې امر اوكړو اګر كه هغه خليفه ولې نۀ وى ځكه چه دا د مسلمانانو په مينځ كې تفرقه راولي ، او د مسلمانانو په مينځ كې تعصب راولى ، او دې سره بيا دمسلمانانو وينې توييږي ، نو دا امر چه پيغمبر عليه السلام اوكړو نو دا حرص وو د پيغمبر عليه السلام په وحدت د مسلمانانو باندې چه د مسلمانانو وحدت دې په ځائى باندې پاتى شى ، او جمهوريت وائي : چه ځانله ډله جوړوه ، او ځانله يوه پالتى جوړوه ، نو دا تفرقه راولى ، او الله تعالىٰ فرمائى : ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ فَرَّقُواْ دِينَهُمْ وَكَانُواْ شِيَعًا لَّسْتَ مِنْهُمْ فِي شَيْءٍۚ إِنَّمَآ أَمْرُهُمْ إِلَى ٱللَّهِ ثُمَّ يُنَبِّئُهُم بِمَا كَانُواْ يَفْعَلُونَ ﴿١٥٩﴾ ﴾[2] نو مقصد د آيت دا شو چه دا خلق ستا په ډله كې ندى او دوى ستا په منهج پسې ندى روان لكه څنګه چه پيغمبر عليه السلام په هغه روايت كې فرمائى : « **لَيْسَ مِنَّا مَنْ ضَرَبَ الْخُدُودَ وَشَقَّ الْجُيُوبَ وَدَعَا بِدَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ** »[3] نو دلته مقصد دا دے چه دا قسم انسان زما په منهج باندې ندے روان ، نو پدې آيت كې هم ورته داسې اووئيل : « **لست منهم في شيء** » يعنى ته د دوى نه په هيڅ څيز كې نۀ ئې "، او پيغمبر عليه السلام ته الله تعالى داسې ونۀ ويل : « **چه ليسوا منكم في شيء** » بلكه دا ئې ورته اووئيل : چه تۀ د دوئ نه نۀ ئې ، دا ځكه چه دا دين او دا نبوت اسلامى مربوط دے په پيغمبر عليه

---

1) [ رواه مسلم ، رقم : ٣٤٤٣ ] .

2) [ سورة الأنعام : ١٥٩ ] .

3) [ رواه البخاري ، رقم : ١٢١٤ ] .

السلام پورے ، لکه الله فرمائی : ﴿ قُلْ هَٰذِهِۦ سَبِيلِىٓ أَدْعُوٓا۟ إِلَى ٱللَّهِ ۚ عَلَىٰ بَصِيرَةٍ أَنَا۠ وَمَنِ ٱتَّبَعَنِى ﴾[1] نو کله چه دین د پیغمبر علیه السلام متمیز دے په ټولو احکامو کې نو الله جل جلاله دۀ ته اووئیل : چه تۀ د دوئ نه نۀ ئی ، او معنی ئی داده : که ته سره د دین خپل نه ، او د شریعت خپل نه ته به د دوئ د طریقې د دوئ د دعوت نه جدا والې اختیاروے ، نو دا تفریقه د وحدت د مسلمانانو الله تعالیٰ ته ډیره مبغوضه خبره ده ، او ددې وجه نه علماء کرامو په یو مسجد کې د دوو جمعونه په یو وقت کې منع کړے ده ځکه چه پدې سره د مسلمانانو وحدت خرابیږی، او الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَمَن يُشَاقِقِ ٱلرَّسُولَ مِنۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ ٱلْهُدَىٰ وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ ٱلْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِۦ مَا تَوَلَّىٰ وَنُصْلِهِۦ جَهَنَّمَ ۖ وَسَآءَتْ مَصِيرًا ﴿١١٥﴾ ﴾[2] نو د پیغمبر طریقه خو دغه ده چه هغه اجتماعیت د امت دے ، او تۀ د پیغمبر د طریقې نه اختلاف اوکړے ، نو الله وائی : چه څوک د پیغمبر او د مؤمنانو د طریقې نه اختلاف اوکړی او دا تفرقه پیدا کول غواړی او د مسلمانانو لاره پریږدی او د جمهوریت په لاره باندې روان شوے اسلام چه کومه لاره راوړے وه هغه لاره تا پریخوده نو الله وائی : چه زۀ به ئی اوګرځوم د هغه چا سره چه د کوم چا سره دا ګرځیږی او جهنم ته به ئی داخل کړم ( الله دې ترینه مونږ او تاسو اوساتی ، آمین ) دغه شان الله جل جلاله په بل ځائی بیا فرمائی : ﴿ قُلْ هُوَ ٱلْقَادِرُ عَلَىٰٓ أَن يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِّن فَوْقِكُمْ أَوْ مِن تَحْتِ أَرْجُلِكُمْ أَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا وَيُذِيقَ بَعْضَكُم بَأْسَ بَعْضٍ ﴾[3] پدې آیت کې الله تعالیٰ د خپلو عذابونو انواع بیانوی ، فرمائی : اے خلقو ! که تاسو مؤمنان نۀ جوړیږئ نو د پورته نه به په تاسو باندې عذاب راولیږم، او د پورته نه به کاڼی را اووروم ، او یا به د

[1] [ سورة یوسف : ١٠٨ ] .
[2] [ سورة النساء : ١١٥ ] .
[3] [ سورة الأنعام : ٦٥ ] .

زمکي د لاندې نه به په تاسو باندې عذاب راولیږم ، ( قسما قسم زلزلي ، قحطونه به درباندې راولم) او بعضی علماء کرام ئې دا معنی کوی ، چه د پورتنه به درباندې عذاب راولیږم ، یعنی ظالم بادشاه به درباندې مقرر کړم ، او د لاندې عذاب نه مراد دا دے : چه ستا چه کوم غلامان دی هغه به درباندې غله او ډاکوان مقرر کړم ، دریم عذاب : چه د فرقه واریت لباس به درباندې راواچوم ، ( نو ټول به په فرقو باندې تقسیم شئ ) نو دا د جمهوریت کار دے ، او دا د الله عذاب دے چه پدې ملکونو باندې ئې مسلط کړے دے ، نو دا نقصان د جمهوریت شو .

**۱۰/ نقصان د جمهوریت:** اخوت اسلامی ختموی ، یعنی د مسلمانانو په مینځ کې چه کوم اخوت اسلامی دے نو دا جمهوریت هغه اخوت اسلامی ختموی ، نو څنګه چه تفرقه پیدا کوی نو ددې سره خود بخود اخوت اسلامی ختم شی ، الله جل جلاله فرمائي : ﴿ إِنَّمَا ٱلْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ ﴾[1] " مؤمنان په خپل مابین کې ورونه دی " نو جمهوریت اخوت اسلامی ختموی او ددې په ځائی باندې اخوت جمهوری جوړوی ، او بیا اخوت حزبی جوړوی د هر سړی خپله خپله ډله وی .

**۱۱/ نقصان د جمهوریت** : قوم پرستی پیدا کوی ، او قوم پرستی د الله په نیز باندې ډیر خطرناک او نقصانده شی دے ، ځکه خو الله تعالیٰ د قوم پرستئ نه سخته منع کوی فرمائی : ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَٰكُم مِّن ذَكَرٍ وَأُنثَىٰ وَجَعَلْنَٰكُمْ شُعُوبًا وَقَبَآئِلَ لِتَعَارَفُوٓاْ ﴾[2] دغه شان الله قوم پرستئ ته « حمية الجاهلية وئلي دی » لکه الله فرمائی : ﴿ إِذْ جَعَلَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ فِى قُلُوبِهِمُ ٱلْحَمِيَّةَ حَمِيَّةَ ٱلْجَٰهِلِيَّةِ ﴾[3] نو قوم پرستئ ته الله غیرت جاهلی ویلي دی ، او پیغمبر

---

[1] [ سورة الحجرات : ١٠ ] .

[2] [ سورة الحجرات : ١٣ ] .

[3] [ سورة الفتح : ٢٦ ] .

عليه السلام ورته دعوة جاهلي وئيلي دی ، او د جاهليت زمانه هغې ته وائی : چه کومه زمانه د پيغمبر عليه السلام د بعثت نه مخکې تيره شوے ده ، خو دغه جاهليت صرف په هغه زمانه کې منحصر ندې بلکه دغه جاهليت بيا هم راتلې شی ځکه چه ابن عباس ﷺ فرمائي : «**ولا تبرجن تبرجا الجاهلية الاولى** » نو هلته ئې هغه جاهليت ته جاهليت اولى ويلی دی ، او ابن عباس ﷺ فرمائي : «**مارأيت الاولى الا وله الاخرى**» " ما اول شی ندی ليدلې مګر د هغې دپاره دويم شی وی " ، نو دويم جاهليت به اوس خامخا وی او دغه جاهليت به څنګه راځي ؟ نو ظلال القرآن ليکلی دی : چه دغه جاهليت به داسې راځي : چه د جاهليت څلور ارکان الله په قرآن کې بيان کړيدی :

١/ **ظن الجاهليت** دے چه په الله باندې داسې ګمانونه کوے چه يره الله به ددې ډلې امداد اونکړی ، د حق پرستو امداد اونکړی .

٢/ **حكم الجاهليت** دے : چه د الله د قانون نه به بغير په بل قانون باندې فيصلې کوے.

٣/ **حمية الجاهليت** دے ، غيرت جاهلي چه هغې ته قوم پرستی وائی .

٤/ **تبرج الجاهلية** دے ، چه ښځې به هغه شان را اوځي لکه څنګه به چه ښځې په جاهليت اولى کې راوتلې ، نوظلال القرآن ليکلی دی : چه کله دا څلور ارکان د جاهليت موجود شی نو دا داسې دی لکه چه څلور ديوالونه د جاهليت دی ، او چه کله دا پيدا شو نو د جاهليت کمره جوړه شوه ، نو مقصد مو دا وو چه دا جمهوريت د څلور واړو قائله دے ، ځکه چه د اكثريت تابعداری غواړی ، نو کوم چه اقليت کې حق پرسته خلق دی نو په هغوئ باندې دوئ ظن الجاهلية کوی ، او حكم الجاهلية خو کار د دوي دے چه د الله په قانون باندې فيصلې نه کوی بلکه د غير الله په قانون باندې دوئ فيصلې کوی ، او حمية الجاهلية پکې ددې ډلې بازئ نه پيدا شی ، لکه په بلدياتی ووټونو کې به تاسو کتلی وی چه خلق په قوميت باندې اودريږی ، نو د حمية الجاهلية ټيکدار هم جمهوريت دے ، او وروسته څلورم نمبر : چه کله ده آزادی ورکړه او ښځه ئې د کور نه رابهر کړه نو دا تبرج الجاهلية شو نو دا هم د جمهوريت کار

دے ، نو جمهوريت په اصل کې جاهلي نظام دے ځکه چه د څلورو واړو ارکان دا په جمهوريت کې موجود دی ، نو دا هغه شان جاهليت دے چه کوم د پيغمبر عليه السلام د بعثت نه مخکې وو ، نو جمهوريت قوم پرستي پيدا کوی ، حالانکه حديث کې راځي چه پيغمبر عليه السلام فرمائی : « **اذا رأيتم الرجل يتعضا بعضاء الجاهلية فاعدوه بهَنِ ابيه ولاتكنوا** »[1] چه کله تاسو يو سړے اوګورئ چه هغه د ځان نسبت يو قوم جاهلي ته کوی نو تاسو هغه ته ووايه چه ورشه او د پلار په شرمګاه دې چک اولګوه ، او کنايه ورته مه کوئ بلکه صريح الفاظ ورته ووائی "، دغه شان پيغمبر عليه السلام فرمائی : « **من قتل تحت راية عمية ينصر العصبية، ويغضب للعصبية فقتلته جاهلية** »[2] يو سړے چه د قوميت د جنډې د لاندې مړ شو نو دا د قوميت امداد کوی ، او د قوميت دپاره غصه کيږی ، نو دا په جاهلي مرګ باندې مړ دے "، او بل روايت کې راځي : « **ابغض الرجال الى الله ثلاثة : ملحد في الحرم ، ومطلب دم امرأليهر يق دمه، ومبتغ فى الاسلام سنة الجاهلية** » .[3]

**۱۲/ نقصان په جمهوريت کې** : تفويض امرٍ الى غير اهله : نا اهلو ته د حکومت کار سپارل، يا نا اهلو ته هر يو کار سپارل دا تول پدې کې راځي ، ځکه چه کله ډله بازی جوړه شی نو بيا هر سړے د خپلې ډلې دپاره کوشش کوی او بيا ديته نۀ ګوري چه دا سړے ددې اهل دے او کۀ نا اهل دے ؟ او مونږ دا وايو چه په جمهوريت کې څوک هم وی نو هغه نا اهل دے که هغه هر څوک وی که مولا وی او که بل وی ، ځکه دې مولا پخپله ځان نااهله کړے دے چه دا دې جمهوريت ته وتلې دے ، ددې يوه نا اهلي دا ده : چه يو خو دا دې ته نۀ ګوری چه دا شرکيه قانون دے ، دويم : دا چه ديته هم نۀ ګوری چه ما د چا سره برابره وی د ډمې

---

[1] [ مسند أحمد ] .

[2] [ رواه مسلم في صحيحه كتاب الإمارة - باب وجوب ملازمة جماعة المسلمين رقم (1848) عن أبي هريرة وبرقم (1850) عن جندب ] .

[3] [ رواه البخاري ، رقم : ٦٣٧٤ ] .

سره مې برابره وی ، د فاسق او فاجر سره ، د زنائی او لوطی سره مې برابره وی ، زما او د هغه فاسق فاجر یو حیثیت جوړیږی او دې خپل علم ته نهٔ ګوری نو دا پدې وجه نا اهله دے ، او حدیث کې راځي چه خلافت یو امانت دے ، او چه کله دا غیر اهله ته حواله شی نو دا ضائع کول د امانت دی ، او یو حدیث کې راځي چه د نبی کریم ﷺ نه یو اعرابی تپوس اوکړو چه : «متی الساعة ؟ قال : إذا ضیعت الأمانة ، فأنتظر الساعة ...» [1] " چه قیامت به کله وی ؟ نو نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل : چه کله امانت ضائع کړے شی ، او خلافت نا اهلو ته وسپارلې شی نو بیا د قیامت انتظار کوه " ، په بل روایت کې راځي کله چه : «اذا وسّد الامر الی غیر اهله فأنتظر الساعة» [2] " کله چه امارت وسپارلې شی نا اهلو ته نو بیا د قیامت انتظار کوه " ، حدیث کې راځی پیغمبر علیه السلام فرمائی : «إِنَّ اللَّهَ لَا يَقْبِضُ الْعِلْمَ انْتِزَاعًا يَنْتَزِعُهُ مِنْ الْعِبَادِ وَلَكِنْ يَقْبِضُ الْعِلْمَ بِقَبْضِ الْعُلَمَاءِ حَتَّى إِذَا لَمْ يُبْقِ عَالِمًا اتَّخَذَ النَّاسُ رُءُوسًا جُهَّالًا فَسُئِلُوا فَأَفْتَوْا بِغَيْرِ عِلْمٍ فَضَلُّوا وَأَضَلُّوا» (نسأل الله العافية) ، [3] " یقیناً الله تعالیٰ علم نه قبض کوی چه د خلقو د سینو نه ئې اوباسی لکن علم قبض کوی په قبض د علماؤ سره ( یعنی علماء ختموی، اوس هغه پوهه علماء ختم شول ) ، تردې چه یو عالم هم پاتې نشی ، نو خلق بیا مشران اونیسی جاهلان ( او د هغوئ نه به سوال کولې شی ) نو هغوئ د علم نه بغیر فتوه ورکوي ( او چه بغیر د علم نه فتوې شروع کړی ) نو پخپله هم ګمراه وی او نور هم د ځان سره ګمراه کړی " ، ددې وجه نه دا خبره محکې مونږ اوکړه چه په فتوه کې به د ځان نه مفتیان نهٔ جوړوئ ، او دا ډیر نقصانده خبره ده ، ځکه «من افتا بغیر علم تعمدًا فقد وقع فی محرمٍ کبیر» " چا چه فتوه ورکړه بغیر د علم نه قصداً نو دا واقع شو په لوئ حرام کار کې ، او پدې کې خو څهٔ خبره نشته چه ستا نه د یوے مسئلې په باره کې پوښتنه اوشوه نو که تاته علم نهٔ

---

1) [ صحیح ابن حبان ، رقم الحدیث : ١٠٤ ] .

2) [ صحیح البخاري ، رقم : ٥٧ ] .

3) [ صحیح البخاري ، رقم : ٩٨ ] .

وو خو بس داسې ورته ووايه : چه ماته پته نيشته دے يا ما سره پدې خبره باندې علم نشته ، ځکه چه علم ټول خو هيڅ يو انسان ته هم ندې معلوم ، ځکه «**من قال لا ادرى بما لا يدرى فقد اقتدى فى الفقه بالنعمانى**» ، خوک چه په يوه مسئله نه پوهيږى او وائى چه زه نهٔ پوهيږم نو دا په حقيقت کې په امام ابو حنيفه پسې روان دے ، ځکه د امام ابو حنيفه رحمه الله نه د څلورو مسئلو په باره کې تپوس اوشو نو هغه اووئيل : چه ماته پته نشته ، امام مالک رحمه الله د ٣٦ مسئلو په باره کې وائى : چه ماته پته نشته ، نو دومره غټ غټ امامان وو او هغوئ ته ځان بد نهٔ ښکاره کيدو او نن مونږ ته ځان بد ښکارى ، نو دې جمهوريت والا هم جاهلان محکمې کړى دى او جاهلان مشران کوى ، نو دا هم فتوه بغير علم ده چه خلقو د جمهوريت په جائز کيدو فتوى ورکړى ، او بعضى بعضى خو پکې داسى هم دى چه ځان ته غټ شيخ وائى.

**١٣/ نقصان په جمهوريت کې** : تعاون على الاثم والعدوان دے په انتخاباتو کې : ځکه الله فرمائى : ﴿ وَتَعَاوَنُوا۟ عَلَى ٱلْبِرِّ وَٱلتَّقْوَىٰ ۖ وَلَا تَعَاوَنُوا۟ عَلَى ٱلْإِثْمِ وَٱلْعُدْوَٰنِ ﴾[1] نو دې خلقو چه څومره ظلم اوکړو او څومره خلاف د اسلام کوى نو پدې ټولو کې ورسره تهٔ شريک ئى ، نو تعاون على الاثم والعدوان پدې کې راځى ، دغه شان الله په بل ځائى کې فرمائى : ﴿ وَلَا تَرْكَنُوٓا۟ إِلَى ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ فَتَمَسَّكُمُ ٱلنَّارُ ﴾[2] مه نزدې کيږئ ظالمانو ته ځکه چه تاسو ته به اور ورسيږى " ، او حديث کې راځي : «**المرء مع من احب**»[3] .

" سړے به د هغه چا سره وى چه د چا سره ئى محبت وى " .

دغه شان الله فرمائى : ﴿ فَلَا تَقْعُدُوا۟ مَعَهُمْ حَتَّىٰ يَخُوضُوا۟ فِى حَدِيثٍ غَيْرِهِۦٓ ﴾[4] نو هغه

1) [ سورة المائدة : ٢ ] .

2) [ سورة هود : ١١٣ ] .

3) [ رواه البخاري ] .

4) [ سورة النساء : ١٤٠ ] .

راشي او د شرک خبرے او شرک طرف ته دعوت ورکوی ، او ته ورته ناست لاسونه ورته پرقوے .

او اسلام د تعاون على الاثم والعدوان نه د امير په باره کې څۀ وائى : «**لا طاعة لمخلوق فى معصية الخالق**» دغه شان پيغمبر عليه السلام په خپله د لښکر مشر عبدالله بن حذافه ﷺ کړو ، او چه کله هغه خپل ملګرى اوباسل په سفر باندې نو په لاره کې په څۀ خبره باندې ورته غصه ورغلې ده نو امر ئى اوکړو چه : «**اجتمعوا الى حطباً**» ماته لرګى راجمع کړئ ، نو لرګى ئى ورته راجمع کړل ، بيا ئى ورته اووئيل : «**احفروا حفرةً**» يوه کنده هم وکنئ ، نو کنده ئى هم وکنستله ، بيا ئى اووئيل : « اوقدوا ناراً » اوس اور بل کړئ ، او اور ئى هم بل کړو ، بيا ئى اووئيل : «**ادخلو فى النار**» اوس دې اور ته ورداخل شئ ، چه دا ئى ورته کله اووئيل : نو «**فنظر بعضهم الى بعض**» نو بعضو دې نورو بعضو ته وکتل چه دا څۀ وائى ، «**فقال : شاب منهم**» يو ځوان پکې اووئيل : «**نحن ما دخلنا فى الاسلام الا ننج من النار**» مونږ خو اسلام ته ددې دپاره راغلى يو چه مونږ د اور نه بچ شو ، «**و انت تريدنا ان ندخل فيها**» او ته غوارے چه مونږ دې اور ته داخل شو ، «**لنخبرن رسول الله صلى الله عليه وسلم**» نو مونږ به خامخا رسول الله ﷺ ته خبر ورکوو ددې په باره کې ، نو کله ئې پيغمبر عليه السلام ته ئى شکايت اوکړو : او نبى کريم ﷺ ته دا خبره معلومه شوه نو رسول الله ﷺ ورته اووئيل : «**لو دخلتموها ما خرجتم منها ابداً**» (1) که چرته تاسو دې اور ته داخل شوے وئ نو تاسو به چرته هم ددې اور نه نوى راوتلى ، نو دې حديث کې سوچ اوکړئ چه د امير امر دے خو تعاون على الاثم والعدان دے نو نبى کريم ﷺ وائى : چه د امير خبره به هم په داسې وقت کې نۀ منې ، نو اسلام د شرعى امير د معصيت نه منع کوى ، او که چرته ما ورته ووېونه ورکړل نو که دا هر قسم ګندګى کوى نو زما به ورسره پکې پوره پوره حصه وى ګناه به دا کوى او ماته به

(1) [ مسند احمد ، رقم الحديث : ٥٨٨ ] .

پکې پوره حصه رارسی .

**١٤/ نقصان د جمهوريت** : التذكية حسب المصلحة ، د مال او د دنيا دپاره ئې خلق پاکی بيانوی، نو ښهٔ ګنده زندګی به ئې تيره کړی وی او ورته وائی به : بې داغ ماضی ، دغه شان وائی : نهړ قيادت ، او داسې قسمه نورے قيصې به کوی ، او الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ لَا تَحْسَبَنَّ ٱلَّذِينَ يَفْرَحُونَ بِمَآ أَتَوا۟ وَّيُحِبُّونَ أَن يُحْمَدُوا۟ بِمَا لَمْ يَفْعَلُوا۟ ﴾[1] نو دا د يهودو صفت دے چه هغوئ وائي زمونږ دې په هغه څيز سره صفت اوکړے شی چه کوم مونږ نهٔ وی کړے ، نو چه کوم کار دې نوی کړے او ته وائی چه زما دې صفت اوکړے شی نو دا د يهودو صفت دے ، او دوی بيا پدې باندې پيسې اخلی ، دغه شان الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ ٱللَّهِ وَأَيْمَـٰنِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلًا أُو۟لَـٰٓئِكَ لَا خَلَـٰقَ لَهُمْ فِى ٱلْـَٔاخِرَةِ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ ٱللَّهُ وَلَا يَنظُرُ إِلَيْهِمْ يَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ وَلَا يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝٧٧ ﴾[2] نو دا حکومت د الله تعالیٰ عهد دے او پدې باندې خلق روپئ اخستل شروع کړی ، نو څلور وعيدونه الله تعالیٰ د داسې قسمه خلقو په باره کې بيان کړل ، چه د دوئ په قيامت کې حصه نشته ، دوئ سره به الله تعالی خبرے نه کوی ، دويته به الله د رحمت په نظر سره هم نهٔ ګوری، او نه به الله دوی پاک کړی ، بلکه د جهنم په اور باندې به ئې پاکوی ، ( الله دې ترينه مونږ اوساتی ) .

نو د الله کلام ته خو لګ اوګوره خو پدې نظر باندې چه ماته الله تعالی يو خط او قانون او آئين راليږلې دے نو په تا باندې به الله تعالیٰ ډير اسرار ( پټ رازونه ) را کولاؤ کړی ، او دا ډير عجيبه خبره ده ، چه تر څو پورے دې خلقو ته روپئ ميلاويږی نو دا ورلره صفت هم کوی ، خو چه کله پرې روپئ بندې شی نو بيا ورپسې کنځل هم کوی ، او مخالفتونه ئې هم کوی ، نو ددې خلقو هم دغه کار وی ، ددې وجه نه پيغمبر عليه السلام فرمائی بخاری رانقل

---

1) [ سورة آل عمران : ١٨٨ ] .

2) [ سورة آل عمران : ٧٧ ] .

کړے دے د حضرت ابو هريره ﷺ نه ، «**تعس عبد الدينار وعبد الدرهم وعبد الخميسه وعبد القطيفه وان لم يعطى سخط ، تعس وا نتكس واذا شيک فلن تقش**» [1] " هلاک دی شی هغه سړے چه د پيسو غلام وی ، او الله دې هلاک کړی هغه سړے چه هغه د کپړو غلام وی ، هلاک دی شی هغه سړې چه د روميال او څادر غلام وی ، او که څه ورته ورنهٔ کړې شی نو بيا غصه وی ، دا دې هلاک شی او د ده سر دې نسکته کړے شی ، او چه د ده په لاس او خپه کې ازغې لاړ شی نو دا دې ونهٔ باسلې شی ، ( يعنې دا دې الله په مصيبت در مصيبت کې پريږدی ) " ، نو دې حديث کې ذکر شول چه رسول الله ﷺ ورته خومره ښيرے اوکړے، نو دا ټولې فتنې دی عجيبه عجيبه فتنې دی او د مال په شکل کې راووتلې ، ځکه خو پيغمبر عليه السلام فرمائی : چه زهٔ په امت باندې د مال د فتنې نه يريږم ، او د مال دپاره خلق څهٔ څهٔ نه کوی ، او پيغمبر عليه السلام فرمائي : «**بَادِرُوا بِالْأَعْمَالِ فِتَنًا كَقِطَعِ اللَّيْلِ الْمُظْلِمِ يُصْبِحُ الرَّجُلُ مُؤْمِنًا وَيُمْسِي كَافِرًا أَوْ يُمْسِي مُؤْمِنًا وَيُصْبِحُ كَافِرًا يَبِيعُ دِينَهُ بِعَرَضٍ مِنَ الدُّنْيَا**.[2] **ثم قال : إِنَّ لِكُلِّ أُمَّةٍ فِتْنَةً وَفِتْنَةُ أُمَّتِي الْمَالُ**» [3] " مخکې والې اوکړئ په اعمالو باندې د فتنو نه مخکې مخکې ، داسې فتنې دی چه دشپې د تيارو پشان به وی ، صبا کې به سړے مسلمان وی او ماښام به کافر شوے وی ، ماښام به سړے مؤمن وی او سحر کې به کافر شوے وی ، بيا رسول الله ﷺ اوفرمائيل : د هر امت دپاره فتنې شته دے او زما دامت دپاره به فتنه مال وی " ، نن په مال سره ډير خلق ګمراه شول ، الله دې ترينه مونږ او تاسو بچ کړی ، دغه شان رسول الله ﷺ بل ځائې کې فرمائی : «**مَنْ كَانَتْ الدُّنْيَا هَمَّهُ فَرَّقَ اللَّهُ عَلَيْهِ أَمْرَهُ وَجَعَلَ فَقْرَهُ بَيْنَ عَيْنَيْهِ وَلَمْ يَأْتِهِ مِنْ الدُّنْيَا إِلَّا مَا كُتِبَ لَهُ وَمَنْ كَانَتْ الْآخِرَةُ نِيَّتَهُ جَمَعَ اللَّهُ لَهُ أَمْرَهُ وَجَعَلَ غِنَاهُ فِي قَلْبِهِ**

(1) [ صحيح البخاري ، رقم : ٢٦٧٣ - ٥٩٥٥ ] .

(2) [ صحيح المسلم ، رقم : ١٦٩] .

(3) [ سنن الترمذي ، رقم الحديث : ٢٢٥٨ ] .

وَأَتَتْهُ الدُّنْيَا وَهِيَ رَاغِمَةٌ» [1] " د چا چه قصد دنيا وی نو الله به د ده اجتماعيت ختم کړی او دا فقر به د دهٔ د سترګو په مينځ کې اوليکی ، او دنيا به ده ته نه راځي مګر دومره به راځي چه څومره د ده دپاره ليکلې شوی وی ( يعنی د قسمت نه ئی نهٔ زياتيږی ) او د چا چه آخرت قصد وی نو الله به ئی اجتماعت برقرار کړی او په زړه کې به ورته غنی قائمه کړی او دنيا به ورته راشی او هغه به سپکه وی ، ( او دې بل خو دنيا ته ځان پيش کړے وو نو ځکه ترينه دنيا لرې وه ) ( او ده چه آخرت ته ځان وسپارلو نو دنيا ورته پخپله راروانه وه ) " ، دې وجه نه بل حديث کې راځي پيغمبر عليه السلام فرمائی : چه کله الله تعالیٰ دنيا پيدا کړه نو پوښتنه ئی ترينه اوکړه ، چه ته څوک ئی او زه څوک يم ؟ نو دنيا ورته اووئيل : چه ته زما رب ئی او زه دې وينځه يمه ، نو الله ورته وفرمائی : «**من خدمكِ فاستخدميه**» څوک چه ستا خدمت کوی نو خپل خادم ئی جوړ کړه ، او «**من خدمنی فاخدميه**» او څوک چه زما خدمت کوی نو ته د هغهٔ خدمت کوه " ، نو مونږ دې هم الله تعالیٰ د خپل دين خادمان جوړ کړی .

**١٥/ نقصان د جمهوريت** : حرص المرشح على ارضاء الناخبين : نو کوم سړے چه ځان منتخب کوی نو هغه خلق خوشحالوی ، نو ددې کوشش دا وی چه خلق خوشحاله کړی د الله د خوشحاله کولو کوشش نه کوی ، لکه الله تعالی په قرآن کريم کې د منافقينو صفت بيانوی فرمائی : ﴿يَحْلِفُونَ بِٱللَّهِ لَكُمْ لِيُرْضُوكُمْ وَٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥٓ أَحَقُّ أَن يُرْضُوهُ إِن كَانُوا۟ مُؤْمِنِينَ ﴿٦٢﴾﴾ [2] دغه شان الله د دوی په باره کې فرمائي : ﴿أَلَمْ يَعْلَمُوٓا۟ أَنَّهُۥ مَن يُحَادِدِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ فَأَنَّ لَهُۥ نَارَ جَهَنَّمَ خَٰلِدًا فِيهَا ۚ ذَٰلِكَ ٱلْخِزْىُ ٱلْعَظِيمُ ﴿٦٣﴾﴾ [3] دغه شان الله تعالیٰ بل ځائی کې فرمائی : ﴿يَحْلِفُونَ لَكُمْ لِتَرْضَوْا۟ عَنْهُمْ ۖ فَإِن تَرْضَوْا۟ عَنْهُمْ

[1] [ سنن ابن ماجة ، رقم الحديث : ٤٠٩٥ ] .

[2] [ سورة التوبة : ٦٢ ] .

[3] [ سورة التوبة : ٦٣ ] .

فَإِنَّ ٱللَّهَ لَا يَرْضَىٰ عَنِ ٱلْقَوْمِ ٱلْفَٰسِقِينَ ﴿٩٦﴾ [1] دغه شان حديث مبارک کې راځي : «**من ارضى الناس بسخط الله سخط الله عليه واسخط عليه الناس ، ومن ارضى الله بسخط الناس رضى الله عنه وارضا الناس عنه**» " څوک چه خوشحاله کړی خلقو لره د الله د غصه کيدو دپاره ، نو الله به ده ته غصه شي او الله به خلق هم ده ته په غصه کړی ( نو دا قسمه خلق بيا د نورو خلقو خوښ نه وی ، نو اوګوره الله ئی خفه کړو د خلقو د وجه نه نو الله ورته دا خلق غصه کړل ) ، او څوک چه الله رضا کړی د خلقو په خفګان باندې ( چه خلق خفه کيږی نو خفه دی شي خو چه الله تعالی رضا شی ، نو بيا به ) الله هم ترينه رضا شی او خلق ترينه هم خوشحاله شي ( نو بيا روسته خلق پوهه شی ) " ، نو دې خلقو الله لره خفه کړے دے ددې خلقو د وجه نه نو دوی نه به خلق هم خفه وی ، نو دا په جمهوريت کې يو لوئ شی دے چه خلق خوشحاله کړی ځکه چه آئينده کې بيا خلق ورته ووټ نه ورکوی ، نو ددې دپاره خلقو ته رياء کاری کوی ، او چه کوم خدمت ئی کړے وی نو بيا هغه خلقو ته يو شل ځل خو ووائی، ځکه بيا په هر بيان کې ددې دا خبرے وی ، نو دوی نه د الله رضا حاصله کړی او نه د خلقو رضا حاصله کړی .

**١٦/ نقصان د جمهوريت** : التزوير والمغالطة ، يعنی خلقو ته دروغ ويل او خلقو سره مغالطه کول، او دهوکې کول ، نو دا په جمهوريت کې لوئ نقصان دے ، نو د جمهوريت مثال د مسجد ضرار دے ځکه د مسجد ضرار آيت پدې جمهوريت باندې ښۀ فيټ کيږی ، لکه الله فرمائي : ﴿ وَٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُواْ مَسۡجِدٗا ضِرَارٗا ﴾ [2] هغه منافقان چه هغوئ مسجد د مؤمنانو دپاره مسجد ضرار مورچه جوړه کړه ، نو دا جمهوريت هم دغه شان دے په ظاهر کې درته آزادی آزادی خائی چه ستا اسلام پکې هم چليږی خو په حقيقت کې ضرر بالاسلام دے

---

[1] [ سورة التوبة : ٩٦ ] .

[2] [ سورة التوبة : ١٠٧ ] .

پکې ، « **وكفراً** » " او کفر وو په هغه مسجد کې " نو جمهوريت کې هم سر تر پايه کفر کفر دے ، ﴿ وَتَفۡرِيقَۢا بَيۡنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴾ نو جمهوريت هم دا کار کوی چه د مؤمنانو په مينځ کې تفرقه راولی ، بل ﴿ وَإِرۡصَادٗا لِّمَنۡ حَارَبَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ مِن قَبۡلُ ﴾ " او مورچه ده د هغه چا دپاره چه د الله او رسول سره دوشمنی کوی " ، نو جمهوريت هم يوه مورچه ده ، چه کله دغه مورچه ختميږی په اسلامی ممالکو کې نو بيا هغه خلق خفه کيږی ، ځکه چه بيا دلته کې د هغوئ مورچه ختمه شی ، ددې وجه نه چه په کومو ممالکو کې جمهوريت ختميږی نو بيا هغوئ دا کار بد ګنړی ځکه چه دا د هغوئ مورچه ده ، او پديکې هغوئ خپل خپل حزبونه او ډلې جوړے کړيدی ، د روس پکې خپل ذهن خلق دی ، د امريکې او د برطانيئ پکې د خپل ذهن خلق دی ، او دوی ورلره کار کوی نو دا د هغوئ دپاره مورچه ده، بيا الله تعالیٰ د مسجد ضرار د خلقو صفت بيانوی ، نو دلته هغه صفت د جمهوريت والا خلقو ته راواړوه ، لکه الله فرمائی : ﴿ وَلَيَحۡلِفُنَّ إِنۡ أَرَدۡنَآ إِلَّا ٱلۡحُسۡنَىٰۖ وَٱللَّهُ يَشۡهَدُ إِنَّهُمۡ لَكَٰذِبُونَ ۝١٠٧ ﴾[1] " او قسمونه به خوری چه زمونږ اراده نده مګر خائسته اراده مو ده " ، نو کوم چه د اسلام والا دی نو هغه به راو وراندې شی چه يره جی مونږ خو اسلام راوستل غواړو ، نو هغوئ به دا اراده ظاهروی ، نو دوئ به دا قسمونه خوری چه پارلمان ته ځنګه داخل شم نو اسلام به راولم، " خو الله وائی : چه زه پرې ګواهی کووم چه دوی دروغجن دی " ، نو ددې وجه په جمهوريت باندې د مسجد ضرار آيت ډير خائسته راځي ، نو دا خلق دهوکې کوی ، حالانکه پيغمبر عليه السلام فرمائی : « **مَنْ غَشَّنَا فَلَيْسَ مِنَّا، وَالْمَكْرُ وَالْخِدَاعُ فِي النَّارِ** »[2] "څوک چه دهوکه کوی نو دا زما د امت نه ندې ، او مکر دهوکه کول او فريب کول دا به په اور کې وی " ، **دغه** شان پيغمبر عليه السلام په بازار باندې تير شو نو يو سړی غنم خرڅول، او هغه غنمو کې

---

1) [ سورة التوبة : ١٠٧ ] .

2) [ المعجم الكبير للطبراني ، رقم : ١٠٠٨٦ ] .

هغه دا کار کړے وو چه د لاندې لامده غنم وو او دپاسه پرې اوچ غنم پراته وو ، نو چه پيغمبر عليه السلام پکې لاس وردننه کړو نو لامده غنم ئې ترينه راو باسل ، نو رسول الله ﷺ ورته اووئيل : «مَا هَذَا يَا صَاحِبَ الطَّعَامِ ؟» دا څۀ دی اے د طعام صاحب ؟ ، نو هغه ورته اووئيل : چه باران پرې شوے وو ، نو رسول الله ﷺ ورته اووئيل : «أَفَلَا جَعَلْتَهُ فَوْقَ الطَّعَامِ كَيْ يَرَاهُ النَّاسُ مَنْ غَشَّ فَلَيْسَ مِنِّي»[1] دا دې پرې ولې بره نه اچول تردې چه خلق ئې ووينې ، چا چه دهوکه وکړه نو دا زما د امت نه ندې " ، نو دا جمهوريت والا هم دا کار کوی په اندرون کې به يو شی او په ښکاره کې به بل شی وی ، نو ددې نه ځان ساتل پکار دی ، او د ټولو نه غټ د دروغو مجلس اسمبلی دی او پارلمان دے دا ټولو نه غټ د دروغو ځائې دے ، نو که چرته سړے صحيح سړی وی نو هغه به چرته هم دې ځائې ته لاړ نشی ، او هغه به ددې بوت خانې د ورانولو کوشش کوی ، ځکه الله د عباد الرحمن ډير صفتونه بيانوی خو په هغې کې يو صفت دا دے : ﴿ وَٱلَّذِينَ لَا يَشۡهَدُونَ ٱلزُّورَ ﴾[2] " مؤمنان هغه کسان دی چه هغوئ د دروغو مجلسونو ته نه حاضريږی " ، د دروغو د فراډ د ټولو نه غټ مجلس دا پارلمان دے ، ددې نه ځان ساتل پکار دی ، او پديکې دروغ هم دی : ﴿ فَٱجۡتَنِبُواْ ٱلرِّجۡسَ مِنَ ٱلۡأَوۡثَٰنِ وَٱجۡتَنِبُواْ قَوۡلَ ٱلزُّورِ ۝٣٠ ﴾[3] د دروغو د خبرو نه ځان ساتئ ، حديث کې راځي : «من أشار على أخيه بأمر يعلم أن الرشد في غيره فقد خانه» [4] " چا چه يو مسلمان ته مشوره ورکړه په يوه خبره باندې او دا پوهيږی چه ددې نه په غير کې کاميابی پرته ده نو ده د هغه سره خيانت اوکړو " ، نو نن دغه علماء سوء دې خلقو ته مشورے ورکوی چه په اوټونو

---

1) [ صحيح مسلم ، رقم الحديث : ١٤٧ ] .

2) [ سورة الفرقان : ٧٢ ] .

3) [ سورة الحج : ٣٠ ] .

4) [ المستدرک على الصحيحين للحاكم مع تعليقاته ، رقم : ٣٥٠ ] .

کې حصه واخلئ، نو دا دوی خیانت کوی د امت سره، د امت جزبات دا پدې باندې سړوی چه ما له ووټونه راکړئ نو د امریکې وباسل د افغانستان نه په مونږ باندې دی، نو د شهداؤ په وینو باندې دوئ ووټونه حاصل کړل، نو اول ئی ویل: چه اسلام به راولو، بیا وائی: که اسلام نشو راوستلې نو کم از کم د اسلام نه به خو دفاع کوو، نو بیا ئی اووئیل: چه د مدرسو او مساجدو تحفظ خو به کوو، نو هغه هم وران شول، بیا ئی ویل: چه د مجاهدینو تحفظ به کوو، نو هغه هم پکې اونهٔ شو، دغه کار د هغه مشرکینو هم وو چه ویل به ئی: چه دا بوتان خو زمونږ معبودان دی نو چه کله به ئی په دلائلو کې راتینګ کړل نو بیا به ئی ویل: که چرته معبودان نشو نو شفعاء خو به شی کنه، نو د دوي هم دغه کار دے چه په آرام آرام سره په ښکته راروان دی، نو خلق ترقی کوی او دوی تنزل کوی.

**۱۷/ نقصان د جمهوریت**: وخت ضائع کول، نو که د دوئ په مظاهرو کې هم شریک شوی یو نو وخت مو ضائع کړے دے، او د دوئ په طلب کې هم د وخت ضیاع ده، ځکه چه مونږ اوکتل چه نه ئی اسلام ته فائده شته، او نه ئی دنیا ته فائده شته دے، دا دین مخالف شی دے او مونږ پکې په دغه نیت ګرځیدلی یو چه یره دا به اسلام ته فائده ورکړی، نو دا هم لوئ وخت ضائع کړے دے استغفار پرې کوئ، ځکه حدیث کې راځي: «**اغْتَنِمْ خَمْسًا قَبْلَ خَمْسٍ: شَبَابَكَ قَبْلَ هِرَمِكَ، وَصِحَّتَكَ قَبْلَ سَقَمِكَ، وَغِنَاءَكَ قَبْلَ فَقْرِكَ، وَفَرَاغَكَ قَبْلَ شُغْلِكَ، وَحَيَاتَكَ قَبْلَ مَوْتِكَ**» [1] " پنځه څیزونه د پنځو څیزونو نه مخکې غنیمت اوګنړئ، ۱/ ځوانی غنیمت اوګنړئ مخکې د بوډا والی نه، ۲/ ژوند مخکې د مرګ نه، ۳/ روغ صحت مخکې د مرض نه، ٤/ او ستا مالداری ده مخکې د غریبئ ستا نه، ٥/ او ستا فراغت دے مخکې د مشغولتیا ستانه "، نو پدیکې یو ځوانی هم ده، او دا ځوانی دې په ګډو وډو کې تیره شی، او په ځوان کې خا مخا د خپل دین د تحفظ جزبه پرته وی او هغه جزبه ورلره دوی سړه وی، او دوی دا ټول کارونه د خپل ځان دپاره کوی چه کله د دوی مطلبونه پوره شی نو بیا د خلقو

[1] [ المستدرک علی الصحیحین، رقم: ٧٨٤٦ ].

هیڅ پرواه نه کوی ، او بیا یو بل ته طاغوتی نظام وائی ، دیته نه ګوری چه دا ټول طاغوتیان دی، نو پدې خبرو کې د ځوانانو زندګی عبث تیروی ، حالانکه حدیث کې راځي پیغمبر علیه السلام فرمائی : «**ما من قوم يقومون من مجلس لا يذكرون الله تعالى فيه إلا قاموا عن مثل جيفة حمار وكان ذلك المجلس عليهم حسرة إلى يوم القيامة**» [1] " یو قوم داسې نشته چه هغوئ کینی یو مجلس کوی او په هغې کې د الله ذکر نه کوی نو دا داسې مجلس دے چه دوی ددې مجلس نه پاڅیږی نو لکه چه د مردار خره نه چه پاڅیدل ، او په ورځ د قیامت به دغه مجلس پدوی باندې حسرت او آفسوس وی " ، نو دا خو د الله د ذکر دپاره ندی جوړ شوی دوی خو د غیر الله قانون پدیکې نافذ کوی ، نو دا مرداره ده چه دوی پرې راجمع شوی دی، او پدې باندې داسې قسمه بلا احادیث دی چه دا تزویر او دا قسمه مغالطی دوی خلقو ته ورکوی ، او دا وختونه چه دوی د خلقو ضائع کوی ، او چه پدیکې چه کوم سړے شریک کیږی نو هغه پکې هم ګناهګار دے ، ﴿ وَلَيَحْمِلُنَّ أَثْقَالَهُمْ وَأَثْقَالًا مَّعَ أَثْقَالِهِمْ ﴾[2] نو هغوئ خو به د ځان سره ټول بوجونه اوچتوی خو دلته کې په تا باندې هم بوج راځي نو ځان ساتل پکار دی ، نو خلق ددې جمهوریت نه منع کول پکار دی ، او چه کله هم طالبانو پدې جمهوریت کې حصه واغستله نو هغه ورځ به د دوی د ذلت ورځ وی ، نو دوئ چه کله د جمهوریت او د یموکراسئ په مخالف باندې ولاړ وی نو دوی به کامیابیږی ، نن مغربی خلق څومره کوشش کوی چه طالبان دې د افغانستان حصه جوړه شی ، نو هغوئ جمهوریت طرف ته راطلب کوی او څوک چه په جمهوریت کې لاړل نو د هغوئ نه څه جوړ شول ، دا خبره د هیچا نه پټه نده ، او الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَدُّوا لَوْ تُدْهِنُ فَيُدْهِنُونَ ۝ ﴾[3] الله فرمائی : که ته هم لږه نرمی اختیار کړی او دوی هم لږه نرمی اختیار کړی نو بیا پکې ډیموکریټ

---

[1] [ سنن أبي داؤد ، رقم : ٤٢١٤ ] .

[2] [ سورة العنكبوت : ١٣ ] .

[3] [ سورة القلم : ٩ ] .

اسلام په منځ کې راوباسی نو بیا درسره په اسلام باندې صلح کوی ، نو دا پیشن ګوئی الله تعالی د مخکې نه ورکړے ده ، لکه پیغمبر علیه السلام ته خو هم دا مشرکان راغلی وو چه راځه ته به کله زمونږ د خدایانو عبادت کوی او مونږ به ستا د خدایانو عبادت کوو ، آخری کې ورته دا اووئیل : چه ته هر څه کوه خو زمونږ د خدایانو بد مهٔ بیانوه ، نو تاسو لره پکار دی چه ددې جمهوریت بد بیانوئ ، ځکه دا پرې ډیر بد لګیږی ، لکه دا بعضی جمهوریان به تاته وائی : چه خیر دے ته دې خپل جهاد کوه خو په جمهوریت پسې بد مهٔ بیانوه ، نو په هر ځائی کې ددې بد بیانول پکار دی ، او دا کفر بالطاغوت به کوئ نو هله به ستاسو ایمان بالله برابریږی ، او که کفر بالطاغوت نه وی نو ایمان بالله نه برابریږی ، نو د جمهوریت خو هغه تکفیر په خپل ځائی شوے دے چه دا کفر دے خو د هغې نه علاوه که چرته دوی سره دا کافرانه نظام نه شی نو بیا هم ددې ډومره نقصانات دی ، نو اسلام د حق لاره ده ، اسلام د مصالحو او فوائدو لاره ده ، او اسلام د فوائدو قانون دے ، او که تفرقه په ځان کې پیدا کوئ نو جمهوریت ته ورشئ ، او اوس خو دا خبره هم واضحه شوه چه دا طالبان به څنګه جمهوریت قبول کړی ، ځکه چه د هغوئ مقصد دا دے که چرته دوئ جمهوریت قبول کړو نو بس دوئ ختم شو ، ځکه چه الله فرمائی : ﴿ وَلَا تَنَـٰزَعُواْ فَتَفۡشَلُواْ وَتَذۡهَبَ رِيحُكُمۡ ﴾[1] ستاسو قوت چه ختمیږی نو دا به په اختلاف سره ختمیږی ، او د اختلاف جرړه ( بیخ ، بنیاد) تاسو معلومه کړه چه دا جمهوریت دے چه پدې باندې ډومره تفرقه بازی جوړیږی ، قومی ډله بازی پکې ځانله شوه ، سیاسی ډله بازی پکې ځانله شوه ، مذهبی ډله بازی پکې ځانله شوه ، هغه ابو عاصم المقدس وائی کنه چه بیا هر یو کس د ځان دپاره بیا خپل خدائی جوړ کړے دے ، نو چا د ځان دپاره سلفی خدائی جوړ کړے دے، نو چا د ځان دپاره حنفی خدائی جوړ کړے دے ، او چا د ځان دپاره دیوبندی خدائی جوړ کړے دے، او چا د ځان دپاره د ګیرے واله خدائی جوړ کړے دے ، او چا د ځان دپاره بې ګیرې خدائی جوړ کړې دے ، او بیا د هغه په ګیرے

---

[1] [ سورة الأنفال : ٤٦ ] .

باندې دعوت چلوی جمهوریت ته ، څوک پکې وائی چه ګوره دا حنفی سړے دے ده ته اوټ ورکړئ ، څکه چه مقابل کې ورسره فلاني او ډنګرې ولاړ دے ، نو دا ټول څانته یو قسم خدایان جوړ کړی دی څکه دوي د اسلامي نظام او قانون دپاره خلق نه تیاره وی بلکه د خپل خپل مذهب په نوم باندې ئې خلق په جمهوریت کې ور داخل کړل او هر چا پسې څانته څانته خلق روان دي هاں ښه ښه خلق هم شته خو هغه لږ دی د دوي په نسبت سره نو ددې نه څان ساتل پکار دی ، نو ﴿ ءَأَرۡبَابٞ مُّتَفَرِّقُونَ خَيۡرٌ أَمِ ٱللَّهُ ٱلۡوَٰحِدُ ٱلۡقَهَّارُ ﴾[1] نو مونږ به وایو چه بل لله الواحد القهار .

*****

## د جمهوریت موضوع [ شپږمه حصه ]

۱۸ / **نقصان د جمهوریت** ؛ بله مفسده او نقصان د جمهوریت هغه صرف الاموال فی غیر موضعها الشرعی ، مال په غیر شرعی څائی کې استعمالول ، نو ددې په باره کې خو یوه خبره مونږه دا کړے وه چه دوی د خزانې مال استعمالوی خو چه کوم څائی د استعمال د مال دپاره شریعت مقرر کړے دے نو په هغې کې هم نۀ استعمالوی ، نو اسراف ئې هم کوی او بې څایه ئې هم استعمالوی ، او ددې نه سخته منع الله جل جلاله کړے ده لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَأۡكُلُوٓاْ أَمۡوَٰلَكُم بَيۡنَكُم بِٱلۡبَٰطِلِ إِلَّآ أَن تَكُونَ تِجَٰرَةً عَن تَرَاضٖ مِّنكُمۡ ﴾[2] "اے مؤمنانو ! دا خپل مالونه په خپل مینځ کې د یو بل نه په باطلې طریقې سره مۀ خورئ ، نو دوی په باطلې طریقې سره د یو بل مالونه خوری، لکه دوی

---

1) [ سورة یوسف : ۳۹ ] .

2) [ سورة النساء : ۲۹ ] .

اول مونږ نه اوړ واخلي او بيا دغه ووړونه ټول کړی بيا هلته کې په يو بل باندې خرڅ کړی نو دغه مال خوړل په باطله طريقه باندې خوړل دی ، بلکه دوی خو پديکې دومره مخکې والے کړيدے چه هغه د قطرو کمپنۍ والا به راشي او دغه مرداره ماده به د ماشومانو په خولو کې اچوی چه په هغې باندې زمونږه ماشومان تباه کيږی ، نو ددې قطرو نه ځان ساتل پکار دی ځکه پدې باندې تحقيق شويدے چه پديکې دوه قسمه جراثيم دی : يو قسم هغه جراثيم دی چه هغې ته کرموسون وئيلې کيږی چه هغه د انسان په دې بدن کې کومه نر ماده ده نو هغه ترينه ختموی نو بيا د انسان سم بچی نۀ پيدا کيږی ، او بل نقصان د قطرو د قطرو دا دے چه پديکې د ايډز د جراثيمو قطرے يو ځائې کوی نو بيا ترينه د ايډز مرض خوريږی نو دا ډير نقصانده څيز دے ، تاسو پدې باندې سائنسی تحقيقات اوګورئ کم از کم يو کتاب چه " برموده تکون " په نوم باندې دا اوګورئ نو پديکې هغوی د سائنس دانانو په نومونو باندې چه د دوی کوم غټ مشران دی نو هغوی پخپله باندې دا خبره کوی ، نو دا ډير خطرناک څيز دے ، نو دغه قطرو والا به راشي نو دوی لره به ډيرے پيسې ورکړی ددې دپاره چه د جواز راته پيدا شی نو بس دوی ورسره بيا تصوير اوباسی او ماشوم له به په خوله کې قطرے ورکوی نو که سړے ديته سوچ اوکړی چه آيا دغه مغرب والا مونږه سره دومره مينه ساتی چه د اسرائيل نه ستا دپاره او ستا د بچو دپاره قطرے راليږی او بيا د بره نه په تا او ستا پۀ ملک باندې بمونه راغورځوی کور درلره ورانوی او بچی درلره شهيدان کوی نو دا څنګه بيا ستا د نسل په خرابيدلو باندې خوشحاله ندے او وائی چه يره بس د دۀ نسل باقی پاتې شی او کوشش کوی ، نو کم از کم ددې په باره کې سوچ کول پکار دی ، او الله رب العالمين دا يهود او نصارا ستا دپاره دوشمن جوړ کړے دے ځکه الله وائی دا ستاسو دپاره دشمنان دی او دشمن به ستا دپاره خير اوغواړی ؟ او داسې نور مثالونه هم ددې شته دے .

حالانکه يو حديث کې هم راځي چه رسول الله عليه السلام فرمائی : «لَيَأْتِيَنَّ عَلَى النَّاسِ

زَمَانٌ لَا يُبَالِي الْمَرْءُ بِمَا أَخَذَ الْمَالَ أَمِنْ حَلَالٍ أَمْ مِنْ حَرَامٍ » [1] خامخا په پدې خلقو به داسې زمانه راشي چه سړے به پرواه نه کوی چه دا مال ما د کوم ځائی نه کسب کړو ، دا د حلالو نه دے او که د حرامو نه نو پدې کې به فرق نهٔ کوی ، نو دغه وخت زمونږ پدې زمانه کې راغلو ، او ددې بنيادی شکل هم دغه انتخابات دی چه پديکې ډومره مال خوړل کيږی نو دا په بل څيز کې نهٔ کيږی ، خا ته اوس ديته ګوره چه دوی وائی دا شرعی حق دے او د ځان نه ورته آيتونه جوړوی او د آيتونو او د احاديثو نه تأويلات باطله کوی او وائی : ﴿ مَّن يَشْفَعْ شَفَٰعَةً حَسَنَةً يَكُن لَّهُۥ نَصِيبٌ مِّنْهَا ۖ وَمَن يَشْفَعْ شَفَٰعَةً سَيِّئَةً يَكُن لَّهُۥ كِفْلٌ مِّنْهَا ۗ وَكَانَ ٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ مُّقِيتًا ﴿٨٥﴾ ﴾[2] نو دا قسمه آيتونه وائی چه څوک ښهٔ شفاعت اوکړی نو دا به دده دپاره د قيامت په ورځ باندې حسنه وی ، او کله بيا ديته د ګواهئ نوم ورکوئ چه دا خو ګواهی ده او ګوهی په حق باندې نه پټوی « ولاتكتموا الشهادة » نو مونږه ته خو دا آيتونه وائی ، او بيا د پيسو دپاره ئخپله ووټونه کله په يو پارټئ او کله په بله پارټئ خرڅوئ او اتحاد به ورسره کوی، نو ددې مطلب دا شو چه دا امت په دهوکه کې ساتل نو دا د دوی کار دے چه هم دا حرام مال اوګټی او بيا په هغې باندې خيټې ډکوی ، او پدې باندې دوی چرته هم نهٔ مړيږی ځکه حديث کې راځي رسول الله عليه السلام فرمائی : «لَوْ أَنَّ لابْنِ آدَمَ وَادِيًا لأَحَبَّ أَنْ يَكُونَ إِلَيْهِ ثَانٍ ، وَلَوْ أَنَّ لَهُ وَادِيَيْنِ أَحَبَّ أَنْ يَكُونَ الثَّالِثُ» [3] '' که چرته د ابن آدم دپاره يوه وادی وی نو دا به وائی چه يره دويمه راله هم وے ، او که چرته ددې دپاره دوه شی نو بيا به د دريمې تمنا کوی او که درې وی نو د څلورمې هم تمنا کوی خو چرته هم دده خيټه نهٔ ډکيږی مګر په خاوره باندې به ددې خيټه ډکيږی '' ، نو دوی دې جمهوری نظام ته داسې غټې غټې خبرے

---

[1] [ صحيح البخاري ، رقم : ١٩٤١ ] .

[2] [ سورة النساء : ٨٥ ] .

[3] [ المعجم الكبير للطبراني ، رقم : ٣٢٢٤ ] .

وائی او دې شرک ته دا دعوت ورکول دا خو داسې ده لکه چه الله فرمائی : ﴿ تَكَادُ ٱلسَّمَٰوَٰتُ يَتَفَطَّرۡنَ مِنۡهُ وَتَنشَقُّ ٱلۡأَرۡضُ وَتَخِرُّ ٱلۡجِبَالُ هَدًّا ۝٩٠ أَن دَعَوۡاْ لِلرَّحۡمَٰنِ وَلَدًا ۝٩١ ﴾[1] نو الله وائی چه دا دروغجن دی ، نو پداسې طریقې سره مال حاصلوی او نااهله قیادتونه پرې جوړوی او د نااهله قیادت نه منع هم راغلے ده مخکې دا خبره شویده چه په بل حدیث کې راځی رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائي : «**إِذَا وُسِّدَ الأَمْرُ إِلَى غَيْرِ أَهْلِهِ فَانْتَظِرْ السَّاعَةَ**» [2] دغه شان اعرابی چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه تپوس کوی چه قیامت به کله وی نو رسول الله عليه السلام ورته وفرمائې : «**فَإِذَا ضُيِّعَتْ الأَمَانَةُ فَانْتَظِرْ السَّاعَةَ**»[3] نو دا دوی کوی ، او حدیث کې دا هم راځی : «**لَتُؤَدُّنَّ الْحُقُوقَ إِلَى أَهْلِهَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ حَتَّى يُقَادَ لِلشَّاةِ الْجَلْحَاءِ مِنَ الشَّاةِ الْقَرْنَاءِ**» [4] تاسو حقوق خپل اهل ته حواله کوئ تر دې چه قصاص به اغستلے شی د هغه ښکرور چلیئ نه د بې ښکرو چلیئ دپاره د قیامت په ورځ باندې ، نو قیادتونه صحیح خلقو ته سپارل پکار وی ، او بیا علماء او پیران به رامخکې کیږی او پدې باندې مالونه راټولوی د خلقو نه لکه الله فرمائی : ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِنَّ كَثِيرًا مِّنَ ٱلۡأَحۡبَارِ وَٱلرُّهۡبَانِ لَيَأۡكُلُونَ أَمۡوَٰلَ ٱلنَّاسِ بِٱلۡبَٰطِلِ وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾[5] نو دغه مولیان دې او خلق دې جمهوریت ته راغواړی او د نورو خلقو سره کرځی هم ، نو دا د مال فتنه دا ډیر نقصانده څیز دے حدیث مبارکه کې راځي پیغمبر عليه السلام فرمائی : «**يوشك أن تداعى عليكم الأمم كما تداعى القوم على قصعتهم**» بیا صحابه کرامو اوفرمائیل :

---

1) [ سورة مريم : ٩٠ ـ ٩١ ] .

2) [ صحيح البخاري ، رقم : ٥٧ ] .

3) [ صحيح البخاري ، رقم : ٥٧ ] .

4) [ صحيح مسلم ، رقم : ٤٦٧٩ ] .

5) [ سورة التوبة : ٣٤ ] .

«**قال : قيل : من قلة ؟ ، قال : « لا ، ولكنه غثاء (1) كغثاء السيل ، يجعل الوهن في قلوبكم ، وينزع الرعب من قلوب عدوكم ، بحبكم الدنيا وكراهيتكم الموت**» [1] ، او داسې ډير مثالونه هم موجود دی .........

١٩ / **نقصان د جمهوريت** : الإهتمام بالوصول الى القومة دون النظر الى الفساد الاعتقادي ، ځان رسول دی کورسې ته او د عقيدی فساد ته نۀ ګوری چه څومره فساد دې سره راپيدا کيږی ، نو ستا مقصد د ملک اصلاح ده نو اول خلق په لاإلٰه إلا الله باندې پوهه کړه چه هلکه د لا إله الا الله مقصد پارلمان او کرسی نده دا ټول باطل دی د لاإلٰه إلا الله په ضمن کې ، نو د دوی مقصد بس ځان رسول دی او دا مقصد غلط دے ددې وجې نه سيد قطب يوه خبره کړيده او ډيره قيمتی خبره ده فرمائی : چه څوک غټ مقاصد په ذهن کې راولی او د هغې دپاره کمزورے لاره اختياروی نو زۀ ديته حيران يم چه د چا په ذهن کې غټ مقاصد وی نو پکار ده چه د هغې دپاره غټه لاره اختيار کړی او غټ ذهن دې ولری ، نو بيا د ده دا ذهن څومره ګنده شو چه ددې غټ مقصد دپاره غلطه لاره اختيار کړه ، او بيا وائی : چه يو سړے مسجد ته ځی نو پکار ده چه پاکه لاره ورته اوګوری ، او که چرته په ډيرانونو او ګنده لارو باندې مسجد ورسی نو دغه کيږے به بيا د مانځه مستحقې نۀ وی ، نو دغه شان دا هم دے چه ته وائی زۀ اسلام نافذ کوم او لاره دې ورلره دومره ګنده انتخاب کړيده ، نو هغه وائی : چه کوم سړے دا وائی چه زۀ اسلام نافذ کوم او پدې ګنده لارو د جمهوريت باندې ورته ورځې نو تۀ په حقيقت کې پوهه شه چه ددې سړی مقصد دا ندے چه کوم مقصد دا بيانوی، ځکه که دده مقصود دا وے نو دۀ ورلره دومره ګنده او کمزورے لاره نۀ اختياروله .

او الله پاک هميشه دپاره مخلوق ته د لارې برابروالې کړے او د غلطو لارو نه منع کړی دی لکه کافر چه به کورنو ته د شاه طرف نه راتلل نو الله ورته اوفرمائيل : ﴿ وَأۡتُواْ

[1] [ شعب الإيمان للبيهقي , رقم : ٩٩٨٥ ] .

ﭐلۡبُيُوتَ مِنۡ أَبۡوَٰبِهَا ﴾[1] چه په سمه لاره باندې کور ته راځئ دا تاسو څه کوئ ، او حدیث کې هم راځی چه پیغمبر علیه السلام فرمائي : « نبدأ بما بدأ الله » اوس الله ابتدا دا کړے وه چه دې خلقو ته ووایه : لا إلٰه إلا الله تفلحوا » نو لا إلٰه الا الله ورته ووایه ، یعنی اول خلق د عقیدې په لحاظ سره برابر کړئ دوی به عقیدے خرابې وی بلکه د خلقو د عقیدو د خرابولو طریقه هم دا ده چه د پارلمان په لاره ورته ورشی ، نو د خلقو عقیدے دې پدې لاره باندې خرابې کړے او ته وائی چه زۀ لاړ شم نو زۀ اسلام نافذ کړم ، نو پدې وجه باندې سید قطب صاحب په معالم الطریق کې وائی : چه دا یوه خبره یاده ساتئ چه کله هم تاسو دعوت ورکوئ د اسلام د تنفیذ دپاره نو پدیکې یو شرط یاد ساتئ او دا غلطه دعوه ده چه څوک دا خبره کوی چه اسلام دې زمونږ پدې ملک کې نافذ شی ، نو پدې مطالبه کې لګ وسعت پکار دے چه اول مطالبه به دا کوئ : چه تاسو اول مسلمانان شئ نو بیا به مونږ لره اسلام نافذ کړئ ، نو اول اسلام قبول کړئ بیا د اسلام د قبلولو نه بعد پدې ملک کې اسلام نافذ کړئ ، تاسو خو تحکیم بغیر ما انزل الله کړې دے او بیا هم ورته د قانونیت درجه ورکړیده نو دوی سره اصلي قوت مفقود دے چه هغه توحید د الله تعالیٰ دے ځکه دوی د الله توحید پریخې دے چه هغه د الله جل جلاله حکم دے په زمکه کې ، نن مونږ توحید بس صرف پدیکې منحصر کړے دے چه بس د غیر الله عبادت مۀ کوئ ، او یا قبرونه یا د بتانو عبادت مۀ کوئ صحیح ده دا هم شرک دے خو ددې نن زمانې شرک خلقو ته بیان کړه لکه څنګه چه د قبر پرستو د الله تعالیٰ صفت غیر الله ته ورکړے دے هم دغه دوی هم د الله صفت مخلوق او عوامو ته ورکړے دې خو د یرې نه ئې نه بیانوی نۀ نۀ بلکه خلقو ته پوره توحید بیان کړئ .

---

[1] [ سورة البقرة : ۱۸۹ ] .

**دويم: فساد عقيدوى** هغه دا دے چه نعوذ بالله پيغمبر عليه السلام ته د کم عقل توب نسبت کوے چه ولې پيغمبر عليه السلام د خپلو دوشمنانو سره روغه نۀ کوله ؟ او ولې پيغمبر عليه السلام د ابوجهل او وليد بن مغيره سره په يوځائى کې نۀ کيناستلو ؟ نو که چرته دا جائز وے چه ته ورته وائى زۀ درسره په پارلمان کې کينم او هغه درلره د بره نه کور ورانوى او داسې نور نو پيغمبر عليه السلام به بيا د ابو جهل سره په يو ځائى کې کيناستلې وو او مشترکه پارلمان به ئى جوړ کړے وو ؟ نو ماتاسو ته بار بار اووئيل چه پيغمبر عليه السلام د اول نه دنيا ته منهج د لاإله الا الله راوړلو ، نو لاإله الا الله وو د اختلاف منهج او هغه داسې چه پيغمبر عليه السلام کله لاإله الا الله اووئيلو نو پديکې پيغمبر عليه السلام د هغوى په طاغوت باندې رد اوکړو که دا رد ئى نۀ وې کړے نو بيا چرته هم دغه مشرکانو د پيغمبر عليه السلام سره اختلاف نه راوستلو ، خو د پيغمبر عليه السلام دا نۀ وه خوښه چه خلق دې د طاغوت نه ونۀ باسى او هم داسې ايمان بالله دې راوړى ، نو دا د اسلام مزاج او منهج نۀ وو ، او دا د اسلام طريقه نۀ وه ، او نن صبا خلق وائي چه مونږ خو دعوت لاإله الا الله چلوو ، او دعوة الى الله دا دے چه مونږ به جوړ راولو توړ به نۀ راولو ، نو دوى ديته نه ګورى چه دا پيغمبر عليه السلام چه توړ راوستې وو د هغې سره به بيا څۀ کوے ؟ نعوذ بالله پيغمبر عليه السلام نه پوهيدو نو دا خلق د پيغمبر عليه السلام مشن ته د کم عقل توب نسبت کوى د عقلى مثالونو په وجه باندې ، لکه بعض خلق دا معقولې خبرے کوى چه په کوټه کې تيارې راشى نو ته به ډانګونه راخلې چه تيارې پرې ختمې کړے ، پدې کې به د اعمالو لائيټ بل کړے نو رنړا به پکې راشى ، نو دوى دا ظالمان جهاد ته د ډانګونو وال وائى ، نو ښه د پيغمبر عليه السلام پدې نه پوهيدو نو مکه په څه فتحه شوه د حنين او طائف په څه فتحه شول نو دا خلق داسې قسمه خبرې کوى پدې خبرو سرے کفر ته نزدې کيږي .

**دويمه خبره دا ده** : چه الله جل جلاله متهم کول دى ، «نعوذ بالله من ذلک » ، چه الله جل جلاله خپل پيغمبر ته صحيح طريقه نۀ وه ښودلې ، نو مونږه طريقه د جوړ راغله او د پيغمبر عليه السلام طريقه د توړ راغله ، مونږه دا نۀ وايو چه بس صرف دا تبليغ والا دا خبره

کوی ، که جمهوریت والا دی نو هغوی هم دا خبره کوی ، چه ټول ادیان دې یو شی او مونږه په جمهوری نظام باندې صلحه کوو چه اختلافات ختم شی نو دیته میثاق جمهوریت وائي ، یو خو میثاق اسلام دے نو هغه خو مونږه د الله سره کړے دے چه هغه فرمائیلی وو : الست بربکم ؟ نو مونږ ورته وئیلی وو چه بلی انت ربنا ، او یو میثاق جمهوریت دے چه بوش مې هم رب دے او اقوام متحده مي هم رب دے ، او طاغوت اکبر نن صبا دغه اقوام متحده دے نو که بیا ترینه هغه د غلامانو خبره منسوخ کوی نو هغه به منسوخ وی نو بیا دوی منسوخیت راولی او دوی ورسره منی نو دغه کارونه دوی کوی ، حالانکه پیغمبر علیه السلام ته الله جل جلاله فرمائی: ﴿ وَمَا كَانَ رَبُّكَ نَسِيًّا ﴾[1] ستا د رب نه هیر نهٔ راځی ، نو دوی چه دا طریقې را أوباسی نو دا په حقیقت کې دوی د اسلام په جامه باندې داغ لګوی ، او د اسلام دپاره چه څومره جنګونه شویدی نو په حقیقت کې دوی دغه د اسلام د طریقې په لاره کې رکاوټ ګنړی .

**دریمه خبره دا ده** : چه دوی تقسیم د توحید کوی ، یو توحید خو واخلی چه خلق قبرونو ته مهٔ پریږده نو دا واخلی ، او بل طرف ته منشور چه اوګورے نو هغه به د کفری خبرو نه ډک وی ، او په منشور کې به لیکلی وی چه مونږ به نه اندرونی دهشت ګردو له پناه ورکوو او نه بیرونی له او نن خو هغوی دهشت ګرد مجاهدینو ته وائی نو ددې څه مطلب دے ، نو دوی به هغه توحید یادوی چه هغه کې ورته څه خطر نوی او چه کوم کې خطره د دوی نفسونو ته یا د دوی ډلې ته نو هغه بیا نه بیانوی .

**څلورمه خبره** : پیغمبر علیه السلام بنیادی نظر په عقیده باندې ساتلې وو په لاإلٰه الا الله باندې ئې ساتلې وو ، نو ستا دا حکومت ته رسیدل دا اوګوره چه پیغمبر علیه السلام له کسان راغلل په هغې کې مشر د هغوی ولید بن مغیره وو او دې پیغمبر علیه السلام ته د ښځې او داسې د نورو څیزونو آفر ئې ورته کړے وو په آخره کې ئې ورته دا آفر اوکړو : إن

[1] [ سورة مریم : ٦٤ ] .

آردت ملكا ملكناك ، كه تهٔ حكومت غواړې نو مونږه به درلره حكومت دركړو ، نو كه پيغمبر عليه السلام چرته دا كار كړے وے چه حكومت ئې اغستې وے او په خلقو باندې ئې بيا اسلام نافذ كړے وې نو كړے به ئې وے كنه ، نهٔ صرف حكومت ته رسيدل ندى چه بس حكومت ته ځان ورسوے بلكه په صحيح لاره باندې به ځان رسوے د كفر په تعاون باندې ځان حكومت ته مهٔ رسوه ورنه د وليد بن مغيره په تعاون باندې خو پيغمبر عليه السلام حكومت ته رسيدلې شو خو حكومت ته ئې ځان ونهٔ رسولو ، او دا خبره مخكې تفصيلى ذكر شويده ، نو چه كله عقيده برابره شوه نو اقتصاد ئې هم الله برابر كړو نو الله ورته اوفرمائيل :

﴿ وَإِنْ خِفْتُمْ عَيْلَةً فَسَوْفَ يُغْنِيكُمُ ٱللَّهُ مِن فَضْلِهِۦٓ إِن شَآءَ ﴾[1] نو الله په غنيمت باندې مالداره كړو ، دغه د قوم اوچت والې په لاإله الا الله باندې راغلو ، نو پيغمبر عليه السلام داسې ندى وئيلى چه زما د دين عزت كوئ ځكه چه دا عربى دين دے داسې ندى وئيلى چه زما عزت كوئ ځكه چه زهٔ عربى يم ، بلكه داسې ئې ورته وئيلى دى : لاتسبوا العرب لأنى عربى ، والقرآن عربى ، نو د قوميت او اسلام اوچتيدو بنياد هغه توحيد شو ، او اخلاق ئې هم برابر شو ، او دا خبره مخكې ذكر شوى وه .

**۲۰/ نقصان د جمهوريت** : ترك الجهاد دے ، چه دا بنيادى خبره ده ، او پيغمبر عليه السلام جهاد مقدم كړے وو په هر څهٔ باندې ، او جمهوريت وائى : چه نهٔ څوك چه په كومه لاره باندې ځى نو بس دا صحيح ده په هغه لاره باندې دې ځى ، بله دا : چه دوى حكومتونه حاصلوى او په هغې باندې خپل غيرت ښكاره كوى او چه كله وظيفو ته ورسيږى نو بيا اسلام نهٔ نافذ كوى ، نو كه تهٔ ورته ووائې : چه په خپل ولايت كې خو دې اختيار راغلې دے نو پديكې خو اسلام نافذ كړه نو بيا به درته وائي : چه د مركز سره اختلافات راځي ، او كه صبا ورته په مركز كې اختيار راشى نو بيا به وائى چه يره اقوامې متحده سره اختلافات راځى او

---

[1] [ سورة التوبة : ۲۸ ] .

اختلافات خو دوی نه غواړی ځکه دا خو جوړ غواړی دا خو د جوړ دپاره تلي وو ﴿إِنۡ أُرِيدُ إِلَّا ٱلۡإِصۡلَٰحَ مَا ٱسۡتَطَعۡتُ ﴾[1] نو دا بيا دا ځان دپاره دا خبرے کوی ، نو ورته ووايه : چه دا اصلاح نده پيغمبر عليه السلام اصلاح کوله او هغې خو تور هم راوستي وو ، او تور خو به خامخا راځی ځکه چه الله فرمائي :﴿ وَلَا يَزَالُونَ مُخۡتَلِفِينَ ۝١١٨ إِلَّا مَن رَّحِمَ رَبُّكَۚ وَلِذَٰلِكَ خَلَقَهُمۡ ﴾[2] نو الله ددې اختلاف دپاره پيدا کړی ئی ، ځکه د الله دپاره يو دوه صفتونه دا هم دی چه يو صفت ئی د جلال دے او بل صفت ئی د جمال دے ، نو چه اختلاف نۀ وی نو بيا خو نيمه خدائی د الله پاک څنګه ښکاره کيږی ، نو مظهر د جلال د الله پاک په کافر باندې دے او مظهر د جمال ئی په مسلمان باندې دے ، خو تميز راوله کنه ، او دا تميز الله پاک راوستي دے فرمائی : ﴿ وَلَيَعۡلَمَنَّ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَلَيَعۡلَمَنَّ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ ۝١١ ﴾[3] نو الله پاک د منافق او د مؤمن ترمينځ تميز راوستي دے ، او تۀ وائی چه تميز نۀ راولم دا ټول يو انسانيت دے او زۀ د انسانی حقوقو خيال ساتم .

**بله خبره دا ده** : چه په جمهوريت کې د ترشيح آزادی ده لکه څنګه چه تشريع آزادی ده نو دغه شان د ترشيح آزادی ده چه کوم سړے مخکې کيږی ، اقبال المرشح دون النظر الى الفساد العقدى ، هلته خو رسيدل دی حکومت ته قطع نظر د فساد عقيدی نه .

لکه ابراهيم عليه السلام د الله جل جلاله نه سوال کوی فرمائي : ﴿ وَإِذِ ٱبۡتَلَىٰٓ إِبۡرَٰهِـۧمَ رَبُّهُۥ بِكَلِمَٰتٖ فَأَتَمَّهُنَّ ﴾[4] الله پاک پرې څۀ امتحانات اوکړل نو هغه هغۀ پوره کړل بهر حال هغه

---

[1] [ سورة هود : ٨٨ ] .

[2] [ سورة هود : ١١٨ ـ ١١٩ ] .

[3] [ سورة العنكبوت : ١١ ] .

[4] [ سورة البقرة : ١٢٤ ] .

چه هر څۀ وو خو بيا ابراهيم عليه السلام د الله پاک نه سوال اوکړو نو الله پاک په ابراهيم عليه السلام باندې احسان کوی فرمائی : ﴿ قَالَ إِنِّي جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ إِمَامًا ﴾ چه تۀ ما د خلقو دپاره مقتدا اوګرځولې نو ابراهيم عليه السلام ترینه بیا دعاء کوی : ﴿ قَالَ وَمِن ذُرِّيَّتِي ﴾ يا الله زما په اولاد کې هم امامان اوګرځوے نو الله ورته اوفرمائيل : ﴿ قَالَ لَا يَنَالُ عَهْدِي ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾[1] آو ورکوم به هم ستا په اولاد کې امامت خو ظالمانو ته دا امامت نشی ميلاويدلې ، نو الله ورته اووئيل : چه ظالمان مشران نۀ جوړوم ځکه خو الله فرمائی : ﴿ وَلَن يَجْعَلَ ٱللَّهُ لِلْكَٰفِرِينَ عَلَى ٱلْمُؤْمِنِينَ سَبِيلًا ﴾[2] کافران لره الله رب العالمين په مؤمنانو باندې لاره نۀ ګرځوی ، او دلته خو پکې کافر مشر شی او بيا هغه په مسلمانانو باندې حکومت کوی نو دې کافر ته مشرانه په کوم نظام او په قانون باندې ورکړے شوے ؟ پدې جمهوريت باندې ، حالانکه د نبی کريم صلی الله عليه وسلم داسې يو عجيب شان وو چه هغۀ د هغه کافر نه هيڅ قسمه امداد ونۀ غوښتلو لانستعين بمشركٍ ورته ئې اووئيل : چه مونږه د مشرک نه امداد نۀ اخلو واپس لاړ شه ، او که کافر په تاباندې مشر شو نو بيا به تۀ د هغۀ هر قسمه خبره منې ، ځکه چه تا خو ورسره جمهوری نظام منلے دے او هغه درباندې په جمهوری طريقه باندې مشر شو نو اوس به هغه خامخا خپل مشر ګڼړی ، مثال : . . . .

او بيا موليان دواړو ته وائی : چه دا شهيدان دی ځکه دا يو قسم خلق خو د الله د دين دپاره جنګيدلی دی او دا بل قسم خو د مشر اطاعت کړے وو او الله فرمائی : ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُواْ ٱلرَّسُولَ وَأُوْلِي ٱلْأَمْرِ مِنكُمْ ﴾[3] نو وائی ځکه چه د اولو الامر اطاعت راغلے

---

1) [ سورة البقرة : ١٢٤ ] .

2) [ سورة النساء : ١٤١ ] .

3) [ سورة النساء : ٥٩ ] .

دے ، خو دا ظالمان ديته نۀ ګورى چه دا منکم به د چا نه وى ، نو دا منکم کې دا خبره ده چه دا اولى الامر به د مسلمانانو نه وى لامن اليهود والنصارى ، د يهودو او د نصاراؤ ايجنټ به نۀ وى ، دې وجې نه احمد على لاهورى رحمه الله فرمائى : کله چه انسان ګمراه شى نو الله رب العالمين ترينه عقل واخلى بيا د دۀ عقل کار نۀ کوى ، نو دغه شان الله پاک د دوى نه هم عقل اخستې دے چه د قرآن کريم آيت ته ګورى او پوهيږې پرې نۀ ، ددې وجه نه د ظلال القرآن دا ناشنا عبارت دے چه **ومن الجهل أن يتفقه احد وهو قاعد يتعامل مع الاوراق البارد بل لابد لها من الحضور فى الميادين والمعارک** ، " او د جهل نه د دا خبره چه يو سړى ته دې فقهه حاصله شى او دې ناست وى يخې پاڼړې دې اړوى راړوى بلکه په يخو پاڼړو باندې فقهه نه حاصليږې دى سره دا ضرورى ده چه دې به اوس معرکو او ميدانونو ته ځى " ، نو پدې باندې زمونږه د يو ادنى طالب العلم هم ذهن کولا ويږى چه دلته ئى منکم وئيلې دے او دا چه ځان ته لوئى عالم وائى نو دا پرې نۀ پوهيږى .

بل دا چه دلته الله رب العالمين اطيعوا الله واطيعوا الرسول واولى الامرمنکم ، نو د الله او د رسول سره ئى لفظ د اطيعوا وئيلې دے او د اولى الامر سره ئى اطيعوا ندے وئيلې مطلب ئى دا دے چه تۀ د دوى تابعدارى کوے نو هغه اطيعوا به وى کوم چه ئى د الله او د رسول سره وئيلې دے او که د هغوى نه دا انحراف کوى نو بيا لاطاعة لمخلوق فى معصية الخالق دے ، نو الله پاک پدوى باندې جمود راولى ، نو په انتخاباتو کې به دوى سيک او هندو هم ودروى او نصرانى به هم ودروى الله تعالىٰ فرمائى : ﴿ لَا تَتَّخِذُوا۟ ٱلْيَهُودَ وَٱلنَّصَـٰرَىٰٓ أَوْلِيَآءَ ﴾[1] نو دار الاسلام هغه دے چه د هغې بادشاه به مسلمان وى ددې وجې نه علامه يوسف لدهيانوى رحمة الله عليه په " آپ کې مسائل اور ان کا حل " کې دا شرط ليکى : چه دار الاسلام به هغه وى چه د هغې بادشاه مسلمان وى ، که چرته د مسلمانانو بادشاه کافر شو نو بيا مسلمانانو لره پکار دى چه هر طريقه اختياروى خو چه راجمع شى او د هغه خلاف اودريږى او هغه معزوله

[1] [ سورة المائدة : ٥١ ] .

کړی، نو دوی د هغې په خلاف دی کافر به مشر کړی او د هغوی سره به اتحاد اوکړی او بیا وائی چه دا زمونږه سیاسی اتحاد دے ، نو خا مطلب داشو چه ته سیاست د دین نه جدا ګنړې نو هم دغه سیکولر عقیده شوه کنه .

**بل نقصان پکې دا دې** : چه شرائط د شریعت پکې ندی برابر ځکه په امام کې شرائط د شریعت پکار دی ، او په انتخاباتو کې شرائط د شریعت نهٔ وی ، لکه الله پاک فرمائی :

﴿ وَبَشَّرْنَٰهُ بِإِسْحَٰقَ نَبِيًّا مِّنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴿١١٢﴾ وَبَٰرَكْنَا عَلَيْهِ وَعَلَىٰٓ إِسْحَٰقَ ۚ وَمِن ذُرِّيَّتِهِمَا مُحْسِنٌ وَظَالِمٌ لِّنَفْسِهِۦ مُبِينٌ ﴿١١٣﴾ ﴾[1] نو د ظالم دپاره بیا وعده نهٔ کوی ، دغه شان پیغمبر علیه السلام فرمائی : «**أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِخِيَارِ أُمَرَائِكُمْ وَشِرَارِهِمْ خِيَارُهُمُ الَّذِينَ تُحِبُّونَهُمْ وَيُحِبُّونَكُمْ وَتَدْعُونَ لَهُمْ وَيَدْعُونَ لَكُمْ وَشِرَارُ أُمَرَائِكُمُ الَّذِينَ تُبْغِضُونَهُمْ وَيُبْغِضُونَكُمْ وَتَلْعَنُونَهُمْ وَيَلْعَنُونَكُمْ**»[2] " بهترین امامان ستاسو هغه دی چه تاسو هم ورسره محبت کوئ او هغوئ تاسو سره محبت کوی ، تاسو هغوئ ته دعاګانې کوئ او هغوی تاسو ته دعاګانې کوی ، او بدترین امامانو ستاسو هغه دی چه تاسو د هغوئ سره بغض کوئ او هغوی تاسو سره بغض کوی ، هغوئ په تاسو لعنت وائی او تاسو په هغوئ لعنت وائی " ، نو د بادشاه دپاره شرعی شرائط دی هغه د ځان سره یاد ساتل پکار دی ، او چه کله پکې هغه شرعی شرائط نهٔ وی نو بیا دا د حکمرانئ قابل نشی جوړیدلې او هغه شرطونه دا دی :

**١ / نوړومبنې شرط** په هغې کې اسلام دے ، **٢/ شرط** : بلوغ دے یعنی بالغ به وی نابالغ بادشاه نشی جوړیدلې ، **٣/ شرط** : رجل به وی یعنی سړے به وی ښځه به نهٔ وی ځکه ښځه په اسلام کې حاکمه نشی جوړیدلې ، **٤/ شرط** : مجنون به نهٔ وی ، **٥/ شرط** : غلام به نهٔ وی آزاد به وی ، **٦/ شرط** : چه ابتداءً ته بیعت کوے نو فاسق به نهٔ وی ، که روستو فاسق شی نو

---

[1] [ سورة الصافات : ١١٢ ـ ١١٣ ] .

[2] [ سنن ترمذي ، رقم : ٢١٩٠ ] .

دا مسئله به تاسو ته روستو راشي چه د حديثو په شروحو کې چه کومه راغلې ده هغوی وائي : ولا ينعقد الإمامة لفاسق ابتداءً ولو طرء عليه الفسق لاينعزل » امامت د فاسق دپاره نهٔ منعقد کيږی ابتداءً ، او که چرته روستو پکې فسق راغلې نو بيا به هغه نهٔ منعزل کيږی ( مشر امير ) " ، نو د امامت دپاره دا شپږ شرائط دی ، نو پدې شرائطو کې دوی خيال نهٔ ساتی بس د چرته نه به غلا او ډاکوان راشي او هغه په مونږه باندې مشران کړی وی .

**بل نقصان په انتخاباتوکې** : استخدام نصوص الشريعة فی غير موضعها ، شرعی نصوص چه کوم د قرآن او د حديث دی هغه بيا بې ځايه استعمالوی ، لکه په شبهاتو کې به راشي چه د شورا په باره کې آيت راغلې دے نو هغه دوی په جمهوريت باندې فيټ کوی چه دا جمهوريت دا شورئ ده ، مثلا : بعضو په خپلو بينرو باندې ليکلې وی : **من المؤمنين رجال صدقوا ما عاهدوا الله عليه فمنه من قضا نحبه ومنهم من ينتظر وما بدلوا تبديلا** » نو د هغې نه به دا مطلب اخلي چه مونږه د الله سره معاهده کړيده چه اسلام به په انتخاباتو باندې راولو ، او بعضو پکې خپل نذر پوره کړو او بعضی پکې انتظار کې ناست وی چه مونږه هم دا نذر پوره کړو او هيڅ قسمه تبديلی درلره نهٔ راولو ، او بعضو پکې ليکلې وی : « نصر من الله وفتح قريب » بعضو پکې ليکلې وی : « الذين ان مکنّهم فی الارض اقاموا الصلاة واتوا الزکاة وامروا بالمعروف ونهوا عن المنکر ولله عاقبة الامور » نو بعضو پکې دا ليکلې وی ، نو دا خلق دا قسمه آيتونه په غلط ځائې کې فيټ کوی ، نو تهٔ يو طاغوتی اداره ته ورځې او بيا دا آيتونه ليکی ، بعضو پکې دا هم ليکلې وی : « ان اريد الا الاصلاح ماستطعت » نو چه الله رب العالمين خپل پيغمبر ته کوم کلام راليږلې دے نو هغه بيا بې ځايه استعمالوی ، او پدې طريقو باندې دوی امارت غواړی .

**بل نقصان** : چه طلب د امارت کول ، حالانکه ددينه منع راغلې ده ، او دا طلب د امارت کول دا په جمهوريت کې موجود وی نو دا هم لوئی نقصان دے ، او په حديث کې راځی پيغمبر عليه السلام حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه ته فرمائی : « **لا تسئل الإمارة فان اعطيتها عن مسئلة وکلت اليها ، وان اعطيتها عن غير مسئلة اعنت عليها** » نو که تاته امارت

ستا د سوال د وجې نه درکړې شو نو دغه امارت به تاته اوسپارلې شي ( يعنې الله به درسره پکې مدد نهٔ کوی ) او که چرته تاته دغه امارت درکړے شو بغير د سوال نه نو بيا به تاسره الله تعالىٰ په هغې کې مدد کوی "، نو دا د نفس خواهش دے چه تهٔ امارت غواړے حالانکه پيغمبر عليه السلام به فرمائيل : «**اللهم رحمتک ارجو فلاتکلنی الی نفسی طرفة عين واصلح لی شأنی کله لاإله إلا أنت**» نو پيغمبر به داسې دعا کوله او دوی به وائي چه بس ماته امارت راکړه او زهٔ د دې مستحق يم زه به داسې اوکړم او داسې داسې به اوکړم ، او بيا د الله په نازل کړده حکمونو فيصلې هم نشی کولے ، نو دا قسمه خلق د قرآن نصوص بې ځايه استعمالوی ، او الله تعالىٰ فرمائی : ﴿ فَلَا تُزَكُّوٓاْ أَنفُسَكُمۡۖ هُوَ أَعۡلَمُ بِمَنِ ٱتَّقَىٰٓ ۝٣٢ ﴾[1] نو دوی ته چه اوګورے نو ناشنا ناشنا القابات د ځان دپاره استعمالوی ، او الله تعالىٰ فرمائی : ﴿ وَمَن يُهِنِ ٱللَّهُ فَمَا لَهُۥ مِن مُّكۡرِمٍ ﴾[2] ددې وجې نه زمونږه استاذ محترم به دا خبره کوله چه الله څوک اوغواړی چه اوچت ئې کړم نو دغه اوچت بيا د بره نه راځي ، او دغه حقيقی رفعت دے لکه چه حديث کې راځی چه الله پاک جبريل ته ووائي : چه دا فلانې سړے زما خوښ دے تاسو ورسره هم مينه کوئ ، او بيا جبريل عليه السلام د آسمان ملائکو ته ووائي چه دا فلانې سړی سره الله مينه کوی زه ورسره هم مينه کوم تاسو ورسره هم مينه اوکړئ ، او بيا دغه ملائکو نه يو مَلَک راشی او په زمکه کې آواز اوکړی چه دغه فلانی سړی سره الله مينه کوی جبريل ورسره مينه کوی د آسمانونو ټولې ملائکې ورسره مينه کوی تاسو ورسره هم مينه اوکړئ نو ټول خلق د هغهٔ سره محبت شروع کړی خو دا مؤمنان خلق ورسره محبت شروع کړی نه کافر او منافق ، او کوم سړے چه په حقيقت کې ذليله وی او ځان دپاره په زوره سره عزت جوړوی نو د هغوی دپاره شياطين خبرے شروع کړی چه ددې سره شيطانان محبت کوی بيا ئې په

---

1) [ سورة النجم : ٣٢ ] .

2) [ سورة الحج : ١٨ ] .

زمکه کې نجوميان او کاهنان ورسره محبت شروع کړی او بیا ددې سره نزدې خلق هغه صحافیان دی نو هغوی په خبرونو کې ددې صفت شروع کړی او بیا بینرې اولیګیږی او په آرام آرام سره د ذلت په طبقې باندې هغه ناره راتاویږی او بیا په آخره کې هغه انسی شیطانان دا خبرے شروع کړی چه دا فلانې سړے خو داسې داسې دے زمونږ خوښ دے او دا صحیح قیادت کوی او نور او پاک دے نو دا بلندی د لاندې نه شروع کیږی او دا رفعت د شیطان والا رفعت دے چه په حقیقت کې دا ذلت دے ، حالانکه پیغمبر علیه السلام د امارت د غوښتلو نه منع کړیده چه څوک امارت غواړی او فرمائی : « **إِنَّا لَا نُوَلِّي هَذَا مَنْ سَأَلَهُ وَلَا مَنْ حَرَصَ عَلَيْهِ** » [1]نو مونږ نه ورکوو دا امارت هغه چاته چه هغه سوال کوی ددې امارت ، او څوک چه پدې باندې حرص کوی نو هغې ته ئې نهٔ ورکوی ، او بیا پیغمبر علیه السلام فرمائي: « **إِنَّكُمْ سَتَحْرِصُونَ عَلَى الْإِمَارَةِ وَسَتَكُونُ نَدَامَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَنِعْمَ الْمُرْضِعَةُ وَبِئْسَتْ الْفَاطِمَةُ**»[2]نو دا اوس هغه خطرناک ټائم راغلې دے ، نو په خپل مابین کې د امارت نه ځان ساتل پکار دی ځکه امارت ډیره سخته ګرانه او خطرناکه مسئله ده ، او په مشکاة شریف کې حدیث دے چه پیغمبر علیه السلام فرمائی : که امیر عادل وی او که فاسق وی ولو که د لسو کسانو امیر ولې نهٔ وی خو د قیامت په ورځ به د الله دربار ته لاس تړلے پیش کیږی ، چه د الله دربار ته پیش کړے شی نو که عادل وو نو عدل به راشی او دده لاسونه به کولاؤ کړی ، او که ظلم ئې کړے وی نو ظلم به راشی او دا به جهنم ته اولټه اوغورځوی ، نو د امارت مسئله ډیره خطرناکه او ډیره ګرانه ده ،دغه شان پیغمبر علیه السلام فرمائي : «**إِنَّ الْعِرَافَةَ حَقٌّ وَلَا بُدَّ لِلنَّاسِ مِنْ الْعُرَفَاءِ وَلَكِنَّ الْعُرَفَاءَ فِي النَّارِ** » [3] نو په امارت کې ډیر خیال ساتل پکار دی که چرته د دوه کسانو امارت څوک درکوی نو ځان ترینه ساتئ ، ځکه په

---

[1] [ صحيح البخاري ، رقم : ٦٦١٦ ] .

[2] [ صحيح البخاري ، رقم : ٦٦١٥ ] .

[3] [ سنن أبي داؤد ، رقم : ٢٥٤٥ ] .

امارت کې به کله داسې يو کار ستا نه اوشي چه ته به پرې پوهه شوے هم نۀ يئ او هغه به واقع شوی وی ، دې وجې نه شهادت يو شے هم نه خرابوی سوا د غنيمت کې غلا نه اګر که وړوکې څيز ولې نه وی نو شهادت به درلره خراب کړی ، لکه د رسول الله صلى الله عليه وسلم يو خادم وو کرکره ئې نوم وو او هغه په يو څيز باندې مشر مقرر کړے شو حالانکه د پيغمبر عليه السلام خادم هم دے په قتال کې هم دے په يو ځائی ورسره ګرځی هم او د پيغمبر عليه السلام په خدمت کې مصروفه هم دے نو د پيغمبر عليه السلام د اوخې نه سامان راکوزوی او په دغه تيم کې دا وفات شو نو صحابه کرام راجمع شو او وائی : هنيئا له بشهادة ، شهادت دې مبارک شه ، نو پيغمبر عليه السلام فرمائی : خاموش شئ تاسو ته څه پته ده په دۀ باندې اوس د دوه ځادرونو د وجې نه چه ده د غنيمت نه بې اجازته اغستی وو نو د هغې د وجې نه پدۀ باندې اوس اور بليږی ، نو يو صحابی راغلې او په لاس کې دوه تسمې د پيزار دی او پيغمبر عليه السلام ته وائی چه دا واخله ، نو پيغمبر عليه السلام فرمائي : شراک او شراکان من النار»، دغه شان حضرت ابو ذر رضي الله عنه ډير تقوی دار صحابی وو حضرت عثمان رضي الله عنه په خپل دور خلافت کې بل ځائی ته هم ليږلې وو ، او ده به دا خبره کوله چه زکات په بخيل سړی باندې راځي ځکه سخی سړے سره خو مال نۀ ټينګيږی نو زکاة په بخيلانو باندې راځي، او پيغمبر عليه السلام دا ډير خوښ وو ، په غزوه تبوک کې وائی : کن ابا ذر ، خدائی دې اوکړی چه ابو ذر وی ، نو ابو ذر يواځې روان وو ، نو پيغمبر عليه السلام اوفرمائيل : ابو ذر يواځې پيدا شويدے ، يواځې ګرځي او يواځې به وفات کيږی ، نو بيا ابو ذر په ځنګل کې يواځې اوسيدلو او چه کله وفات کيږی نو خپلې بی بی ته وائی : چه کله زه وفات شوم نو پدې لاره باندې به مجاهدين راځي نو هغوی ته به ووائی چه هغوی زما جنازه اوکړی ، نو ابو ذر رضي الله عنه وفات شو او بيا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه راغلې او هغه پرې جنازه اوکړه او ډير ئی اوژړل ، نو دې ابو ذر رضي الله عنه يو ځل د پيغمبر عليه السلام ته وائ: چه ماته هم څۀ مشری راکړه ؟ نو پيغمبر عليه السلام ورته اوفرمائيل : «**يَا أَبَا ذَرٍّ إِنَّكَ ضَعِيفٌ**

وَإِنَّهَا أَمَانَةٌ وَإِنَّهَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ خِزْيٌ وَنَدَامَةٌ إِلَّا مَنْ أَخَذَهَا بِحَقِّهَا وَأَدَّى الَّذِي عَلَيْهِ فِيهَا» [1] دې وجې نه کتابونه لیکی چه داسې سړے به امیر نهٔ جوړوې چه هغه ډیر کمزورې وی او بیا هغه د ځان سره هر وخت حسابونه کوی ، او ډیر انتهائی بهادر به هم نهٔ امیر کوې ، لکه براء بن عازب رضي الله عنه ډیر بهادر صحابی وو نو حضرت عمر رضي الله عنه به وئیل : چه دا د لښکر مه امیر کوئ ځکه فانها هلکة ، دا خو هلاکت دے ملګری به داسې ځائی باندې وراچوی چه ټول شهیدان کوی ، دغه شان بل ځائی کې راځی چه پیغمبر علیه السلام ورته فرمائی : «يَا أَبَا ذَرٍّ إِنِّي أَرَاكَ ضَعِيفًا وَإِنِّي أُحِبُّ لَكَ مَا أُحِبُّ لِنَفْسِي لَا تَأَمَّرَنَّ عَلَى اثْنَيْنِ وَلَا تَوَلَّيَنَّ مَالَ يَتِيمٍ» [2] خو دوی د یوسف علیه السلام د خبرے نه دلیل نیسی چه یوسف علیه السلام پخپله باندې اووئیل : ﴿ قَالَ ٱجۡعَلۡنِي عَلَىٰ خَزَآئِنِ ٱلۡأَرۡضِۖ إِنِّي حَفِيظٌ عَلِيمٞ ۝٥٥ ﴾[3] " ما د زمکې په خزانو باندې مقرر کړه ځکه چه زهٔ حفيظ او پوهه یم پدې باندې " نو داسې خلقو ته وئیل پکار دی چه یوسف علیه السلام خو پیغمبر وو او هغه معصوم وو او هر چه تهٔ یئ نو تهٔ خو معصوم نهٔ یئ ، نو یوسف علیه السلام خو معصوم وو او ټول مملکت د فاسقانو او فاجرانو په لاس کې وو او هغه نبي وو او د نبي په موجودیت کې بل خلفیه ناممکن وی ، او چه کوم خلق پدې وخت کې د کفارو د کرسئ د اړولو کوشش کوی په طریقه د جهاد باندې نو بیا صحیح ده ، بله خبره دا ده : چه زمونږه شریعت ځانته دے او د یوسف علیه السلام شریعت ځانته وو نو زمونږه په شریعت کې ترینه نهی راغلې ده ، نو شرائع من قبلنا زمونږه دپاره دلیل دی خو پدې شرط باندې چه زمونږه په شریعت کې ترینه نهی نهٔ وی راغلی او ددې کار نه زمونږه په شریعت کې نهی راغلې ده ، او د بعضو روایاتو نه معلومیږی چه بادشاه خو یوسف علیه السلام ته خو ئی مشری ورکوله نو یوسف علیه السلام اووئیل چه بس زما دپاره

---

[1] [ صحيح مسلم ، رقم : ٣٤٠٤ ] .

[2] [ صحيح مسلم ، رقم : ٣٤٠٥ ] .

[3] [ سورة يوسف : ٥٥ ] .

دا کار صحيح دے ځکه چه پدې باندې ماسره پوهه شته دے ، او په حديث کې راځي : «**مَنْ طَلَبَ قَضَاءَ الْمُسْلِمِينَ حَتَّى يَنَالَهُ ثُمَّ غَلَبَ عَدْلُهُ جَوْرَهُ فَلَهُ الْجَنَّةُ وَمَنْ غَلَبَ جَوْرُهُ عَدْلَهُ فَلَهُ النَّارِ**» [1] نو د يوسف عليه السلام په ځان باندې يقين وو چه ظلم په مابانديې نۀ غالب کيږى او په ما باندې به عدل غالب کيږى ځکه چه د وخت پيغمبر وو نو پدې وجه باندې يوسف عليه السلام مطالبه د حکومت کوله ، بله دا وه : چه يوسف عليه السلام د چا د لاندې زندګى نۀ تيروله ځکه يوسف عليه السلام ته پدغې کې مکمل حريت ميلاؤ شوے وو ، او په تاسو کې خو حريت نشته ځکه چه تاسو خو بيا د مرکز نه مجبوره شئ او وائي چه مونږه خو د مرکز نه مجبوره يو نظام نشو نافذ کولے ، او په يوسف عليه السلام باندې پابندى نۀ وه ځکه چه په بل قانون باندې ئې فيصله اوکړه لکه الله فرمائى : ﴿ مَا كَانَ لِيَأْخُذَ أَخَاهُ فِي دِينِ ٱلْمَلِكِ ﴾[2] نو د بادشاه په قانون باندې ئې فيصله نه کوله او د کنعان په قانون باندې ئې فيصله اوکړه ، نو زه تۀ نر شه او په بل قانون باندې فيصله اوکړه چه پته دې اولګى، نو تۀ ددې اهل نۀ ئې ځکه اهليت هله پکار دے چه تا سره خو موقعه د اهليت وى کنه .

**بل نقصان دا نتخاباتو او د جمهوريت** دا دے : چه د شهادت شرائط پکې نۀ وى برابر ، او دوى ورته ګواهى وائى ، نو په ګواهئ کې خو يوه خبره دا ده چه هغه سړے په تا باندې ګواه کيږى ممن ترضون من الشهداء ، نو هغه سړے به ګواهى کوى چه ستا خو خوښ وى او ستا په نيز باندې پاک وى ، دا رنګه په شهادت کې عدل شرط دے لکه الله فرمائى : ﴿ وَأَشْهِدُوا۟ ذَوَىْ عَدْلٍ مِّنكُمْ ﴾ الطلاق: ٢ ] . ﴿ إِلَّا مَن شَهِدَ بِٱلْحَقِّ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿٨٦﴾ ﴾ [3] نو شهادت به په حق باندې کوے بل شهادت به په علم باندې کوے، او حديث کې راځي : «**اذا علمت مثل**

---

1) [ سنن أبي داؤد ، رقم : ٣١٠٤ ] .

2) [ سورة يوسف : ٧٦ ] .

3) [ سورة الزخرف : ٨٦ ] .

**الشمس فاشهد والا فدع**» نو كه چرته تهٔ داسې علم درته پدغه خبره يا كار باندې لكه نمر په شان نو بيا ګواهي اوكړه او كه داسې علم درته نهٔ وي نو بيا ئې پرېږده "، دارنګه په شهادت كې ډېر شرائط دي «**لا تجوز شهادة بدوىٌ على صاحب قرية**» نو د باندېي واله شهادت په ښاري سړي باندې نهٔ قبليږي ، دا رنګه «**لاتجوز شهادة خائن ولا خائنة**» دغه شان په شهادت كې سړے او ښځه ندى برابر «**فرجل وامرأتان**» نو دوه ښځې د يو سړي برابر دي ، او تاسو خو يوه ښځه د يو سړي سره برابروئ د فاسق او د صحيح فرق پكې نهٔ كوئ ، «**ان اللعانين ليسو بشهداء ولاشفعاء يوم القيامة**» دا ګواهان نشي جوړيدلې .

**بل نقصان** : چه دوى مساوات كوى په انتخاباتو كې او مساوات غير شرعى كوى او دا خبره مخكې هم تيره شوے وه د آيتونو د قرآن كريم نه دا خبره واضحه شوے وه ، او دا مساوات غير شرعيه ځكه دوى جوړوى : ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ كَٱلۡأَنۡعَٰمِ بَلۡ هُمۡ أَضَلُّ ﴾[1] حالانكه پدوى كې يو كس هم د صحيح مساوات قابل ندے ، نو دا قسمه مساوات نارواه او ناجائز دے .

**بل نقصان** : فتنه د نساء ده په انتخاباتو كې ، يعنى په انتخاباتو كې ښځو ته موقعه وركول چه ښځې دې په انتخاباتو كې مخكې راشي په جمهوريت كې بل فساد هغه دا دے ، نو ښځې مقدم كول او د ښځې راتګ په حكومت كې كول ، حالانكه په حديث كې صراحتا راځي چه كله د فارس سره جنګ وو او بيا پكې يو كس راغلې او وې ويل : چه د هغوى بادشاه مړ شو او د هغې په ځائې باندې ئې نائبه د هغه لور قائمه كړه نو پيغمبر عليه السلام اوفرمائيل : «**لَنۡ يُفۡلِحَ قَوۡمٌ وَلَّوۡا أَمۡرَهُمۡ امۡرَأَةً**» [2]" هغه قوم هيڅ چرته نشي كاميابيدى چه هغوى خپل امارت يوے ښځې ته حواله كړے وى " نو د هغوئ په كاميابئ كې پيغمبر عليه السلام منع اوفرمائيله ، او دوى وائې چه مونږه به كاميابى حاصله وو ، او نبى كريم عليه السلام ورته

---

[1] [ سورة الأعراف : ١٧٩ ] .

[2] [ صحيح البخاري ، رقم : ٤٠٧٣ ] .

ناقصات العقل والدين وئيلي دی ، او دا امارت خو دپاره د اكمال د دين دے چه د الله جل جلاله دين كامل شي يوه شعبه ئې د عباداتو ده او يوه شعبه ئې د سياسياتو عواقبو وغيره ده نو پدې باندې كامل كيږی نو دا چه ښځې ناقص الدين ده نو دا به اكمال د دين څنګه راولی نو دا اكمال د دين نشي كولې نو ددې وجې نه دا د امارت لائقه نده ، پديكې تاسو " عورت كې سربراهی " رساله اوګورئ په هغې كې پوره دلائل شته دے .

بل پديكې حضور راځی د مجالسو د زور او د دروغو ته او پارلمان خو د درغو غټه اداره ده .

**بل نقصان** : پديكې حث الناس ، خلق پدې باندې راپوته كول چه خلق دې مجالسو ته راټول شي ، حالانكه د عباد الرحمن دا صفت ندے الله فرمائی : ﴿ وَٱلَّذِينَ لَا يَشْهَدُونَ ٱلزُّورَ وَإِذَا مَرُّواْ بِٱللَّغْوِ مَرُّواْ كِرَامًا ۝ ﴾[1] او چه په حقيقت كې عباد الرحمن نهٔ وی نو بيا داسې مجالس الزور ته ښځې هم حاضريږی او خلق ورته هم راغواړی ، او د مسلمان سړی دا كار نوی چه ديته حاضر شي ﴿ وَإِذَا سَمِعُواْ ٱللَّغْوَ أَعْرَضُواْ عَنْهُ وَقَالُواْ لَنَآ أَعْمَٰلُنَا وَلَكُمْ أَعْمَٰلُكُمْ سَلَٰمٌ عَلَيْكُمْ لَا نَبْتَغِي ٱلْجَٰهِلِينَ ۝ ﴾[2] دغه شان الله فرمائی : ﴿ فَلَا تَقْعُدُواْ مَعَهُمْ ﴾ [3] دغه شان بل ځائی كې فرمائی : ﴿ وَلَا تَعْدُ عَيْنَاكَ عَنْهُمْ تُرِيدُ زِينَةَ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ﴾[4] بل ځائی كې فرمائی : ﴿ وَلَا تُطِعْ مَنْ أَغْفَلْنَا قَلْبَهُۥ عَن ذِكْرِنَا وَٱتَّبَعَ هَوَىٰهُ وَكَانَ أَمْرُهُۥ

---

1) [ سورة الفرقان : ٧٢ ] .

2) [ سورة القصص : ٥٥ ] .

3) [ سورة النساء : ١٤٠ ] .

4) [ سورة الكهف : ٢٨ ] .

فُرُطًا ﴿٢٨﴾ ﴾[1]

**بل نقصان او فساد** : تعاون على الأثم والعدوان دے نو دوی یو بل په ګناه باندې نۀ خفه کوی حالانکه دوی وائی چه مونږ پارلمان ته ځو او هلته د حق خبره کوو او د حق خبرے خو درې حیثیته دی لکه حدیث کې راځی : « **مَنْ رَأَى مِنْكُمْ مُنْكَرًا فَلْيُغَيِّرْهُ بِيَدِهِ فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِلِسَانِهِ فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِقَلْبِهِ وَذَلِكَ أَضْعَفُ الْإِيمَانِ** »[2]نو دا درې واړه دوی چرته هم نۀ کوی ، او هر چه د خولې دعوت دے نو هغه دعوت ابراهیمی دی لکه الله قرآن کریم کې فرمائی : چه ابراهیم علیه السلام قوم ته اووئیل : ﴿كَفَرْنَا بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ ٱلْعَدَٰوَةُ وَٱلْبَغْضَآءُ أَبَدًا ﴾[3] نو هغۀ ته به د خپلې غلطۍ احساس کوے ، لکه څرنګه چه ابراهیم علیه السلام خپل پلار ته وائی : ﴿إِنِّيٓ أَرَىٰكَ وَقَوْمَكَ فِي ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴿٧٤﴾ ﴾[4]دغه شان الله فرمائي : ﴿أَتَقْتُلُونَ رَجُلًا أَن يَقُولَ رَبِّيَ ٱللَّهُ ﴾[5] نو په مصلحت فی الدعوت کې دا خبره پوره ذکر شویده ، نو تدرج فی الانکار به کوے ، نو که ته تدرج فی الانکار اوکړے نو بیا دې په پارلمان کې یو منټ هم نۀ پرېږدی نو دوی بیا په خپله عهده باندې ویرېږی ، حالانکه پیغمبر علیه السلام خپلو ملګرو ته دومره تشجیع او بهادری ورکړیده چه د عهدې نۀ بلکه د خپل ځان پرواه هم مۀ کوه ، لکه په امر بالمعروف او نهی عن المنکر کې به د فقهې یو عبارت رانقل کوو چه چرته کافران ډیر زیات وو نو بیا په دغه ځائی کې تا ته اختیار دے ، او که چرته تاسره اسباب نۀ وو چه نه پکې قتل کولے شی ، نه پکې جرح کولې شی ، نه په دوشمن

---

1) [ سورة الكهف : ٢٨ ] .

2) [ صحيح مسلم ، رقم : ٧٠ ] .

3) [ سورة الممتحنة : ٤ ] .

4) [ سورة الأنعام : ٧٤ ] .

5) [ سورة الغافر : ٢٨ ] .

باندې رعب غورځولې شي ، او نه مسلمانانو ته تشجيع او بهادري ورکولے شي نو که دا څلور شرائط نۀ وی نو بيا فدائی مۀ کوه ځکه دغه ځائی بيا فدائی صحيح نده خو که ستا په ګمان کې هم پدې څلورو کې په يو شی باندې صرف ګمان قدرې راغلې نو بيا ته فدائی کولے شی او که پدې څلورو کې يو هم نۀ وی نو بيا فدائی نشی کولے ، او بيا شامی ملا وائی : چه دا خو د کفارو سره په جنګ خبره ده او پاتې شوه د امر بالمعروف او نهی عن المنكر خبره نو که ستا يقين هم دا وی چه که زۀ دا خبره اوکړم نو دوی به ما قتل کړی او هيڅ فائده به ونشی نو بيا به هم ته امر بالمعروف او نهی عن المنكر کوے او که نشی کولے نو هغه بيا بيله خبره ده ، نو اسلام وائی : سيد الشهداء حمزة بن عبد المطلب او ورپسې رجل قام عند سلطان جائر فنهاه فقتله ، نو يو خو دې پارلمان شرکی لاره ده پدې لاره دې ورته تلل نۀ منم ، که چرته واقعةً دغه خلق آزادی ورکوی نو بيا صحيح ده خو داشرط ئې پکې ولې ايخودې دے چه ته به ديته ځې نو بيا به خبره کوے نو غريب سړے خو بيا خبره نشی کولې او بيا چه ته هلته خبره کوے نو هغه هم ګول مول کوے صفا خبره نۀ کوے نو که صفا خبره دې اوکړه چه تۀ کافر يئ نو يا خو به تۀ نۀ يئ او يا به دغه نۀ وی .

**بل نقصان** : خيالی وعدے دی ، خيالی وعدے دا دی : ۱/ دوی وائی : حماية الدعوة الاسلاميه ، نو دوی به وائی چه مونږه خو د مدارس دفاع کوو ، ۲/ حماية حقوق الانسان ، د انسانی حقوق حمايت کوو او د عوامو مال نه دفاع کوو ځکه چه بادشاهان دا مال بيا غلط استعمالوی ، لکه دوی مخکې ددې بادشاهانو خرچې دومره دومره وے خو چه کله مونږه لاړو نو بيا ددې بادشاهانو خرچې دومره دومره شوے نو مونږه د مسلمانانو د بيت المال او خزانې دفاع اوکړه ، نو مونږه ورته وايو : چه تاسو د انسانی حقوقو حفاظت اوکړو او که تاسو هغه حقوق اوخوړل ؟ تاسو خو هم د هغوی سره يوځائی خوراکونه اوکړل ؟ او تاسو چه په دې جلسو او جلوسونو کې دا خرچې کوئ او ومو کړے نو دا مال او فنډ تاسو ته د کوم ځائی نه ميلاؤ شوے ؟ او د مسلمان حق چرته لاړو انسانی حقوق په خپل ځائی باندې پريږده هغه خو تاسو د نورو خلقو د حقوقو سره مساوی کړل نو د اسلام حق خو دا وو چه پدې ملک کې

دې ټیوی بند کړے شی ، پدې ملک کې دې دا غلطې چینلې ختمی شی ، د اسلام حق دا وو چه پدې ملک کې د کلبونو په ځائې باندې مدارس جوړې شی ، مدارس د جهاد دې جوړې شی ، نو تاسو چه په منبر باندې کینئ نو وائی چه په فلانی ځائی کې مو دومره د جینکو سکولونه جوړ کړی او دومره نو دا ستاسو د دعوة اسلامی هغه تحفظ دے چه تاسو ئې چلوئ؟

**دریمه خبره** : دوی وائی چه مونږه اقامت د شریعت کوو ، نو مونږ وایو : چه اول شریعت چرته دے ؟ بیا تاسو د شریعت دپاره څۀ پریخودل ؟ او د شریعت مو څۀ حمایت اوکړو ؟ د شریعت مو کومه حصه قائمه کړه ؟ دریمه حصه ، که دویمه او که نیمه ؟ نو که دوی پدې کې یوه حصه هم یاده کړی نو بیا ورته وایه : « أفتؤمنون ببعض الکتاب و تکفرون ببعض» دا په کوم ځائی کې راغلی دی چه تاسو په شریعت کې تجزی راولئ ؟ که په پیغمبر علیه السلام باندې یو آیت راغلې نو هغه ئې پوره عملی کړے دے بیا پکې دا نشته چه دا نۀ عملی کوو ځکه چه دلته کې مصلحت دے او حکمت دے ، ددې تفصیلی بیان مخکې تیر شویدے .

**او څلورمه خبره** : چه مونږه دشمنانو ته ځائی نۀ پریږدو په پارلمان کې ، نو ددې خبرے مخکې هم جواب شوے وو خو خلاصه ئې دا ده : چه تاسو دې پارلمان ته ورځئ نو اول خو ستاسو نه دا پوښتنه کوو : چه دا کوم مصلحت دے چه تاسو وائی چه مونږه د اسلام دوشمن ته ځائی نۀ پریږدو؟ بیا خو سنیما ته ورځه ځکه چه دوشمنانو ته ځائی پاتې نشی فاسقان فاجران پدې کورسئ باندې کینی نو دوی دغه خبرې کوي ، او بیا تاسو څۀ اوکړل تۀ خو هم هلته ورسره سیکولر شوے ، او که بیا یو مسلمان راپاځی چه داسې کار دې اوشی چه هغه داسی اسلامی نظام خبره نو تۀ هغۀ پسې ورځې چه خاموشی اختیار کړه ددې خبرے وخت اوس ندے ، نو دا وخت کوم ځائی کې متعین راغلے چه پدې وخت کې به دا خبره کوے او پدې وخت کې به ئې نۀ کوے ، چه ته ووائی : چه ددې وخت ندے ځکه حالات سازګار ندی او دلته نورې ډیرې تیارې دي دا اول ختمول غاړی نو ته ورته اوائیه چه دا خبره د کوم ځائی نه کوے چه اسلام سازګار حالات غواړی نو پیغمبر علیه السلام د **600** کاله تیارې په کوم حالات باندې ختمې کړی خو چه کوم آیت به راتلو په هغه به عمل وو مکې والاؤ باندې

اول حجت قائم کړو او چه کله د جهاد آیتونه راغلل او توره په استعمال شوه نو څنګه پکې حالات برابر شول ، اسلام پکې راغي کنه ، نو دا خبرې چه دوي کوي چه حالات سازګار ندی دا به دوی تر قیامته پورے کوي خو اصلی خبره دا ده چه دوی قربانی نشی ورکولې د خپل خواهشاتو نه مجبوره دي ، نو دا خبره د دوی غلطه ده .

الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَعَدَ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مِنكُمۡ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ لَيَسۡتَخۡلِفَنَّهُمۡ فِي ٱلۡأَرۡضِ كَمَا ٱسۡتَخۡلَفَ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِهِمۡ وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمۡ دِينَهُمُ ٱلَّذِي ٱرۡتَضَىٰ لَهُمۡ ﴾[1] او دلته ئی د دینهم په ځائی باندې اسلام ونهٔ وئیلو ځکه بعضی خلق به بیا د اسلام په نوم باندې دین راوباسی ډیموکریټک اسلام به راوباسی نو الله رب العالمین عالم الغیب ذات دے چه بیا خو به دوی د اسلام په نوم هم یو دین راوباسی او بیا به هغې ته اسلام وائی او هغه به نافذ کوی چه یره بس اوس خو د اسلام شو نو الله ورته اووئیل ﴿ ٱلَّذِي ٱرۡتَضَىٰ لَهُمۡ ﴾ هغه دین چه الله ستاسو دپاره خوښ کړے دے ، هغه دین ملت ابراهیمی دے د کفر سره په هغې کې دوشمنی ده د کفر سره پکې مداهنت نشته دے هغه د خلقو په خوښه ندے که خلق ئی خوښوی او که نهٔ ئی خوښوی نو هغه دین به نافذ کیږی ، او بیا الله فرمائی : ﴿ وَلَيُبَدِّلَنَّهُم مِّنۢ بَعۡدِ خَوۡفِهِمۡ أَمۡنًا ﴾ نو الله به درنه خوف ختم کړی او امن به راشی ، دوی نن چغه وهی کنه چه امن راولو حالانکه الله تعالیٰ فرمائی چه امن په اسلامی نظام سره راځی خو دوی چرته اسلام راولی د دوی مثال خو داسی دے لکه یو لوخې ګنده شی او ته ورپسې یو ګنده څیز راواخلې او په هغه صفائی راولے نو چرته صفاء کیږي بلکه صفاء څیز به ورته را اخلے نو اسلام نظام صفاء نظام دے راشه پدې باندې دغه نورو نظامونو ګند صفاء کړه نو امن به راشي او شرط پکې دا دے : ﴿ يَعۡبُدُونَنِي لَا يُشۡرِكُونَ بِي شَيۡـٔٗا ﴾ یعنی زما عبادت به کوئ

[1] [ سورة النور : ٥٥ ] .

په هر قسمه عبادت کې دا نۀ چه مونځ ، روژه ، زکوٰة ، ذکر اذکار د الله کوی او په قانون کې بیا د بل چا قانون اومنئ ، الله فرمائی : ﴿ إِن تَنصُرُواْ ٱللَّهَ يَنصُرۡكُمۡ ﴾[1] که تاسو د الله د دین امداد اوکړو نو الله به ستاسو امداد اوکړی او ستاسو قدمونه به قائم کړی ، او که چرته دوی ددې مدد نۀ کوی ، او ځان دپاره د امصلحت جوړ کړی چه زۀ پارلمان کې کینم نو بیا الله دا وعده کړیده چه په خپله لار به «**ليبلغن هذا الامر**» الله به دا دین رسوی ، څنګه به ئی رسوی ؟ «**ما بلغ هذا الليل والنهار**» څنګه چه شپه او ورځ د دنیا هر ګوټ ته رسی دغه شان به الله پاک دا دین هم رسوی «**ولايترک الله**» او الله به نۀ پریږدی «**بيت مدر**» کور د خاورو « ولا وبر » او نۀ خیمه «**الا ادخله الله هذا الدين**» مګر الله به ورته دا دین ورداخلوی ، خو تاسو به پکې چاته مداهنت نۀ کوئ ، نو دلته په حدیث کې نهی د مداهنت نه راغله : «**بعز عزيز وذل ذليل**» که عزتمند سړے وی نو هغه پرې عزتمند کیږی او که ذلیله سړے وی نو هغه پرې ذلیله کیږی تاسو به پکې مداهنت نۀ کوئ چه ذلیله سړی سره دین مطابق کړئ دا کار به نۀ کوئ نو د مداهنت نه منع راغله ، «**بعز يعز الله به الاسلام**» داسې عزت به وی چه الله به پرې اسلام ته عزت ورکوی ، «**وذل يذل به الكفر**» او داسې ذلت به وی چه الله به پرې کفر ذلیله کړی ، نو داسې عزت او ذلت به الله ورکوی نو دهغې دپاره تاسو د ذلت لارې مۀ اختیاروئ چه پدې لاره به زۀ اسلام راولم ، او بل کار به دوی دا کوی ، چه معاهدې به کوی ، بیا وائی : انتخابات به کیږی او بیا به مختلف اتحادونه کیږی اتحاد مع الکفر به کیږی یعنی مختلف معاهد او مواثیق به کیږی ، او دا د شریعت نه خلاف معاهدې به شروع وی ، او دا آیت خو مونږه بار بار اووئیلو چه ابراهیم علیه السلام ولې په دین باندې معاهده نۀ کوله ، پیغمبر علیه السلام ولې داسې معاهده نۀ کوله چه ستاسو په کفری ممالکو کې به زمونږه اسلامی خلق وی او هغه به تاسو غلامان نۀ جوړوئ او زمونږ په اسلامی ممالکو کې به ستاسو

[1] [ سورة محمد : ۷ ] .

كفرى خلق وى او هغه به مونږه غلامان نۀ جوړوو ، نو داسى معاهدې پيغمبر عليه السلام ندى كړى او دوى دا قسمه معاهدې شروع كړى دى ، روستو به بيا د اقوامه متحده هغه معاهدې ذكر كوم چه دوى وائى چه مذهب باندې به جنګ نوى مطلب دا چه جهاد به نوى روستو به راشى ، نو خبره دا ده چه د پيغمبر عليه السلام منهج مۀ پريږدئ ، نو زمونږه منهج بيان شو په آيتونو او احاديثو كې چه منهج الدين بناء على الحق لا على الكثرة ، نو دا د جمهوريت او د شخص پرستئ هغه بيان وو نو د دين منهج په حق باندې پروت دے پديكې كثرت لره هيڅ اعتبار نشته ، او جمهوريت خو په اكثريت پرستئ پسې روان دے د خلقو د خواهش تابع روان دے ، نو چه كوم نظام او ددې تاريخ بيان شو نو دغه نظام او تاريخ د كفارو وو .

اوس راځى چه تاريخ د اسلام اوګورو ځكه چه زمونږه دين خو دين اسلام دے او الله زمونږه پدې دين باندې راضى دے چه : ﴿ وَرَضِيتُ لَكُمُ ٱلۡإِسۡلَٰمَ دِينًا ﴾[1] نو چه كله پدې دين باندې راضى دے نو ددې دين تاريخ مونږه لره كتل پكار دى چه پدې دين كې كوم نظام چليدلو ، نو دغه نظام خو اسلامى نظام دے سيدنا حضرت ابوبكر صديق رضى الله عنه دكثرت نه خلاف نۀ وو كړے ؟ چه ډيرو صحابه كرامو ورته اووئيل چه جنګ مۀ كوه خو هغۀ جنګ كولو ، دغه شان د پيغمبر عليه السلام د غزوه اُحد واقعه تاسو اوګورئ چه پيغمبر عليه السلام د اُحد په جنګ كې د كثرت نه مخالفت اوكړو ، د كثرت رائى پدې باندې وه چه په مدينه منوره كې دې جنګ اوكړې شى ، او د لږو كسانو رائى پدې باندې وه چه بهر ته د جنګ دپاره وځوو ، نو پيغمبر عليه السلام بهر ته لاړو او هلته ئې دمشركانو سره جنګ اوكړو، په صلح حديبيه كې اكثر صحابه كرام مخالف وو چه كله پيغمبر عليه السلام اووئيل چه صلح كوو نو اكثرو صحابه ؤ اووئيل چه يره صلح ورسره ونۀ شى بلكه جنګ ورسره اوشى خو لكن پيغمبر عليه السلام صلح اوكړه ، نو پيغمبر عليه السلام په خپل منهج كې كثرت ته ندى كتلى ، او په كثرت كې بيا دا نظام چه تاسو اوكتلو نو پديكې د اسلامى نظام څۀ وو؟

---

1) [ سورة المائدة : ٣ ] .

چه دا څومره جزيات او کليات بيان شول آيا پدې کې يو جز د اسلام وو ؟ نو چه نشته دې نو بيا خاموش ولې يئ ؟ وجه دا ده : چه نن صبا خلق د نفی او د اثبات دعوت نهٔ چلوی د لا إلٰه إلا الله دعوت په حقيقت کې ندے روان ځکه د لا إلٰه الا الله دعوت په حقيقت کې بناء دے په نفی او اثبات باندې ، او نفی او اثبات نن صبا خلق نهٔ کوی ، بلکه خلق وائی : چه تهٔ هم ښهٔ وائی او زهٔ هم ښهٔ وايم ، ځکه چه ملکی فسادات پيدا کيږی خو دا په اصل کې ملکی جهالات دی ، نو دوی لا إلٰه نه وائي بلکه الا الله وائی چه بس ايمان راوړئ نور چه هر څه وی نو خير دے ، نهٔ نهٔ پوره اسلامی دعوت پکار دے نو مونږه اکثرو ملګرو ته وايو چه دا دعوت که د دورې په شکل نشی نشر کولې نو بس دومره خو اوکړئ چه د يو ملګری سره کينئ او دا حقيقت ورته وښائی او اسلامی نظريه ورته ښکاره کې .

نو زمونږ مقصد د خلقو سره جګړے کول ندی بلکه حقيقی منهج إلٰهی او نبوی منهج خلقو ته وړاندې شی ، او نبوی طريقه خلقو ته وړاندې کړے شی ، ځکه که تاته نبوی طريقه نهٔ وی ايزده نو خلقو ته به بيا څهٔ وړاندې کوے ؟ ددې وجه نه مونږه دغه دورے کوو چه خلقو ته صحيح منهج ښکاره کوو او که تاسو دې جمهوری خلقو سره کينئ او دوی درته هغه خپل دلائل چه ځان دپاره ئې جوړ کړی دي هغه درته بيان کړي نو ګوره بيا به تاسو په شبهاتو کې پريوځئ دا نن چه دا دومره خلق پدې جمهوری نظام کې ورداخل دي دا ددې خلقو هغه غلط شبهات وروړاندې کړی کنه او يا تاته دوی اوائی چه راشه ته هم خپل منهج ذکر کړه او زه ئې هم ذکر کوم نو هسې نهٔ چه بيا تاته منهج ذکر کولو طريقه نوی ياده ، نو مسلمان لره پکار ده چه په هر اعتبار سره د دده نظريه جوړه وی ، د خپل منهج او د دعوت بيان خو بيا کولې شی ، که بالفرض تاسو نظام ته ورسيږئ او بهر نه يو وفد راشی او تاته ووائی چه تاسو د نظام چلولو يا تاسو څه طريقه او منهج دے او يا درسره هغه مناظره شروع کړی دا حالات خو پکې راځی نو دا نهٔ چه تاسو صرف پدې دوره باندې اکتفاء وکړئ نهٔ پوره مطالعه کول غواړی نو که صبا چرته نظام راشی نو بيا خو نظام چلول غواړی او تاسو ته د نظام د چلولو چل نوی ياد ، او يا يو قوم په تاسو باندې پريشر راولی او تاسو د هغې نه متأثره شئ ، نو بيا به

تاسو بله لار اختيارو؟ ؟ بعضى خلق اوس هم په جهاد کې وى خو د قومى پريشر د وجې نه بعضى حکمونه نشى نافذ کولے دا خو عجيبه خبره ده ، نو بيا تا د ټوپک او توره د څۀ دپاره راغستې ده راپاڅه او د قوميت دا بوت مات کړه او دا پريشر ختم کړه نو پدې لاره کې دا څلور خبرے رکاوټ دى ، شخصيت پرستى زمونږه په لاره کې رکاوټ وه ، قوم پرستى زمونږه په لاره کې رکاوټ وه ، مصلحت پسندى زمونږه په لاره کې رکاوټ وه ، اکثريت پرستى زمونږه په لاره کې رکاوټ وه ، نو دا څلور پاټکونه د حق په لاره کې مخې ته راځي ، يا دا څلور لارې د حق د لارې سره جوختې لګيدلى دى کچه لارے دى ، او د حق لاره پخه ده هسې نۀ چه دهوکه شى پدې کچه لارو کې تاته بعضى ځايونه ښکاره شى او ورته راتاؤ نشى دې طرف ته ، او نۀ پدې لارو باندې حق ته رسيدلې شى ، بلکه حق طرف ته دا يوه لاره تلې ده ، که پدې نورو لارو باندې لاړ شى نو صحيح ده چه د حق خواته به لګ نزدې شى خو حق باندې تللې نشى او چه تلې نشى نو بيا به حق نشى تنفيذ کولے د حق نفاذ به نشى کولې نو بيا به وائى چه مجبورى ده ځکه يو طرف ته به مجبورى د قوم پرستئ ولاړه وى ، بل طرف ته به مجبورى د شخصيت پرستئ ولاړه وى ، نو دې ټولو بلاګانو به بيا تاته خولې کولاوې نيولى وى او وائى که تنفيذ دې اوکړو نو اکثريت د بهرنيو ملکونو به په تا باندې پريشر راولى نو بيا به ته د اکثريت نه متأثره شى او بيا به مغلوبه شى ، او که قوم درپسې ځائى وليدلو نو بيا به درته قوم راپاڅيږى درته وائي به که داسې کار دې اوکړو نو پدې لاره به دې بند کړو ، نو دا دقوم پرستئ لاره به درته پاټک واچوى نو بيا به شريعت پوره نشى نافذ کولے ، خه که د مصلحت په لاره باندې روان شوے نو بيا به دې په هره لاره کې مصلحت وى ، او که د شخصيت په لاره باندې لاړے نو بيا به درته په ذهن کې شخصيات مخې ته راځي ، نو لهذا حق ته چه کوم روډ راغلې دے نو په هغه روډ باندې ورته راشئ په غلطو لارو باندې مۀ راځئ ، او کوم پاټکونه چه درته پدې لاره کې راځي نو هغه پاټکونه به ماتوے نو د حق په لاره کې پاټک مۀ پريږدئ هغه ختم کړئ .

نو دا مخکې چه کوم مقاصد مونږه بيان کړل نو دا ددې دپاره مونږه بيانوو چه د ټول

رکاوټونه لرې کوو او جمهوريت بيا خصوصا دا غټه بلا ده نو زمونږ مخالفت ددې سره دے چه د جمهوريت پاټک مات کړو ، نو که تاته څوک ووائی : چه ستا د جهاد هدف څۀ شی دے ؟ نو ته به ورته په جواب کې ووائی : چه د اسلام تنفيذ کول ، او د جمهوريت بيخ اوباسل ، ځکه چه د اسلام تنفيذ کول په الله باندې ايمان راوړل دی ، او جمهوريت بيخ اوباسل دا كفر بالطاغوت دے د لاإلٰه إلا الله دعوت دغه دے ، خو چونکه نن صبا باطل نظام جمهوريت دے نو ځکه دا وايو نو که هغه هر يو انسانانو جوړ کړے قانون وی هغه ختمول او د الله قانون په مخ د زمکې باندې قائم کول نو ددې دپاره مونږه راپاسيدلی يو او عملی کوشش کوو ددې نورو خلقو پشان نه چه په خلو نور څه وائی او عمل ئې بل څه دے دوی دا خبره کوی کنه چه مونږه صرف اسلام منو او باقی دينونه نۀ منو او حال دا چه په جمهوريت کې ورداخل دے سيکولر نظام کې شامل او بيا د دوی خپل خپل منشورونه دی هغه منشورونه ئی اوګورئ نو د اسلام خلاف دی ، څوک به وائی : انسان دوستی ، نو دا انسان دوستی خو اسلام نۀ منی ، بلکه اسلام وائی اسلام او مسلمان دوستی : الحب فی الله والبغض فی الله ، دوی به وائی: ﴿ لَّا يَنْهَىٰكُمُ ٱللَّهُ عَنِ ٱلَّذِينَ لَمْ يُقَـٰتِلُوكُمْ فِى ٱلدِّينِ وَلَمْ يُخْرِجُوكُم مِّن دِيَـٰرِكُمْ أَن تَبَرُّوهُمْ وَتُقْسِطُوٓا۟ إِلَيْهِمْ ﴾[1] نو مونږ وايو : هغه عدل دے ، احسان دے ، هغه دا عدل دے چه هغه تا سره جنګ نه کوی معاهده ئی درسره کړے ده نو تۀ ورسره جنګ مۀ کوه معاهده مۀ ماتوه غدر مه کوه ، که بالفرض معاهده ماتوی نو بيا ورته اعلان اوکړه چه ما وعده ماته کړه ، دارنګه احسان ورسره کوه ، نو احسان کول پديکې مونږه منع نده کړے ، بلکه مونږه وايو : چه په ذمی مسلمانانو باندې څومره احسانات اسلام کوی ، خو مونږه وايو : چه دوستی په زړه کيږی دا لفظ دې خطرناک استعمال کړے ، او دوی به وائی : چه د انسان دوستی نه زمونږه مراد اسلام دوستی ده ، نو مونږه وايو : چه پيغمبر عليه السلام د كفر سره په الفاظو کې هم مخالفت کړے دے ، لکه د عشاء نوم عتمه وو لکه په احاديثو کې چه راځی خو پيغمبر عليه السلام

---

[1] [ سورة الممتحنة : ٨ ] .

وفرمائيل : چه تاسو ورته عتمه مهٔ وائی ، ځکه چه عتمه ورته جاهليت والا وائی تاسو ورته عشاء وائی ، د مديني نوم اصل کې يثرب وو نو هغه ئی بدل کړو ، نو ګوره اسلام نوم بدلوی چه اشتباه د شرک پاتی نشی ، لکه جلالين مولا نه يوه لفظی غلطی چرته شوی چه دا خبره ئی کړيده : چه نعوذ بالله د آدم عليه السلام نه شرک فی التسميه شوے وو چه خپل بچی ته ئی عبد الحارث نوم کيخودلو وائی چه دا د شيطان نوم وو ، نو ځومره علماء پرې ردونه کوی چه دا د جلالين مولا نه غلطی شويده اسرائيلی روايت دی دا مونږه نهٔ منو ، او په هغه آيات کې تقريبا نهه قسمه توجيهات دی او دا ردونه پرې ځکه کوی چه شرک فی التسميه رانشی ، او ته به داسې شرکی الفاظ ذکر کوے او بيا به وائی : چه نه کنه زما مراد ترينه دا ندے ، نو ته به صبا کلمة الکفر ووائی او بيا به وائی چه زما مراد ترينه دا نهٔ وو ، نو بيا به مونږه اعتقاد ته نهٔ ګورو لکه مخکې دا مسائل مونږه ذکر کړی دی ډارک به دربانديې فتوه لګيدلی وی مونږ به بيا ستا مرادونو ګرځو ؟ ټول امت دې تباهې طرفته روان کړے دے او ته بيا وائی چه زما دغه مراد نوو .

**دغه شان وائی** : چه معاشی مساوات دا د دوی آئين دے ، نو اسلام معاشی مساوت چرته هم نهٔ منی ، اسلام وائی : ﴿ يَبۡسُطُ ٱلرِّزۡقَ لِمَن يَشَآءُ ﴾[1] نو دا خو د روسيانو کار وو چه په سکول کې به ئی ماشومان راجمع کړل نو يو لره به ئی لس مالټې ورکړے او بل لره به ئی يوه مالټه ورکړه او بل لره به ئی پنځه ورکړے او بل لره به ئی درې ورکړے او د هغې نه پس راغلل نو بيا ئی ټولو لره دوه دوه ورکړے ، نو بيا به ئی ورته ويل : چه دا اول تقسم خهٔ وو که دا دويم تقسيم ؟ نو ټولو به ويل : چه دا دويم تقسم صحيح دے ، او بيا به ئی ورته اووئيل : چه دا اول تقسيم د الله دے او دا دويم تقسيم د کميونيزم دے ، نو دا معاشی مساوات خو د کميونيزم نظريه ده ،

[1] [ سورة الرعد : ٢٦ ] .

او الله فرمائي : ﴿ يَبْسُطُ ٱلرِّزْقَ لِمَن يَشَآءُ وَيَقْدِرُ ﴾[1] نو پديکې دې امتحان اخلی دا غريب الله پيجنی که دهٔ له مې مال ورکړو نو دا غټې وران دے ، ځکه خو الله فرمائي : ﴿ وَلَوْ بَسَطَ ٱللَّهُ ٱلرِّزْقَ لِعِبَادِهِۦ لَبَغَوْاْ فِى ٱلْأَرْضِ ﴾[2] که چرته رزق مې درباندې فراخه کړو نو بغاوت به وکړئ په زمکه کې ، نو معاشی مساوات په اسلام کې نشته دے ، او دوی وائی : چه د معاشی مساوات نه زمونږه مراد دا ندے بلکه مزدور ته دې خپله مزدوری ميلاؤ شی په خپل وخت باندې نو بيا مساوات لفظ ولے يادوئ دا ته چه څه وائی نو ديته خو معاشرتی مساوات وائي ، نو دغه لفظ دې بدل کړه معاشرتی مساواتووايه ، او معاشرتی مساوات دا وو چه اسلام بلال او ابو بکر په يو صف کې ودرول ، او بلال ته ئې فوقيت ورکړو په ابو جهل او په ابو لهب باندې .

بل به راشی زما مقصد امن دے ، او دا د اقوام متحده واله امن مراد دے نو فاسق فاجر ته دې امن وی مشرک کافر ته دې امن وی دوی دغه امن غواړی ، او اسلام هم امن غواړی او هغې ته اسلامی امن وائی او هغه د حربی کافر په باره کې څهٔ وائی : چه د کافر سره قتال کوئ ، او تيارے ورته هم اسلام وائی چه تيارے ورته اوکړه ، قتال ورسره اوکړه .

او بل دوی وائی چه محبت کول غواړی او د دوی منشور دا دے چه د انسانيت سره محبت کول دی ، او اسلام وائی : چه د مسلمان سره محبت اوکړه لکه الله فرمائي د کافرو په باره کې: ﴿ لَا تَتَّخِذُواْ بِطَانَةً مِّن دُونِكُمْ لَا يَأْلُونَكُمْ خَبَالًا وَدُّواْ مَا عَنِتُّمْ قَدْ بَدَتِ ٱلْبَغْضَآءُ مِنْ أَفْوَٰهِهِمْ وَمَا تُخْفِى صُدُورُهُمْ أَكْبَرُ ﴾[3] بل به وائی چه بهائی چاره يعنی انسانان خپل مينځ کې رونړه رونړه دي او اسلام څه وائی چه « انما المؤمنون إخوة » صرف مسلمانان په خپل

---

[1] [ سورة الرعد : ٢٦ ] .

[2] [ سورة الشورى : ٢٧ ] .

[3] [ سورة آل عمران : ١١٨ ] .

مینځ کې رونړه رونړه دي .

**بل پکې دا وائی**: روڼي مکان ، چه مونږ به درلره خوراک او د کور بندوبس کوو ، دارنګه کېږي به درکوو او دا د دوی منشور دے نو دا دومره کم عقل خلق دي چه دوی مقصد او ضرورت کې فرق نشی کولے هلکه دا ضروریات دي اصل شی خو د مسلمان مقصد دے چه احکامات الهی باندې عمل کول دي .

نو بل به پکې دا قسمه منشور جوړ کړی ، او اسلام وائی : دا ستا ضروریات دی ، او پدیکې هغه مشهوره واقعه د هغه صحابی ده چه کوم هغه کافر ته ورغلې وو ..... او هغه حدیث مخکې ذکر کړے شو : تعس عبد الدینار ... الحدیث .

وبالله التوفیق .

❊❊❊❊❊❊

## د جمهوريت موضوع [ اومه حصه ]

په اسلامی ملکونو کې بعضی اسلام ته منسوب اسلامی تنظیمونو واله چه په اصل کې د مغربي سیاست او فلسفې نه متأثره دي دوی د اسلامی نظام د راوستلو دپاره ترتیب او طریقه د رسول الله ﷺ د سیرت نه نهٔ اخلی ځکه یو خو پدیکې جهاد او بدنی قربانی ده او دوی دیته تیار ندي ، بلکه غواړی چه مغربي لاره باندې اسلام راولی او ددې هدف دپاره ده نورو سیکولر او د بې دینه خلقو پشان جمهوری وسائل او جمهوری لاره اختیار کړی او انتخاباتو ته ودرېږی او د دین په نوم باندې خلقو نه ووټ اخلی نو دوی ددې دپاره یو څو بې بنیاده دلائل او شبهات پیش کوی نو پدې موضوع کې د دوی دغه غلطې شبهې او د هغې جوابونه ذکر کوو ، د الله رب العالمین په توفیق سره .

**اولنۍ شبه** : دوی د یوسف علیه السلام په باره کې وړاندې کوي ؟

چه یوسف علیه السلام په داسې حال کې چه د الله پیغمبر وو د مصر د کافر بادشاه سره ئې د هغه په حکومت کې د وزیر په حیثیت کار کړے دے ، نو ددې وجه نه اوس هم مسلمانان کولے شی چه په یو کافر نظام کې کار وکړی ؟

**جواب** : اول خو دوی په یوسف علیه السلام باندې تهمت لګوی چه نعوذ بالله یوسف علیه السلام په کفری حکومت کې کار کړے دے یا د کفری حکومت حصه پاتې شویده، نو ګوره دا قسمه خبرے خو په خپله یو قسم کفر دے او بیا په یو پیغمبر باندې دومره جرأت دوی کوی نو پدې خو اجماع ده چه پیغمبران ټول معصوم دي او تهٔ په پیغمبر باندې تهمت لګوے نو تا خو د اجماع نه هم خلاف وکړو او بیا خصوصاً هغه اجماع چه په هغه کې نص راغلے وی لکه حدیث کې راځی چه نبی کریم ﷺ فرمائی : چه مونږه معشره د انبیاء علیهم السلام هغه ټول معصوم دي .

خو بیا هم مونږ د دوی دا شبه د یو څو وجوهاتو نه باطله کوو :

**۱/ وجه** : دا اوسنی پارلمانونه شرکی او طاغوتی پارلمانونه دي ، دلیل ئې دا دے : چه پارلمان

ته د تشريع تحليل او تحريم حق ورکړے شويدے په داسې حال کې چه تشريع تحليل تحريم صرف او صرف د الله تعالیٰ حق دے ، خو په ډيموکراسۍ کې دغه حق په ولس ( عوامو ) پورے متعلق دے چه پارلمان ئې نمائندګی کونکے دے .

په اسلام کې د اعلیٰ حاکيمت او تشريع حق هيڅ شريک نۀ منی خو په ډيموکراسۍ کې نه يواځې دا چه حلال او حرام ګرځول د قوم د اکثريت حق دے ، بلکه په قطعی طريقې ئې الله تعالیٰ د دغه حق نه د دوی په ګمان محروم کړے دے ، او په دواړو کې د تشريع مصادر ښکاره ښکاره دي ، په اسلام کې د تشريع مصدر وحی الٰـهی او رسول دے ، خو په ډيموکراسۍ کې د تشريع مصدر د خلقو خواهشات او هواس دي ، او الله تعالیٰ ته صرف دين اسلام قبول دے لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ ٱلْإِسْلَٰمِ دِينًا فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِى ٱلْءَاخِرَةِ مِنَ ٱلْخَٰسِرِينَ ﴿٨٥﴾ ﴾[1]

**ترجمه:** " او هر څوک چه بې د اسلام نه بل دين غوره کړی هيڅ کله به ترې ونۀ منل شی ، او هغه به په آخرت کې د تاوانيانو نه وی " .

نو آيا څوک داسې تصور کولے شی چه يوسف عليه السلام به بې د اسلام نه بل دين منلے وی ؟ او يا به ئې د هغې قانون د احترام او پاسدارۍ حلف ( قسم ) پورته کړے وی ، لکه څنګه چه د اوسنۍ زمانې د پارلمانونو حال دے ؟ يوسف عليه السلام خو د قيد ( بندی توب ) او د بې وسۍ په وقت کې چه هيڅ واک او اختيار ئې نۀ وو او بيا ئې هم د شرک او مشرکينو نه د بې زارۍ اعلان کړے وو ، لکه چه قرآن کې الله تعالیٰ فرمائی :

﴿ إِنِّى تَرَكْتُ مِلَّةَ قَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَهُم بِٱلْءَاخِرَةِ هُمْ كَٰفِرُونَ ﴿٣٧﴾ وَٱتَّبَعْتُ مِلَّةَ ءَابَآءِىٓ إِبْرَٰهِيمَ وَإِسْحَٰقَ وَيَعْقُوبَ ۚ مَا كَانَ لَنَآ أَن نُّشْرِكَ بِٱللَّهِ مِن شَىْءٍ ﴾[2]

---

[1] [ سورة آل عمران : ٨٥ ] .

[2] [ سورة يوسف : ٣٧ ـ ٣٨ ] .

**ترجمه** : " بيشکه ما پريخودے دے دين د هغو خلقو چه ايمان نۀ راوړی په الله تعالیٰ باندې او حال دا چه دوی د آخرت نه هم انکاريان دي * او تابعداری مې کړيده د دين د خپلو پلارانو چه ابراهيم ، اسحاق او يعقوب ( عليهم السلام ) دي ندی مناسب مونږ سره چه برخدار ونيسو په الله پورے څه شی " .

**روسته يوسف عليه السلام د شرک او د توحيد د حقيقت بيان کوی او دا اعلان کوی چه حکم به يواځې د الله تعالیٰ چليږی او عبادت به هم يواځې د الله تعالیٰ کيږی ، لکه چه قرآن کريم کې الله سبحانه وتعالیٰ فرمائی :**

﴿ يَٰصَٰحِبَيِ ٱلسِّجۡنِ ءَأَرۡبَابٞ مُّتَفَرِّقُونَ خَيۡرٌ أَمِ ٱللَّهُ ٱلۡوَٰحِدُ ٱلۡقَهَّارُ ۝٣٩ مَا تَعۡبُدُونَ مِن دُونِهِۦٓ إِلَّآ أَسۡمَآءٗ سَمَّيۡتُمُوهَآ أَنتُمۡ وَءَابَآؤُكُم مَّآ أَنزَلَ ٱللَّهُ بِهَا مِن سُلۡطَٰنٍۚ إِنِ ٱلۡحُكۡمُ إِلَّا لِلَّهِۚ أَمَرَ أَلَّا تَعۡبُدُوٓاْ إِلَّآ إِيَّاهُۚ ذَٰلِكَ ٱلدِّينُ ٱلۡقَيِّمُ وَلَٰكِنَّ أَكۡثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعۡلَمُونَ ۝٤٠ ﴾ [1]

**ترجمه** : " اے زما د جيل ملګرو ! آيا متفرق خدايان غوره دي او که هغه الله چه يو دے؟ ډير قوی غالب دے * عبادت نه کوئ تاسو غير د الله تعالیٰ نه مګر د څو نومونو چه نومونه مو ايښی دي د هغو تاسو او ستاسو پلارانو ، نۀ دے راليږلے الله تعالیٰ په عبادت د هغوی باندې څه دليل او سند ، نۀ دے حکومت د هيچا مګر خاص د الله تعالیٰ دے ، امر ئې کړے دے پدې چه عبادت مۀ کوئ تاسو مګر يواځې د هغه ، دغه مضبوط دين دے خو زيات خلق نۀ پوهيږی " .

**نو آيا دا کيدے شی چه يوسف عليه السلام دې د بند او ضعف په وخت کې شرک په اوچت آواز رد کوی ، او حکومت يواځې د الله تعالیٰ ګڼړی او بيا دې د آزادئ او قوت په وخت کې دغه حقيقت پټوی ، او د بادشاه په دين دې فيصلے کوی ؟ په داسې حال کې چه الله تعالیٰ په زمکه کې تمکين ( قدرت ) هم ورکړيدے ؟**

---

[1] [ سورة يوسف : ٣٩ ـ ٤٠ ] .

**اوبله خبره چه ډیره مهمه ده او هغه دا ده** : چه په پارلمان او وزارت کې فرق شته دے ، پارلمان شریعت او قوانین جوړوی ، او وزارتونه ئې تنفیذوی او عملی کوی یئ ، نو هغه خلق چه په اوسنو پارلمانونو کې د الله تعالیٰ د دین په خلاف قوانین عملی کوی او منظوره وی ئې د هغوی جرم د هغو ډیر دے چه جوړ کړی قوانین عملی کوی ، نو په دې بنیاد د هغو خلقو استدلال چه د یوسف علیه السلام په عمل ئې پارلمان ته ورتللو دپاره کوی صحیح نه دے ، خو دا په دې معنی نهٔ ده چه پارلمان ته ورتګ دې ناجائز او وزارت قبلول دې جائز شی .

په اوسنو طاغوتی نظامونو کې چه د الله تعالیٰ د دین سره ئې د جګړے اعلان کړے دے ، د الله د دوستانو سره جنګیږی او د الله د دشمنانو سره دوستئ او اتحادونه کوی ، د وزارت قبلول هم حرام او د یوسف علیه السلام په عمل استدلال کول باطل دي ، ځکه چه په اوسنو حکومتونو کې وزیران هم د دغه بنیادی قانون د احترام حلف ( قسم ) پورته کوی چه د ډیموکراسئ د کفر په بنیاد جوړ شوے وي ، په داسې حال کې چه الله تعالیٰ په دغه قسم طاغوتی حکم باندې د کافر کیدلو امر کړے دے ، لکه الله تعالیٰ فرمائی :

﴿ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُوٓاْ إِلَى ٱلطَّٰغُوتِ وَقَدۡ أُمِرُوٓاْ أَن يَكۡفُرُواْ بِهِۦ ﴾[1]

**ترجمه** : غواړی چه خپله دعوی د فیصلې دپاره طاغوت ته یوسی په داسې حال کې چه دوی ته امر شوے دے چه په هغه طاغوت دې کافر شی .

اوس که څوک دا ګمان کوی چه یوسف علیه السلام به هم په دغه طریقې د طاغوت قانون د منلو او د احترام حَلف ( قسم ) پورته کړے وی په داسې حال کې چه الله تعالیٰ د هغه د اړخه په قرآن کریم کې بدی ذکر کړے وه ، او هغه ئې د خپلو مخلصینو بندګانو نه ګرځولے وو نو یقینا چه د دغه ګمان کونکې به د الله تعالیٰ په یو پیغمبر د درغو ویونکې ، د تهُولو نه بد کافر او د اسلام ملت نه وتلے انسان وي .

**۲/ وجه** : پهٔ اوسنی حکومتونو کې وزیران د وضعی کفری قوانینو منونکې او نافذونکی

---

[1] [ سورة النساء : ٦٠ ] .

دي په هر څه کې به د وضعي قوانينو پابند وی ، نو آيا يوسف عليه السلام باندې دا ګمان کيدلے شي چه – معاذ الله – هغه به د دغه قسمه وضعي کفری ظالمو او باطلو قوانينو پابند وو ؟ که څوک د هغه په هکله دغه شان ګمان کوی او بيا د هغه په فعل استدلال کوی نو په يقيني طريقې سره به هغه د الله په يو پيغمبر باندې به د کفری قوانينو د منلو الزام لګوی ، چه دا کار په خپله کفر دے ، لکه څنګه چه د جواب په اول کې اووئيلې شو، او د اسلام د دين نه وتل دي ځکه چه الله تعالیٰ انبياء د دې دپاره په خپلو امتونو ته رالیږلی دي چه هغوی ته د طاغوت د پرېښودلو او يواځې د الله د احکامو د منلو تعليم ورکړی ، الله تعالیٰ فرمائی :

﴿ وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولًا أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوتَ ﴾[1]

**ترجمه** : يقينا مونږه رالیږلے دے په هر امت کې رسول ددې دپاره چه خلقو ته ووائی : د الله تعالیٰ بندګئ اوکړئ ، او د طاغوت نه ځان اوساتئ .

او دغه پيغام د يوسف عليه السلام د رسالت هم وو نو دا څنګه کيدے شي چه يوسف عليه السلام ددې د پيغمبرئ سره سره د طاغوت قانون منلے وی او فيصلے دې ئې د هغې مطابق کړے وی ؟

**٣/ وجه** : د يوسف عليه السلام وزارت هغه ته د الله تعالیٰ د طرف نه په زمکه کې تمکين ( قدرت) وو هغه د الله تعالیٰ د حکم مطابق فيصله کوله ، ځکه هغه ته هيچا ضرر نشو رسولے ، نۀ چا لرې کولے شو او نۀ ئې په فيصله مجبورولے شو او هم دغه د « تمکين فی الأرض» معنی ده .

نو آيا د نن زمانې په طاغوتی حکومتونو کې هم وزيران هم دغه شان مطلق صلاحيتونه (مکمل اختيارات ) لري ؟ نو بيا دوی څنګه خپل ځان په يوسف عليه السلام قياس کوی ؟ د نن زمانې وزيران خو په ټوله معنی د طاغوتی قوانينو په بندونو داسې تړل شوی چه د اسلام د ګټې دپاره هيڅ حرکت ترې نه شي کولے ؟

---

[1] [ سورة النحل : ٣٦ ] .

يوسف عليه السلام د خپل کار په کولو کې د هر قسم پابندئ او څارنې نه آزاد وو ، ځکه کله چه يوسف عليه السلام بادشاه د جيل نه را وويستو او يوسف عليه السلام هغه ته خپلې خبرے اوکړې نو بادشاه ئې په خبرو دومره قانع شو چه هغه ته ئې ووئيل : ﴿ إِنَّكَ ٱلۡيَوۡمَ لَدَيۡنَا مَكِينٌ أَمِينٞ ۝٥٤ ﴾[1]

**ترجمه** : بې شکه ته نن ورځ زمونږ په نيز خاوند د مرتبې او امانتګيرئ يئ .

مفسرين ليکې : چه ددې نه روسته د مصر بادشاه هسې تش په نوم بادشاه وو او نور ټول کارونه يوسف عليه السلام جارې کول او د عزيز په نامه به ياديدو ، بعضې علماؤ لا دا هم وئيلې دی : چه هغه بادشاه يوسف عليه السلام په لاس مسلمان شو او ددې نه روسته د يوسف عليه السلام په دين چليدو .

آيا په اوسنې طاغوتې حکومتونو کې مسلمانانو وزيرانو ته دغه مرتبه حاصله ده ؟ او که چرے جواب په « نا » سره وی نو بيا خو قياس نۀ دے صحيح .

**٤/ وجه** : الله تعالیٰ د يوسف عليه السلام د قدرت او طاقت په باره کې فرمائی :

﴿ وَكَذَٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِي ٱلۡأَرۡضِ ﴾[2]

**ترجمه** : او هم دغه شان مونږه يوسف عليه السلام ته قدرت په زمکه کې ورکړو .

د تمکين لفظ پدې آيت کې مجمل دے خو په بل ځائی کې الله تعالیٰ د دغه اجمال تفصيل داسې بيان کړيدے :

﴿ ٱلَّذِينَ إِن مَّكَّنَّٰهُمۡ فِي ٱلۡأَرۡضِ أَقَامُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُاْ ٱلزَّكَوٰةَ وَأَمَرُواْ بِٱلۡمَعۡرُوفِ

---

[1] [ سورة يوسف : ٥٤ ] .

[2] [ سورة يوسف : ٢١ ] .

﴿وَنَهَوۡاْ عَنِ ٱلۡمُنكَرِۗ وَلِلَّهِ عَٰقِبَةُ ٱلۡأُمُورِ ۝٤١﴾[1]

**ترجمه** : هغه کسان که چرے ورکړو مونږ دوی ته په زمکه کښې تمکین نو قائموی دوی مونځ او ورکوی زکوٰة او امر به کوی خلقو ته په نیکئ او منع کوی به خلق د بدئ نه او خاص د الله په اختیار کښې ده آخره خاتمه د ټولو کارونو .

دا چه د یوسف علیه السلام په هکله هم الله تعالیٰ هغه ته د تمکین خبره کړیده ، نو یقینا یوسف علیه السلام هم د هغه خلقو نه وو چه د قدرت ( اقتدار ) په وخت ئې په خلقو باندې مونځونه قائمول ، او زکاتونه ورکول ، او امر بالمعروف او نهی عن المنکر کوو ، او په دې سلسله کښې د ټولو نه لوئی معروف توحید او د ټولو نه لوئ منکر شرک دے ، یوسف علیه السلام د خپلو پلارانو د حق دین اتباع کوله او په هغې به ئې فیصله کوله په هغه قانون ئې هیڅ کله فیصله نه کوله چه الله تعالیٰ نه وو نازل کړے ، او نه ئې هم د الله تعالیٰ د قانون خلاف د نورو قوانینو جوړولو اجازه ورکوله ، او که څوک د هغوی ( علیه السلام ) په هکله ددې په خلاف عقیده اولری هغه مسلمان نشی پاتې کیدے .

د اوسنئ زمانې په طاغوتی حکومتونو کښې کا یو وزیر یواځې د اسلام دپاره یو ادنی کار هم اوکړی نو فوراً د خپلې عهدې ( سیټ ) نه برطرف کیږی او یا اساسی قانون او حکومت ته د خیانت په جرم زندان ته ورغوځول کیږی ، او که چرې ټول حکومت او وزیرانو نه د انتخاباتو د لارې هم د مسلمانانو لاس ته ورشی بیا هم ورته د حکومت کولو فرصت نه ورکول کیږی، لکه چه د اسلامی نړئ په بعضی دولتونو کښې اولیدل شول نو په هم دې اساس د یوسف علیه السلام په کار استدلال کول یواځې یوه بهانه ده بس .

نو دا ئې صفت دے او د هغې نه بعد چه هم یو سړے دا خبره کوی او دومره لوئی جرئت کوی نو بس دغه انسان دې الله جل جلاله پوهه کړی.

**۲/ شبهه** : د دوی پدې شبهو باندې چه د پارلمان ته د جواز دپاره ئې پیش کوی هغه د

---

[1] [ سورة الحج : ٤١ ] .

نجاشي بادشاه چه دۀ اسلام قبول کړے دے ، نجاشي بادشاه چه ددې خپل نوم اصحمه وو او د حبشو يو نصرانی بادشاه وو کله چه مسلمانان په مکه معظمه کې تنګ راغلل د کافرانو د ظلمونو نه نو پيغمبر عليه السلام بذات خود په مکه معظمه کې پاتې شو او صحابه کرامو ته ئې امر اوکړو چه تاسو حبشې ته هجرت اوکړئ ، نو کله چه دوئ حبشې ته هجرت اوکړلو نو دلته اهل مکه ؤ ته پته اولګيدله نو دوی ورپسې لاړل حبشې ته ، چه کله دوی ورپسې حبشې ته ورسيدل نو بادشاه ته ئې شکايت اوکړو چه دا بې دينه شويدی او ستاسو ملک ته راغلی دی او تا ورته پناه ورکړيده نو دا راپريږده او مکې ته ئې واپس راوشړه ، نو نجاشي بادشاه صحابه کرام راطلب کړل چه تاسو راشئ او خپل موقف پيش کړئ چه دلته تاسو څرنګه راغلی يئ ؟ او بيا ترينه پوښتنه اوکړه نو هغوئ ورته په جواب کې اووئيل : چه مونږه داسې جاهله خلق وو چه قتلونه به مو کول او وينې به مو توئی کولے نو په مونږ کې الله پاک يو پيغمبر راوليږلو او هغه مونږ ته په سهر مونځ کې قرآن وائی بهر حال چه څومره خبره وه نو هغه ئې ورته اوکړله ، بيا ورته نجاشي بادشاه اووئيل : چه تاسو د عيسیٰ عليه السلام په باره کې څۀ وائی ؟ نو حضرت جعفر طيار رضي الله عنه پاځيدلو او د سورة مريم اولنی آياتو نه ئې ورته اولستلو ، نو پديکې ورته دا خبره ښکاره کړله چه عيسیٰ عليه السلام ابن مريم دے ابن الله ندے او مريم يوه پاکدامنه ښځه وه چه قرآن کريم د هغې څومره صفائی ذکر کړيده او په څنګه طريقې سره د عيسیٰ عليه السلام ولادت اوشو ، نو نجاشي بادشاه ورته اووئيل : چه په انجيل کې هم داسې صفات د عيسیٰ عليه السلام راغلی دی نو د مکې مشرکان ئې راوشړل نو د هغې نه بعد بيا دا نجاشي بادشاه مسلمان شو .

**نودوی وائی** : چه نجاشي مسلمان شويدے او نجاشي بيا هغه سړے دے چه دا وفات شو نو د وفات نه بعد پدې نجاشي باندې پيغمبر عليه السلام غائبانه جنازه کړيده ، او امام ابو داؤد رحمه الله باب تړی «**باب انه يری النور عند قبر شهيد**» چه د شهيد قبر خواته کله کله نور ليدلے شی نو دا خو کله کله وی نو ددې خو دا مطلب ندے چه تۀ دې د هغه په قبر باندې مسجد جوړ کړے او بيا په دغه باب کې د حضرت عائشه رضي الله عنها روايت راوړی چه فرمائی :

«**كنا نتحدث انه يرى نور عند قبر النجاشي**» نو دا يو ډير لوئى بزرګ تير شو او صحابي ځکه ندے چه د پيغمبر عليه السلام سره ملاقات ونۀ شو ، نو دوی اوس ددې بزرګ د خبرے نه دا دليل اخلي چه دۀ حکم بغير ما انزل کړيدے ، نو دۀ اسلام قبول کړو او بيا ئي هم د الله جل جلاله په قانون باندې فيصلې ندی کړی او حالانکه پيغمبر عليه السلام پرې جنازه هم اوکړه او تاسو وائی چه د الله په قانون باندې فيصلې کول دا لازمی خبره ده او حال دا چه نجاشي د الله د قانون نه بغير بل قانون چلولے دے ؟

**جواب** : اول خو دا خبره ده چه تاسو به ددې خبرے دليل پيش کوئ چه نجاشي په خپل عمر کې حکم بغير ما انزل الله ندے کړے نو د منع دليل تاسو پيش کړئ ؟ نو دوی وائي : چه د منع دليل خو نوی خو عدم ذکر د منع دليل دے ، او مونږ وايو چه عدم ذکر د منع دليل ندے ، ځکه د منع دليل الله پاک غوښتلې دے چه کله شيطان سجده اونۀ کړه نو الله ورته فرمائی : ﴿ مَا مَنَعَكَ أَلَّا تَسْجُدَ إِذْ أَمَرْتُكَ ﴾[1] نو د منع دليل به پيش کوے ، نو دا هسې خبره ده چه ته وائی چه د منع دليل نشته ، نو بيا د دوی سره دليل نشته .

**دويمه خبره** : نجاشي حکم بما انزل الله نوی کړے نو هغۀ ته خو احکامات ندی رسيدلی ځکه چه نجاشي ته د احکاماتو د نۀ رسيدلو دليل دا دے : چه د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دے هغه فرمائی : چه کله مونږه د پيغمبر عليه السلام سره مخکې وو نو چه چا به په مونځ کې سلام واچولو نو مونږه به جواب ورکړو د سلام ، او کله چه نجاشي خواته لاړو او چه کله واپس د نبی کريم صلی الله عليه وسلم خواته راغلو نو پيغمبر عليه السلام مونځ کولو نو مونږ پرې سلام واچولو نو پيغمبر عليه السلام جواب رانۀ کړو او بيا ئی راته روستو وفرمائيل : انها شغل ، چه دا شغل دے او په مونځ کې به شغل نۀ کوے ، نو دلته اوګوره : چه عبدالله بن مسعود او نور صحابه رضي الله عنهم چه هغوي د احاديثو د ډيرے حيصې نه خبر دی نو هغوئ چه د نجاشي په خوا کې وو نو هغوئ ددغه حکم نه خبر نوو

[1] [ سورة الأعراف : ١٢ ] .

چه په مونځ کې جواب ورکول منسوخ شوی دي نو اوګوره پدې لکه موده دوی د يو حکم نه خبر نشول نو نجاشي ته به څنګه اورسيږي ، حالانکه حکم کولو دپاره رسيدل شرط دی چه تاته حکم در ورسيږی نو بيا به تهٔ په هغې باندې حکم کوے ، لکه الله فرمائی : ﴿ لِأُنذِرَكُم بِهِۦ وَمَنۢ بَلَغَ ﴾[1] يعنی چه چاته يو حکم ورسيږي نو هغه به پرې امر کوي ، او تهٔ ګورے نهٔ چه يو سړے شاهق الجبل کې وی او د نورو احکاماتو نه ندے خبر خو په عقل سره خپل خدائی منی چه الله جل جلاله واحد لاشريک دے او پدې هر شی کې دلائل دی : « وفی كل شئ له آية ... تدل على انه واحد » نو په خپل عقل سره هم سړے معلومولې شی چه الله واحد لاشريک دے ، او ددې دليل د يونان فلاسفه دی چه د يونان فلاسفه خو ټول د الله په وحدانيت باندې قائله دی خو انبياء عليهم السلام ئې نهٔ منل نو په دغه خبره کې تباه دی ، نو هغوئ هم په خپل عقل سره خدائی معلوم کړے وو نو څوک چه په خپل عقل سره خدائی معلوم کړی او د نورو احکاماتو نه نهٔ وی خبر نو شريعت کې هغه مغفور دے بخلې شويدے ، نو نجاشي بادشاه خو دومره اړخت ته پروت وو چه هغهٔ ته نور احکامات ندی رسيدلی ، او مونږ سره پدې خبره باندې نور دلائل هم شته دے چه نجاشي بادشاه ته نور احکامات ندی رسيدلی لکه دا يو دليل پيش کړے شو ، او تاسره پدې خبره باندې دليل نشته دے چه هغهٔ ته نور احکامات رسيدلی دی او هغهٔ پرې حکم نوی کړے .

**دريم جواب** : چه مونږه وايو : چه په رواياتو کې دا خبره راځی چه نجاشي پيغمبر عليه السلام ته خط راليږلې وو ، او په خط کې ئې ورته ليکلی وو : چه زهٔ خپل بچې اريحا بن اصحمه بن اشجر دا درليږم ستا د خدمت دپاره چه ستاسو خدمت اوکړی او دين ايزده کړی ددې دپاره ئې درليږم ، نو معلوميږی چه هلته کې دين نه وو رسيدلې ، او په بعضی رواياتو کې راځي : چه ورسره نور ٦٠ حبش دی هغه ورسره هم درليږم ، او پدې روايت کې بله خبره دا ده : چه تاريخ ليکلی دی چه پيغمبر عليه السلام ته د نجاشي خط رارسيدلې دے خو جواب ئې

---

[1] [ سورة الأنعام : ١٩ ] .

معلوم ندے چه پیغمبر علیه السلام ورته جواب ورکړیدے او که ندے ورکړے ، نو مونږه ته دومره اندازه لګی چه نجاشی ته احکامات ندی رسیدلی ، او تاسره پدې خبره دلیل نشته چه نجاشی ته احکامات رسیدلی دی ، او چه کله احکامات نوی رسیدلی نو په هغه باندې بیا عمل واجب ندے .

**څلورم جواب**: چه دغه نجاشی ته چه کوم احکامات رسیدلی دی نو نجاشی په هغې باندې عمل کړے دے ، دۀ ته پته اولږیدله چه عیسیٰ علیه السلام ابن الله ندے بلکه پیغمبر دے او ابن مریم دے نو فورا ئی د خپلې عقیدے نه براءت اوکړو او په پیغمبر علیه السلام باندې ئی ایمان راوړو ، نو دلته اوګوره : چه څرنګه هغې ته حکم د توحید ورسیدلو نو فورا ئی پرې عمل اوکړو .

نو تاسو ته مونږه د توحید احکامات رارسوو او درته وایو چه دغه پارلمان د شرک اډه ده نو تاسو ته خبر درسیدلے نو ولې پارلمان نۀ پرېږدئ حالانکه تاسو ته خو پوره قرآن او حدیث در رسیدلې دے ، نو دوی د نجاشی پشان بزرګ انسان باندې دا تهمت تړی چه هغه هم حکم بغیر ما انزل الله کړیدے ، دا عمر اشقر په خپل کتاب " حکم المشارکة فی مجلس الوزاره " کې دا واقعه پوره راوړیده او بیا ددې واقعې نه استدلال کوی حالانکه دا واقعه ئی تر آخره پورے راوړیده چه د نجاشی خط پیغمبر علیه السلام ته رارسیدلې دے خو دا بیا معلومه نده چه پیغمبر علیه السلام جواب ورکړیدے او که نۀ ئی دے ورکړے ، او بیا په دغه ځائی کې تلبیس کوی او قصه بدله کړی او بیا وائی چه ددې نه معلومیږي چه نجاشی حکم د غیر ما انزل الله کولو کې څه قباحت دے ، خه اوس دا پرې ده دا کفر دے او کنه خو ددې په حرمت کې د چا اختلاف نشته دے ، کم ازکم حرام خو دي کنه حکم بغیر ما أنزل الله کول خو چه یو سړے راپاڅیږی او هغه ئی د جواز دلائل پیش کوی ، نو آیا دا تحلیل د ما حرم الله ندے ؟ او دا سړے بیا ځان ته مسلمان او دینداره وائی هغه خو پریږده چه پیغمبران ئی متهم کړل ، هغه ئی هم پریږده چه د نجاشی غوندې یو بزرګ انسان ئی متهم کړو خو د هغې باوجود دې خبرے ته لږ سوچ اوکړه چه څومره قبیحه خبره ئی کړیده .

**۳/ شبهه** : چه دوی پیش کوی چه حضرت عمر ﷺ حکم بغیر ما انزل الله کړیدے ، نو اوس په صحابو باندې ردونه کوی او په صحابه ؤ باندې تهمتونه لګوی چه حضرت عمر رضي الله عنه د الله تعالىٰ په احکاماتو باندې فیصله نده کړے نو بیا خو دې په هغهٔ باندې هم حکم د کفر ولګولې شی ؟ « **نعوذ بالله من ذلک** » .

**جواب** : دا کومه واقعه ده ؟ نو دوی وائی : چه هغه یو سړے چه راغے او غلا ئی کړی وه او بیا حضرت عمر رضي الله عنه د قحط په زمانه کې هغه معاف کړو او د لاس د کټ کولو حکم ئی پرې اونهٔ کړو ، نو دا ئی حکم بغیر ما انزل الله اوکړو او که نه ؟ جواب : دا خو اصل کې حضرت عمر رضي الله عنه حکم بما انزل الله کړیدے ، ځکه زمانه د قحط وه او داسې په سخت تکلیف کې خلق مبتلاء شوی وو چه کله دا سړے راغے نو دهٔ ورته دا عذر وړاندې کړو چه زهٔ هلاکیدلم او زما خاندان هلاکیدلو نو ما دغه دوکان ووهلو او د هغې نه مې سامان وړیدے نو دا خو اصل کې الله فرمائی : ﴿ فَمَنِ ٱضۡطُرَّ غَيۡرَ بَاغٖ وَلَا عَادٖ فَلَآ إِثۡمَ عَلَيۡهِ ﴾[1] هغه غریب داسې حالت ته رسیدلې وو چه هغه هلاک کیدلو او د مجبورئ په حالت کې وو او حضرت عمر رضي الله عنه ورته معافی اوکړه ځکه چه الله فرمائی : « **فلا اثم علیه** » نو تاته وایم : چه آیا دا ئی د الله په حکم باندې فیصله اوکړه او که د الله د قانون نه ئی بغیر فیصله اوکړه ؟ نو دا ئی د الله په قانون باندې فیصله اوکړه ځکه چه الله وائی چه ګناه پرې نشته دے ، اوس د دوي خبره دا ، او دا د اهون البلیتین خبره ده چه د دوو مصیبتو او ضررونو په مینځ کې تهٔ راګیر شے نو تهٔ ځانله یو طرف مختاره کړے نو پدیکې خو څهٔ خبره نشته دے ، لکه لوط علیه السلام چه خپل قوم ته خپلې لونړه وړاندې کوی او ورته وائی : ﴿ هَٰٓؤُلَآءِ بَنَاتِي هُنَّ أَطۡهَرُ لَكُمۡ ﴾[2] دا زما لونړه دی تاسو دپاره پاکې دی نو ټول قوم خو د هغې سره نکاح

---

[1] [ سورة البقرة : ۱۷۳ ] .

[2] [ سورة هود : ۷۸ ] .

نشوه کولې ، بعضی علماء وائی : چه دا بعضی مشران د قوم وو چه هغوی دا خلق کنټرول کولې شو نو هغې ته ئې اووئيل ، او بعضی تفاسيرو خو دا هم ذکر کړی چه هغه ورته اووئيل چه « **هؤلاء بنات هن اطهر لكم من اللواطة** » ځکه چه تاسو چه بل مصيبت کوئ نو هغه ډير پليت کار دے نو د هغې نه خو دغه زنا کول څۀ قدرے ښۀ وی کنه ، نعوذ بالله من ذلک ، نو ديته اهون البليتين وائی، نو دا خو حضرت عمر ﵁ په وړوکې مصيبت باندې عمل اوکړو ، او حضرت عمر ﵁ خو محفوظ دے د ګناه نه ځکه چه صحابی دے ، که حضرت عمر ﵁ دا فيصله کړيده نو زۀ ستانه دا تپوس کوم چه ته څۀ وائی : چه دا حضرت عمر ﵁ ګناه کړيده ؟ نو که ووائی : چه ګناه ئې کړيده نو بيا هم ګمراه کيږے ، ځکه صحابه کرام خو محفوظ خلق دی ، او که ته وائی : چه دا ګناه ئې کړيده او بيا په هغې باندې باقی پاتې شويدے نو دا تۀ عجيبه خبره کوے او دا حرام دی د صحابه کرامو په باره کې ، او که ته وائی : چه حضرت عمر رضي الله عنه ګناه نده کړی او دا کوم کار ئې چه کړے دے نو دا خو حکم بغير ما انزل الله خو دے خو دا حلال او جائز دے ، نو دا خو تۀ تحليل د ما حرم الله کوے ، او پدې باندې خو اجماع ده چه د الله د قانون نه بغير په بل قانون باندې فيصله کول خو حرام دی نو بيا په کفر کې اخته کيږی ، لهذا دا دريمه خبره درته پاتې ده چه کومه مونږه کوو : چه حضرت عمر ﵁ حکم بغير ما انزل الله ندے کړے بلکه حضرت عمر ﵁ حکم بما انزل الله کړيدے ، ځکه چه الله فرمائی : « **فلا اثم عليه** » چه کله په دومره تکليف کې واقع شی چه دا پکې هلاکيږی نو بيا په دۀ باندې ګناه نشته ، نو الله ترينه ګناه نفی کړيده او حضرت عمر ﵁ پدغه آيات باندې عمل اوکړو ، نو دا حکم بما انزل الله شو او که بغير ما انزل الله شو؟

**٤/ شبهه** : چه دوی پيش کوی چه حديث کې راځي : « **لاتقطعوا الايدى فی الغزو** » چه په غزا کې لاسونه مۀ کټ کوئ '' ، که يو سړے په غزا کې په بيت المال کې خيانت اوکړی نو

دده لاسونه مهٔ کټ کوئ ، او بیا وائی : ﴿ وَٱلسَّارِقُ وَٱلسَّارِقَةُ فَٱقْطَعُوٓاْ أَيْدِيَهُمَا ﴾[1] نو دا نص دے او د قرآن آیت دے نو پدې مسئله کې اوس حکم د بما انزل الله ونهٔ شو او حکم بغیر ما انزل الله اوشو ؟

**جواب** : يو خو دا کلام د پیغمبر علیه السلام دے او پیغمبر خو شارع دے چه پیغمبر وائی چه مهٔ کټ کوه نو ته به ئی نهٔ کټ کوے ، ځکه چه الله فرمائی : ﴿ وَمَا يَنطِقُ عَنِ ٱلْهَوَىٰٓ ۝٣ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْىٌ يُوحَىٰ ۝٤ ﴾[2] او کله نسخ د قرآن په حدیث سره هم راځي ، بل دا خبره ده : چه دلته اهون البلیتین دے او هغه دا دے : چه یو طرف ته لاس کټ کول دی او کیدیشي چه دې لاس کټ کولو سره دې لاړ شی او د کفر په صف کې شامل شی ځکه چه توره خو ورسره په لاس کې ده ، نو ښهٔ خبره دا ده : چه لاس ترې مهٔ کټ کوه او په اهون البلیتین باندې حکم کول دا هم د اسلام او د شریعت کار دے ، او غټه خبره پکې دا ده چه د پیغمبر علیه السلام کلام دے او پدیکې ستا دا خبره نهٔ چلیږی ، ځکه چه پیغمبر چه څهٔ خبره هم کوی نو هغه د الله د طرف نه وی نو دا حکم بما انزل الله دے نه دا چه بغیر ما انزل الله ئی وګرځوے .

**٥/شبهه** : دوی پیش کوی ، چه حجاج ابن یوسف خو هم حکم بغیر ما انزل الله کړیدے، البانی لیکلی دی : چه حجاج ابن یوسف خپل ګورنر ته خط اولیږلو او په هغه خط کې ورته لیکلې وو چه فلانې قتل کړه او دا قتل په ناحقه وو نو دا حکم بغیر ما انزل الله وو؟

**جواب** : د حجاج په ګناهګارئ کې خو هیچا هم شک ندے کړے ، او که ته وائی : چه پدې باندې دې دا کافر کړے شی ، او په حجاج باندې خو اجماع د امت ده چه دا مسلمان دے ، نو اولا خبره دا کوو : چه اجماع مهٔ وایه : پدیکې مخالفت شته دے تخلف پکې شته

---

[1] [ سورة المائدة : ٣٨ ] .

[2] [ سورة النجم : ٣ ـ ٤ ] .

دے ، امام شعبي چه کله د حجاج په باره کښ ليکل کوی نو د حجاج په باره کښ بلا اقوال رانقل کوی او د بلا محدثينو اقوال دا دی : «**انه کفر بالله وآمن بالطاغوت**» " چه حجاج په الله باندې کفر کړيدے او په طاغوت باندې ئی ايمان راوړيدے " ، نو په حجاج باندې د کفر فتوی ورکړے شوے ده ، خو اجماعی خبره نده لکه دا ته چه وائی چه اجماع ده پکښ ، او که حجاج مسلمان شو نو بيا ورته هم کافر نه وايو نو مونږه بيا وايو : چه دا خو فيصله ده د قانون حيثيت ئی خو ندے ورکړے ، او مونږ دا وايو : چه يو سړے يوه فيصله دوه اوکړی داسې او قانونی حيثيت ورنکړی نو دا نۀ کافر کيږی ، دا خبره خو مونږه د اول نه کړيده ، خو دوی به د داسې عجيب ځائی نه استدلال اوکړی چه هغه ځائی به د استدلال قابل نوی ، او بيا هم وائی چه ددې ځائی نه معلوميږی چه حکم بغير ماانزل الله دا جائز دے ، نو هلکه دا ته څه خبرې کوے که چرته دا د گناه په حيثيت سره شی نو مونږه خو ده ته گناهگار وايو کنه او که د حجاج په کفر لحاظ شی نو هغه کښ هم ډير اقوال دي ، او که ته وائی چه کافر ندے مسلمان دے نو دا خبره هم درسره منو ، او که وائی چه دې مسلمان وو او بيا هم حکم بغير ما انزل الله کړے نو دا خو ئې يوه فيصله کړيده څۀ قانونی حيثيت ئی ندے ورکړے ، او مونږ خو وايو : چه څوک د الله قانون رد کړی او د هغې په ځائی باندې بل قانون کيدی نو دغه ترديد د قانون د الله دا کفر دے ، او د الله قانون سره بل قانون ايخودل يا د هغې سره مساوی ، يا د هغې نه بهتره ، نو مونږه هغې ته کفر وايو .

### ٦/ شبهه : د دعوت د مصلحت دپاره په جمهوريت کښ شرکت :

بعضی اسلامی ډلې يا افراد د دعوت د مصلحت په بهانه په جمهوريت کښ برخه اخلی او دليل دا پيش کوی : چه که چرے دا خلق ووتونه ته نۀ ودريږی نو يو بله د اسلام دشمنه ډله يا کس به اقتدار ته راځی .

او دا دليل هم پيش کوی : چه مونږه کوشش کوو چه د اسلامی قوانينو د نافذ کولو دپاره د پارلمان په ذريعې لاره هواره کړو .

کله کله دا هم وائی : چه په جمهوری نظام او حکومتونو کښ هغه کس ته د دعوتی کار دپاره

عام اجازت موجود وي چه كوم كس جمهوريت منى د جمهوری نظام په چوكاټ كې اوسيږي ، او څوک چه د جمهوری نظام د چوكاټ نه بهر وي نو هغه د قسما قسم پابنديانو سره مخ وي ، نو په دې غرض چه خلقو ته دعوت ورکړي او د معاشرې ټولو طبقو ته خپل آواز ورسوي ، د دعوت مصلحت دا تقاضا كوي چه د جمهوريت په محل كې دې دننه كار اوكړے شی ، او په جمهوريت كې دې د بيان د آزادئ نه فائده واخستل شی .

د پورتنی وهمی دلائلو او بهانو په باره كې لاندې څو جوابونه ذكر كولے شی :

**اول جواب** : يو داسې نظام چه د خپل بنياد په اساس په اعتبار په كفر باندې ولاړ دے لكه د جمهوريت چه د سيكولرزم ( لا دينيت ) په كفر باندې ولاړ دے ، او چه دين له د ژوند او حكومت په كارونو كې مداخلت ( د كار ساتلو ) حق نۀ وركوي ، او په كوم كې چه حلال او حرام تعيين د انسانانو د اكثريت د تائيد په ذريعه باندې كيږی ، او د الله تعالیٰ د شريعت سازئ ( قانون سازئ ) حق اخستل شوے او بشر ( انسان ) له وركړے شوے وي ، او په كوم كې چه د كفر او اسلام په مينځ كې فرق نه وي ، او ټولو ته صرف د انسان په نظر كتل كيږی ، او چه په كوم كې د مسلمان او كافر يو شان اهميت وي ، او امر بالمعروف او نهي عن المنكر په خپل مينځ كې د ټكراؤ د وجه نه منع كړے شوے وي ، او د دين نه اوړيدل د انسان خپل انفرادی حق وي ، او هغه په دې باندې د هر قسم سزا نه بچ ساتلے شوے وي ، او د اسلام په خلاف آواز اوچتونكو ته د اظهار رائی د آزادئ په بناء باندې جائز او قانونی كار گڼړل شوے وي ، نو په داسې كفری نظام كې شركت كول آيا ددې تائيد او دې منل به نۀ وي ؟

آيا د داسې كفري نظام په دائره كې كار كول او ددې منل به د هغه توحيد منافی نۀ وي كوم چه د ټولو نه مخكې طاغوت غټ كفر منلو مطالبه كوي ؟ هغه توحيد چه د لا إلٰه په ذريعې د إلا الله نه مخكې د هر قسم د طاغوت نه د بيزارئ اعلان غواړی ؟ په اسلام كې د هغه كس اسلام هيڅ كله قبول نۀ دے چه د شرک سره اعلان د جنگ نۀ كوي ، الله تعالیٰ خو د كفر بالطاغوت د ايمان بالله نه مخكې بيان كړے دے ، الله تعالیٰ فرمائی :

﴿ فَمَن يَكۡفُرۡ بِٱلطَّٰغُوتِ وَيُؤۡمِنۢ بِٱللَّهِ فَقَدِ ٱسۡتَمۡسَكَ بِٱلۡعُرۡوَةِ ٱلۡوُثۡقَىٰ ﴾[1]

" چا چه انكار اوكړو د طاغوت نه او په الله تعالیٰ باندې ئې ايمان راوړو هغه په يو مضبوطې كړئ باندې منګولے اولګولې ".

نو آيا په دې كې به د اسلامی دعوت مصلحت نه وي چه د كفر صف جدا او د اسلام صف جدا وي چه خالص توحيد مخې ته راشی ، او د كفر سره قطع تعلق اوشی ، او ددې په واضحه او صفا الفاظو كې اعلان وشی ، يا به د اسلام حكومت مصلحت په دې كې نۀ وي چه بعضې ذكر كړے شوی اهم جزئې مصالحو دپاره دې د توحيد د اعلی مصلحت قربانی وركړے شی ؟

په اسلام كې خو د ټولو مصالحو نه غټ مصلحت د الله تعالیٰ توحيد دے او د طاغوت نه قطع تعلقې ( انكار كول ) دي ، كه چرې دا مصلحت د مينځ نه ختم شي ، نو ددې په ځائی به په زرګونو نور مصلحتونه بې كاره شي ، د مشركانو ، ملحدينو ، كميونستو ، او سيكولر خلقو سره په مجلس كې د قانون په دائره كې دننه د يو نظام چلولو دپاره يو ځائی كيناستل او هغوی له د كفر بيانولو حق وركول نۀ خو څه اسلام دے ، او نۀ اسلامې دعوت دپاره څه مصلحت دے ، بلكه الله تعالیٰ ښكاره د هغه خلقو سره د ناستې نه منع كړے ده ، الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَقَدۡ نَزَّلَ عَلَيۡكُمۡ فِي ٱلۡكِتَٰبِ أَنۡ إِذَا سَمِعۡتُمۡ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ يُكۡفَرُ بِهَا وَيُسۡتَهۡزَأُ بِهَا فَلَا تَقۡعُدُواْ مَعَهُمۡ حَتَّىٰ يَخُوضُواْ فِي حَدِيثٍ غَيۡرِهِۦٓۚ إِنَّكُمۡ إِذٗا مِّثۡلُهُمۡۗ إِنَّ ٱللَّهَ جَامِعُ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ وَٱلۡكَٰفِرِينَ فِي جَهَنَّمَ جَمِيعًا ﴿١٤٠﴾ ﴾[2]

" او هغه په تاسو باندې په كتاب كې دا حكم نازل كړے دے چه كله تاسو واورئ چه د هغه د آيتونو نه انكار كيږی او ټوقې ورپورې كيږي نو د داسې خلقو سره د هغې وخت

---

1) [ سورة البقرة : ٢٥٦ ] .

2) [ سورة النساء : ١٤٠ ] .

پورې مه کينئ ترڅو چه هغوی په بله خبره کې مشغوله شوی نه وي ، ورنه تاسو به هم د هغې خلقو پشان شئ ، يقينا الله تعالیٰ به ټول منافقان او کافران په جهنم کې راجمع کړي " .

په موجوده پارلمان کې خو ښکاره کتلے کيږی چه سيکولر ( بې دينه ) عناصر ، کميونسټ، د خواهشاتو بندګان او ګمراه پارټيانې ( ډلې / جماعتونه ) ښه په کهولاؤ او فخر سره د ارتداد دفاع کوي ، د کفريه قوانينو طرفداري کوي او د اسلامي حکمونو لکه جهاد ، حدود ، حجاب وغيره پورے ټوقې کوي ، او په قسما قسم بدو نومونو سره ئې يادوي ، ليکن بيا هم تش په جمهوريت پسند او پارلمانی مسلمانان د دعوت د مصلحت په بهانه د ګمراهانو سره په يو ځائی کې په پارلمان کې کار کوي .

**دويم جواب**: په اسلامي دنيا کې اکثر پارلمانيانو هغه پارټۍ چه خپل ځان ته د مسلمانانو سفير وائی اقليتو کې دي ، چه د سيکولر پارټيانو د اکثريت په مقابله کې د خپل اقليت د وجه نه په غير اسلامی قوانينو کې څه بدلون نه شی راوستے ، ځکه چه په جمهوريت کې د اکثريت رائی قبلولے شی ، ددې وجه نه په تيرو اتيا 80 کالو کې چه جمهوريت په اسلامی دنيا کې په کومو کومو حکومتونو کې راغلے ، چرته هم دا نه دي کتل شوي چه د جمهوريت او د انتخاباتو په ذريعې سره په يو اسلامی ملک کې اسلامي شريعت نافذ شوے وي ، ليکن بيا هم جمهوريت پسند او تش د نوم مسلمان ددې نه لاس نه اخلي ، او د بدلون دپاره نبوي ښودلے شوي لارې ته رجوع نه کوی ، چه دا په خپله د هغوي په نيتونو او اخلاص باندې د شک باعث ګرځی .

**دريم جواب**: رسول الله ﷺ ته هم د مکې مشرکانو هم دغه د جمهوريت پشان د يو مشترک نظام وړاندې کړے وو د يو داسې نظام چه په کې شرکی عقائد ، نظريات ، تصورات او اعمال محفوظ او بچ وي ، او يو حده پورے په هغې کې اسلام هم په نظر راځي ، ليکن د هغې د موجوده جمهوريت سره دومره فرق وو چه بې د انتخاباتو او اکثريت نه ئې مشری ، مال ، حکومت او سياسی قيادت هغوی رسول الله ﷺ له ورکوو ، لکه څنګه چه د هغوی ﷺ

په سيرت کې ذکر دي چه د مکې د مشرکانو سردارانو خپله شورى را وبلله ، او په يوه خبره ئې اتفاق اوکړو چه عتبه بن ربيعه چه د بنو عبد شمس د سردا رانو نه وو هغه ئې رسول الله ﷺ ته اوليږو ، لهذا عتبه د هغوي ﷺ خواته راغے او وې وئيل : اے ورارهٔ ! تا ته پته ده چه ته په مونږ کې د ښه حسب او نسب مالک ئې ، ليکن تا يو داسې دين راوړے چه د هغې د وجه نه تا زمونږه اتفاق او اتحاد ټکړے ټکړے کړو ، ته زمونږه او د خپل پلار نيکهٔ معبودانو ته بد رد وائې ، هغوی بې وقوفه ګڼرې او د هغوي دين ته کفر او د هغوي پلار نيکهٔ ته کافر وائې ، زه تا ته يو څو پيشکش کوم ، وئيل : ته هغه قبول کړه ، رسول الله ﷺ اوفرمائيل : اے ابو لبيده ! وايه زه اورم ، عتبه خپل پيشکشونه داسې وړاندې کړل : اے ورارهٔ ! که چرے ته د خپل دعوت پريخودو په بدله کې مال غواړے ، نو مونږ به دومره مال راجمع کړو چه ته به مالداره شې او که چرې عزت غواړې نو مونږ به تا خپل سردار اوګرځوو چه ستا نه غير به يو فيصله هم نه کيږی ، او که چرې بادشاه جوړيدل غواړې نو مونږه به تا خپل بادشاه هم جوړ کړو که چرې په تا باندې څه پيريان وي نو مونږه به تا يو کاهن له بوځو او هغه به تا باندې دم واچوي او په دې کار کې چه زمونږه څومره مال لګی مونږه به ئې خرچ کړو چه ته ددې تکليف نه خلاص شې .

رسول الله ﷺ چه د هغه خبره واؤريده ، نو وې فرمائيل : اے ابو لبيده ! ستا خبرے ختمې شوے ؟ هغه اووئيل : آو ، بيا ورته رسول الله ﷺ اوفرمائيل : اوس زما خبرے هم واؤره : نو ورته ئې د سورت فصلت ( حم السجده ) يو څو آيتونه تلاوت کړل .

لږ سوچ پکار دے ! نبی کريم ﷺ د قريشو سره يو داسې مشترک او مخلوط ( ګډوډ ) پيشکشونه رد کړل ، چه د هغې سردار به رسول الله ﷺ په خپله وو ، لهذا دا خبره ښکاره معلومه شوه چه رسول الله ﷺ دمظلوميت او محروميت په وخت کې چه هغه او د هغوی صحابو له به قسما قسم تکليف ورکولے شو په داسې حال کې هم د مشرکانو وړاندې کړے شوے نظام او نظريه قبوله نهٔ کړه ، حالانکه ددې پيشکشونو په منلو سره به په مسلمانانو ( چه مظلومه وو ) څه آسانی هم راغلے وے ، ليکن بيا هم رسول الله ﷺ دا ددې دپاره ونه

کړل چه مسلمانانو ته دا تعلیم میلاؤ شی چه مؤمن او کافر په داسې نظام کې نه شی یوځائی کیدلے چه په کې اسلام د کفر تابع وي .

قریشو د اوسني کافرانو غوندے دورغ او دهوکه نۀ خوښوله هغوی د رسول الله ﷺ سره په خپله وعده کې ریشتوني وو هغوي د رسول الله ﷺ له مشري ، مال ، او بادشاهي ورکوله، لیکن ددې په مقابله کې هغوي د رسول الله ﷺ نه د جاهلیت خلاف مقابله بندوله ، او دا هغه کار دے چه دا اوسنۍ زماني جمهوري کافران ئې هم د مسلمانانو نه غواړي ، خو رسول الله ﷺ ورسره بیا هم د هغوي داسې پیشکشونه ونۀ ومنل .

**اوس سوال** دا دے : چه هغه پارټیانې چه خپل ځان ته اسلامي وائی ، او په جمهوریت کې د خپل شرکت د وجه هغوي ددې ( جمهوریت ) تائید کوي او په خپل تور مخ او ګنده کردار باندې پرده اچوي آیا دوي له هغه حیثیت او د اقتدار منصبونه ورکول کیږي د کومو چه قریشو رسول الله ﷺ ته پیشکشونه کړي وو ؟ بالکل نۀ .

آیا رشتیا هم دغه شان ځان دهوکه کونکي اسلامي پارټیانو ته په جمهوریت کې د صحیح اسلام بیانولو او د کفر د ټولو صورتونو رد کولو او د هغې خلاف عملی اقدامات کولو اجازت ورکول کیږی ؟ که چرے ورکول کیږي نو په تیره یوه صدئ کې دا حق په کوم مسلمان ملک کې کتل شوے دے ؟ که چرے نه ورکول کیږی نو بیا ولې دا خلق د باطل نه استدلال کوي، او اسلام ته د دعوت ورکولو د نبوي منهج نه ( چه مثال ئې د صحابو ژوند او د هغوي دعوت دے ) ولې مخ اړوي ؟ که چرې دغه شان جمهوریت کې په شرکت کولو کې مصلحت وے نو رسول الله ﷺ هغه وخت د قریشو پیشکشونه قبول کړي وے ، حالانکه د مسلمانانو دپاره سوا د برادشت او صبر نه بله لاره نۀ وه ، هغه وخت رسول الله ﷺ خپل مظلوم صحابو ته د حبشې د هجرت کولو اجازت ورکړو ، لیکن د مشرکانو سره ئې د یو مشرک نظام کې پاتې کیدل خوښ نۀ کړل ، ددې دپاره چه مسلمانانو ته دا تعلیم میلاؤ شی چه اسلام د جاهلیت د هر قید او بند نه آزاد میدان او نظام غواړي مسلمانان تر هغه وخته پورے په آرام او قلاره ناست نۀ دي چه تر څو ئې ځان له یو خالص اسلامي نظام نۀ وو جوړ کړے .

**څلورم جواب** : د اسلامي دنيا نزدې ماضي ( تير وخت ) تاريخ په دې خبره ګواه دے چه جمهوريت او انتخابات صرف کفريه نظام مضبوطوي ، او هغې د ترقۍ دپاره کار کوي ، په جمهورى اسلام کې د عملي اسلام د نفاذ هيڅ ځائي نشته ، اګر که مسلمانان د جمهوريت د لارې اقتدار حاصل هم کړي .

په مصر کې د تيرو اتياؤ 80 کالو اوږدې زمانې نه " الإخوان المسلمين " په جمهوريت کې د مشارکت د لارې د اسلامى حکومت دپاره ښه مضبوط کوشش کوي ، خو کله چه هم مصري حکومت ته د " الإخوان " د طرف نه د څه ديني بدلون نخې معلومې شي نو سمدستي ئې په څه مصيبت کې اخته کړي ، يا خو د هغوي قائدين ( مشران ) په زندانونو کې واچوي يا ئې مالونه ضبط کړي او دهغوي په مشرانو باندې په سياسى ميدان کې پرې پابندياني ولګوى ، هم دغه وجه ده چه په مصر کې د تيرو اتياؤ 80 کالو نه اسلامي حکومت جوړ نۀ شو او نه يوه اسلامي معاشره مخې ته راغله او " الإخوان " هم په خپلو اصولو او بنيادونو باندې مضبوط پاتې نه شو کوم چه امام البناء او سيد قطب شهيد رحمهما الله په خپلو تقريرنو او تاليفاتو (کتابونو او رسالو ) کې د " الإخوان المسلمين " د نظرياتي او عملي د لارې په طريقه واضح کړي وو ، بلکه د وخت تيريدو سره جمهوريت د هغوي عزم (ارادې ) سستې او منشور ئې ورله بدل کړو .

په ترکي کې د " نجم الدين اربکان " اسلام پرست تنظيم چه په انتخاباتو کې د جمهوريت د اصولو مطابق اکثريت واخستو حکومت جوړ کړو خو چه کله د ترکي سيکولر او د جمهوريت دفاع کونکي فوج چه د اسلام د مفادو کې کيدونکې تبديلۍ اوليدې نو سمدستي ئې د هغوي حکومت ختم کړو په " اربکان " تنظيم باندې ئې پابندۍ اولګولے او د هغې قائدين ئې په سياست کې د برخې اخستو نه منع کړل .

دغه شان د شمالي افريقې د ټولو نه غټ ملک " الجزائر " کې چه کله " جبهة الانقاذ الاسلامية " پارټۍ د مغربي جمهوريت د اصولو مطابق په انتخاباتو کې اکثريت واخستو نو

هلته هم سيکولر فوج مداخلت اوکړو او د انتخاباتو نتيجې ئې غلطې اوګرځولے او د اسلامي پارټئ قائدين ئې په زندانونو کې واچول ، او د الجزائر مسلمانان ئې په يو داسې کورنئ جګړه کې اخته کړل چه دهغې لمبې تر اوسه پورے شغلې وهي او په زرګونو مسلمانان ئې په دې اور کې اوسوزل او اوسه پورے سوزي .

دارنګه زمونږه او ستاسو په ملکونو کې هم چه کله اسلامي جماعتونو په خپلو علاقو کې انتخابات اوګټل او خپل حکومت ئې جوړ کړو نو هغوي هم په خپل ټول پوره حکومتي وخت کې يو اسلامي قانون هم نافذ نهٔ کړے شو او نهٔ ئې د اسلام د فائدے دپاره يو داسې قدم اخستے وو چه د تاريخ په پاڼرو کې ئې خائست لرلے وے ، بلکه هغوي په ډير مشکلاتو سره صرف هغه کارونه مخکې کړل چه کوم سيکولر حکومتونه ښه په آسانئ سره چلوي ، او د هغې وجه دا وه چه دې جمهوری حکومت ته د مرکزي حکومت د طرف نه دا اجازت نهٔ وو ميلاؤ چه دوي اسلام نافذ کړي .

او دويمه خبره چه دوي هم د جمهوريت سره د وفادارئ قسم خوړلے وو ، دغه شان په پوره دنيا کې اسلامي شريعت عملاً د نافذ کولو نه لرې ساتلے شي او ددې منونکي هم د حکومت نه محرومولے شي ، اګر که هغوي د جمهوريت د لارې اقتدار ته رسيږي ، لهذا معلومه شوه چه په جمهوريت کې د صحيح اسلام دپاره هيڅ ځائ نشته ، البته ! دا کيدے شی چه د جمهوريت د لارې دې کفر د اسلام په جامه کې اوښودلے شي لکه سيکولر اسلام او ډيموکريټک اسلام

**۷/ شبهه** : چه دوی ئ پيش کوی ، نو دا شبهه دوی د شوری پيش کوی چه دا نتخابات او جمهوريت خو د شوری مثال لری ، او شوری خو په اسلام کې شته دے ؟

**جواب** : نو ګورئ رونړو اول مونږه دا خبره کوو چه د مغرب مسلط کړی سيکولر عناصر چه هر وخت په اسلامی نړئ کې د جمهوريت د خورولو او نافذ کولو په کوشش کې دي ، هغوی غواړی چه د مسلمانانو د دهوکه کولو دپاره مغربي بې دينه جمهوريت له د شوری نوم ورکړی ، او دا دروغو تبليغ کوی چه دا جمهوريت د شورائی نظام يو نوے شکل دے ، او ددې نه د اسلامی شوری نظام عملی کيږی ، خو ليکن دا خلق دې ياد ساتی چه ديته شورئ نوم

ورکولو سره هغه اسلامی شوری نهٔ ګرځی لکه شراب چه د روحی مشروب او زنا چه د جنسی تقاضا په وجه جائز او حلاله نه ګرځی ، د اسلامی شوری او د انتخابات جمهوريت او د پارلمان په مينځ کې د حق او د باطل فرق دے ، چه د هغې ځينې مونږه لاندې په ترتيب سره بيان وو:

**۱/ فرق** : چه په شوری کې اکثريت ته ترجيح نوی ، او په جمهوريت کې اکثريت ته ترجيح وی ، په شوری کې اکثريت ته ترجيح ځکه نوی چه الله پاک فرمائی : ﴿ وَشَاوِرۡهُمۡ فِي ٱلۡأَمۡرِۖ فَإِذَا عَزَمۡتَ فَتَوَكَّلۡ عَلَى ٱللَّهِ ﴾[1] نو دلته خو دا ذکر شويدی چه کله ته په يوه خبره عزم اوکړے دا خو ندی راغلی «**فأذا عزم اکثرهم**» چه کله په اکثريت عزم راشی نو په هغې باندې عمل شروع کړه ، نو په شوری کې دا ده : چه د امير ذهن ته کومه خبره اوغورځيده نو هغې لره به اعتبار وی ضروری خبره نده چه امير دې د اکثريت تابعداری اوکړی ، او په شوری کې د پيغمبر عليه السلام تابعداری هم ګوره او افراد ئې هم ګوره : د پيغمبر عليه السلام د وفات په وخت کې د صحابه کرامو تعداد څه د پاسه لاکهه ته رسيدلې وو او پديکې د پيغمبر عليه السلام د شوری کسان شپږ دی ، لکه کله چه په احاديثو کې خبره راځی او د پيغمبر عليه السلام د شوری ملګرو نه پکې يو وی نو وائی « احد السته » نو اوس ته سوچ اوکړه چه څهٔ دپاسه د يو لاکه نه د پيغمبر عليه السلام شوری کسان شپږ دی نو دا د اکثريت تابعداری ده ؟ او بيا پدې شپږو کسانو کې چه کومه خبره د پيغمبر عليه السلام خوښه شی نو په هغې باندې عمل کوی .

دغه شان د پيغمبر عليه السلام د اُحد په موقعه باندې د اکثريت رائی دا وه : چه په مدينه کې جنګيږو لکن پيغمبر عليه السلام د اکثريت په رائی باندې عمل اونهٔ کړو او عزم ئی پدې خبره راغلو چه بهر ورته ورځوو ، نو اکثريت ته ئی ونهٔ کتل ، دغه شان د صلح حديبې په موقعه باندې اوګوره : د اکثرو صحابهٔ رائی دا وه : چه مونږه دې صلح اونهٔ کړو بلکه

---

[1] [ سورة آل عمران : ۱۵۹ ] .

جنګ دې اوکړو ، خو د پيغمبر عليه السلام رائی دا شوه چه جنګ نهٔ کوو بلکه صلح کوو ، نو بيا اکثريت لره ترجيح ورنهٔ کړه ، او داسې نور ډير زيات مثالونه دی چه بعضی د هغې نه مخکې د اکثريت پسنديدهٔ موضوع کې واضحه کړے شوی وو هغې ته رجوع اوکړئ .

**۲/ فرق** : په شورى کې دا خبره راغلې ده : ﴿ وَشَاوِرۡهُمۡ فِي ٱلۡأَمۡرِ ﴾ د مشورې امير ته اختيار دے چه دا دې د نورو سره مشوره اوکړی ، او په جمهوريت کې دی چه : «**شاورو عليه**» په زوره پرې مشوره اوکړه نو په جمهوريت کې د اکثريت رائی پده باندې په زوره منلې شی ، او په شورى کې امير ته اختيار دې چه مشوره ترې اخلی او که نهٔ اخلې ، او په جمهوريت کې د اکثريت نه خلاف نشی کولے ، نو ددې نه دا خبره معلومه شوه چه په جمهوريت کې امير نهٔ وی موجود اګر که ځان ته د وخت بادشاه وائی ، وجه ئې دا ده : چه امير اجبار کوی او په جمهوريت کې جبر نشی کولے د عوامو د رائی مطابق به چليږي ، نو چه کله ته جبر نشی کولے نو امير ندے موجود او «**من لم يكن له امير فأميره شيطان**» او چه د چا امير نوی نو د هغې امير شيطان وی ، نو په جمهوريت کې اصلی کردار د امارت شيطان اداکوی ، نو دا خلق ډير ګنده ګنده اذهان لری ځکه بيا داسې ګنده خبرے کوی .

**۳/ فرق** : چه د شورى امر د الله د طرف نه دے ، او د جمهوريت امر د اکثريت د طرف نه دے ، نو شورى يو اسلامی منهج دے ، او جمهوريت مغربی منهج دے ، او په شورى کې امير موجود وی ، او په جمهوريت کې امير موجود نوی ، او په شورى کې امير صرف د الله نه مجبور وی او په جمهوريت کې مشر د اکثريت نه مجبور وی ، نو ديته امير نهٔ ويلې کيږی ، نو د شورى سره ددې جمهوريت هيڅ مطابقت نشته ، لکه حديث کې راځي : «**لَتَشْرَبَنَّ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِي الْخَمْرَ بِاسْمٍ يُسَمُّونَهَا إِيَّاهُ**» [1] او بل روايت کې راځي : «**لتستحلن طائفة من امتى الخمر ويسمونها بغير اسمها**» نو دا جمهوريت يو کفر دے نو دوی دې جمهوريت ته نوم بدل کړی

[1] [ مصنف ابن ابي شيبة : ۹ / ۲۷۹ ] .

او شورى نوم ورته ورکړی او بيا ورته اسلامی شوری وائی ، نو دا اسلامی شوری نوم ورکول ديته دا سراسر ظلم دے او کفر دے او سراسر جبر دے چه دا خلق ئی کوی او پدې زياتی کې دوی مبتلاء دی ، الله دې مونږه ته عافيت اوکړی .

**٤/ فرق** : اسلامی شوری د مؤمنانو ، موحدينو او د شريعت منونکو مسلمانانو يو جماعت او ډله وی ، حالانکه د پارلمانی رائی ( ووټ ) اخستل په يو داسې مجلس د ارکانو په مينځ کې وی چه په کې مسلم ، هندو ، عيسائی ، يهودی ، کميونسټ او ملحد ټول په ټوله يو شان د رائی ( ووټ ) حق لري ، او په دې کې فيصله په جائز او ناجائز او د دليل د قوت ( مضبوطيا ) او ضُعف ( کمزورتيا ) په معيار او بنياد نهٔ وی ، بلکه په اکثريت باندې کيږی .

قرآن کريم چه چرته د شورى ذکر کړے دے نو هغه ئې د مؤمنانو دپاره په طريقه د صفت او وصف بيان کړے دے ، چه کوم په الله تعالىٰ باندې ايمان لري ، د هغه په ذات باندې توکل او اعتماد کوی ، د غټو ګناهونو خصوصا د بې حيائی د کارونو نه ځان ساتی ، او چه دوی له په چا باندې غصه ورشی نو مخ ترې اړوی ، او د خپل رب په آواز باندې لبيک وائی ، مونځونه صحيح صحيح اداء کوی ، او د هغوی په خپل مينځ کې کارونه په مشوره باندې وی ، او د الله تعالىٰ د ورکړے شوي مال نه صرف ( خرچ ) کوی ، او چه په هغوی باندې ظلم و زياتې اوشی نو هغوی ئې بدله اخلی .

قرآن کريم کې الله تعالىٰ فرمائی : ﴿ وَأَمۡرُهُمۡ شُورَىٰ بَيۡنَهُمۡ ﴾[1] ، ليکن جمهوريت او پارلمان د رائی اخستنه ( ووټونه کول ) دا وائی : « أمرهم شورى بينهم وبين غيرهم » يعنی په اسلام کې مشوره صرف د مؤمنانو په مينځ کې وی او په جمهوريت کې مشوره د مؤمنانو او د کافرانو د ټولو په مينځ کې وی ، لهذا اسلامی شوری او د جمهوريت رائی اخستنې ( ووټونو کولو ) ته يو شيز وئيل په حقيقت کې حق او باطل په خپل مينځ کې ميلاول دي .

[1] [ سورة الشورى : ٣٨ ] .

**۵/ فرق**: اسلامی شوری یو الٰهی حکم او د الله راکړے شوے لاره ده ، چه د وحي په ذریعې نازل شوے ده ، او د الله رسول ﷺ ورته عملی جامه اغوستي ده ، لیکن د جمهوریت خو د انساني خواهشاتو او د هغې په آساس او بنیاد باندې د کافرانو د طرف نه جوړه شوے یوه بې دینه نظریه او خیال دے .

**٦/ فرق**: اسلامی مشوره په هغه کارونو کې وي چه په کومو کې نص موجود نهٔ وي او چه نص موجود وي نو د شوری ته د سره ضرورت نه پاتې کیږی ، حالانکه جمهوریت قانون کې د احکام إلٰهیه او د شریعت هیڅ مقام او مرتبه نه وي ، هم دغه وجه ده چه په جمهوریت کې د حاکم او حاکمیت یعنی تشریع حق صرف او صرف د عوامو په اختیار او واک کې وي ، چه اکثریت ئې نافذ کوی .

**٧/ فرق**: په جمهوریت کې اکثریت دا د إلٰه مرتبه او مقام لري ، لهذا د هغوی مرضی او واک دے چه څه قانون ئې خوښ وي جوړوي دې ، او په قوانینو جوړولو کې هیڅ یو خارجی طاقت ( وحي ) په دې کې د کار لرلو حق نوی ، لیکن په اسلامی شوری کې اکثریت نه صرف دا چه شریعت جوړونکې او واجب الإطاعت وي بلکه د شوری ممبران په خپل ځان باندې د شارع ( الله تعالیٰ ) اطاعت لازم کوی ، چه په هره مسئله کې د الله تعالیٰ او د هغه د رسول ﷺ او په جائزو کارونو کې د اولو الأمر ( حَکَم ) خبره منی ، په اسلامی شوری کې امام (حاکم ) په هره مسئله کې د اکثریت د حکم منلو مکلف نوی ، بلکه اکثریت د امام د اطاعت مکلف وي ، تردې څو چه امام د نیکۍ حکم کوی .

**٨/ فرق**: په جمهوریت کې د حق معیار او اساس د خلقو خواهشاتو او د اکثریت رائې وی، لیکن په اسلامي شوری کې د حق معیار اکثریت نه وي بلکه د اکثریت په ځائې د دلیل د قوت اعتبار کولے شي ، اګر که دغه دلیل د یو کس د طرف نه پیش کړے شي .

**٩/ فرق**: جمهوریت د یورپ په الحاد زده معاشره کې پیدا شوے ، او ترقي ئې اوکړه چه هلته دین د ژوند او نظام په ټولو چارو کې بې واکه شوے ، او یواځې د کلیسا په طرف کې

بند وی ، لیکن شوری اسلامي نظام کې د ملا ( شا ) د هدوکي حيثيت لري ، چه په ټولو شعبو کې چرته چه صريح نصوص ( د قرآن او حديث نه دليل ) موجود نۀ وی نو د مسلمانانو نه مطالبه ده چه په خپل مينځ کې په اهم کارونو کې مشوره کوئ .

لهذا د برنو ( پورتنو ) فرقونو په بنياد او اساس اسلامي شوری او جمهوريت دواړه جدا جدا څيزونه دي ، چه يو د اسلام نه او بل د الحاد نه مرسته اخلی ، کوم خلق چه غواړي چه جمهوريت د خلقو په سوچ او فکر کې د شوری پشان اوګرځوي نو يا خو هغوی د اسلام د شورائی نظام نه ناخبره دي ، يا بيا خبر خو دي ليکن د منافقت په وجه د جمهوريت د کفريه نظام د عامو مسلمانانو مخې ته د اسلامي شوری په قالب کې اچول غواړی ، ددې دپاره چه مسلمانان ددې مخالفت ونۀ کړی ، او ددې د منلو سره سره په دې کې شامل او شريک هم شی .

**۸ / شبهه د جمهوريت په باره کې** : نو دوی وائی : چه مونږه دا جمهوريت کوو ځکه چه دا جمهوريت د اسلام سره فی الجمله يعنی په بعضی شايونو کې موافقت لری .

**جواب**: لکه يوه خبره ئې پکې د شوری کړيده ، او د هغې جواب خو اوشو چه دا خو شوری نده ، خو دا دوی چه دا فی الجمله خبره کوی ، نو مونږه وايو : چه دا لږ لږ موافقت ئې د اسلام سره په څۀ کې موجود دے دا خو لګ مونږه ته هم وښائی ؟ يوه خبره د کفر مونږ ته واښائی چه هغه صحيح وی او کومه خبره ده چه تۀ ئې دې خبرې ته مجبوره کړې چه هغه په اسلام کې نشته او ته دې کفر ته ورځې ؟ نو که هغه خبره په اسلام کې شته دے نو بيا خو اسلامی نظام راوله ؟ نو د هغې دپاره چه ته کفر ته ورځې نو دا کفر ته ورتلل خو به ددې وجې نه وی چه دا خبره په اسلام کې نشته دے ؟ اوس که د هغوی سره صحيح خبره وی او په اسلام کې نوی نو پدې خبره خو کافر کيږی ، او که ته وائی : چه هغه خبره په اسلام کې هم شته دے او په کفر کې هم شته دے نو بيا اسلام ولې پريږدې او هغې ته پسې ورځې ؟

**۹/ شبهه: بله خبره دوی دا کوی**: چه انتخابات د اسلام په صدر ( ابتداء ) کې موجود وو ، او هغه پدې شان سره چه پیغمبر علیه السلام خو خپل خلیفه نوو پریخودې ، او هغه وئیلی وو : چه ستاسو چه څنګه خوښه وی نو په هغه طریقه باندې ځانله خلیفه مقرر کړئ ، نو د انتخاباتو دپاره دوی دا شبهه پیش کوی . نعوذ بالله من ذلک .

**جواب**: اول خو مونږه دا وایو چه دا تاسو ته چا وئیلی دی چه پیغمبر علیه السلام خلیفه ندے پریخودے ، پیغمبر علیه السلام پیشنګویئ کړیدی فرمائی : « **يَأْبَى اللَّهُ وَالْمُؤْمِنُونَ إِلَّا أَبَا بَكْرٍ** » [1] نو د ابو بکر ﷺ په خلافت باندې پیغمبر علیه السلام باقاعده پیشنګویئ ورکړیدی ، او دغه شان پیغمبر علیه السلام فرمائی : « **ايتونى بكتاب اكتب لكم بأن لاتذلوا بعدى كى لا يتمنا متمنٍ** » " ماته یو کتاب راوړئ چه زهٔ پکې لیکل اوکړم ددې دپاره چه روستو یو متمنی دا تمنا اونهٔ کړی چه په خلافت باندې قابض شی " نو دا پیغمبر علیه السلام پیشن ګوئي ورکړیده ، او دا چه راغلی دی : ﴿ وَإِذْ أَسَرَّ ٱلنَّبِيُّ إِلَىٰ بَعْضِ أَزْوَٰجِهِۦ حَدِيثًا فَلَمَّا نَبَّأَتْ بِهِۦ وَأَظْهَرَهُ ٱللَّهُ عَلَيْهِ عَرَّفَ بَعْضَهُۥ وَأَعْرَضَ عَنۢ بَعْضٍ ۖ فَلَمَّا نَبَّأَهَا بِهِۦ قَالَتْ مَنْ أَنۢبَأَكَ هَٰذَا ۖ قَالَ نَبَّأَنِىَ ٱلْعَلِيمُ ٱلْخَبِيرُ ﴿٣﴾ ﴾ [2] پیغمبر علیه السلام د عائشی یا د حفصې رضي الله عنهما سره پټه خبره اوکړه، حضرت حفصې رضي الله عنها سره ئې دا خبره به کړې وی چه زما نه روسته به ابو بکر خلیفه وی او د هغهٔ نه بعد به حضرت عمر خلیفه وی ، او یا ئې د حضرت عائشې رضي الله عنها سره کړے ده نو بیا ئې ورته داسې وئیلی دی چه زما نه بعد به ستا پلار ( یعنی ابو بکر ) خلیفه وی او د هغه نه بعد به حضرت عمر خلیفه وی ، نو زنانؤ کې دا صفت شته دے چه یو بل ته خبرے کوی نو دوی دواړو یو بل ته خبرے اوکړے چه پیغمبر علیه السلام خو دغه شان وئیلی دی ، نو پیغمبر علیه السلام ته الله پاک په وحی سره راولیږلو او دغه آیت

[1] [ المستدرک علی الصحیحین ، رقم : ٦٠١٦ ] .

[2] [ سورة التحریم : ٣ ] .

نازل شو ، نو دلته اوګوره پیغمبر علیه السلام مونږه ته خبر پرېخودي دے ، بله دا چه مونږه دا خبره اومنله چه خلیفه ئی مقرر نۀ کړو ، نو د نۀ مقرر کولو خو دا مطلب ندے چه اوس تۀ ددي دپاره د کفارو هغه کفری طریقه استعمالوے او که اسلامی طریقه استعمالوی نو تا ته اجازت دے ، ولې پیغمبر علیه السلام مونږه ته دا وئیلي چه «**تَرَكْتُ فِيكُمْ أَمْرَيْنِ لَنْ تَضِلُّوا مَا تَمَسَّكْتُمْ بِهِمَا كِتَابَ اللَّهِ وَسُنَّةَ نَبِيِّهِ**» [1] چه ما په تاسو کې ده څیزونه پرېخودی دی تاسو به چرته هم ګمراه نشئ ترڅو پورے چه تاسو په هغې باندې منګولې لګولی وی یو د الله کتاب دے او بل سنت د رسول الله ﷺ دی " ، نو اوس د الله د کتاب او د سنت رسول مطابق به ته خپله طریقه چلوے او که د هغې مقابل کې ؟ ولې د هغه خلقو منع قرآن ونۀ کړه چه کومو خلقو ځان له طریقه جوړه کړه : ﴿ ٱتَّخَذُوٓاْ أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَٰنَهُمْ أَرْبَابًا مِّن دُونِ ٱللَّهِ ﴾[2] کله ئی چې خپلو پیرانو او علماؤ ته ئي چه په هر څۀ کې رجوع اوکړه نو الله ورته اووئیل چه دا خو دوی خدایان جوړ کړیدی نو دا نص پرې موجود ندے ؟

**۱۰ / شبهه دوی دا پیش کوی** : د ابو بکر ﷺ په خلافت کې یا د عمر یا د عثمان رضي الله عنهم خلافت چې قائم شویدے نو دا په جمهوریت سره قائم شوے دے ،

**جواب** : مونږه ورته وایو : چه د ابو بکر ﷺ خلافت خو د سره هم په جمهوریت سره ندے قائم شوے او هغه خو د هغه حدیث د وجې نه قائم شوے دے چه «**الْأَئِمَّةُ مِنْ قُرَيْشٍ**»[3] ورنه د دوی رائی خو دا وه چه هغوئ وئیلی وو : «**منا امیر ومنکم امیر**» او دویمه ډله جمهوریت قبلوی انتخابات ئی قبلوی ، نو دلته هغوی د دویم حزب نه په «**الأئمة من قریش**» سره رد کړه ، او د دویمې ډلې اجازت ئی ورنۀ کړو او انتخابات خو د دویمې ډلې اجازت ورکوی ، او

---

[1] [ موطأ مالک : ۵ / ۳۷۱ ] .

[2] [ سورة التوبة : ۳۱ ] .

[3] [ مسند احمد ، رقم : ۱۱۸۵۹ ، وغیرهم ] .

د حضرت عمر رضي الله عنه دِ خلافت انتخاب خو ابو بکر ﷺ پخپله کړے دے چه کله ابو بکر ﷺ وفات کیدلو نو وې وئیل چه عمر ﷺ راطلب کړئ ؟ نو بعضی صحابه کرامو ورته اووئیل : حضرت هغه خو دومره سخت دے او تهٔ هغه په مونږه باندې خلیفه مقرر کوے، نو ابو بکر ﷺ ورته اووئیل : چه کله هغه خلیفه شی نو بیا به هغه نرم شی ، نو دا تعین خو ابو بکر ﷺ کړے دے ، بیا د حضرت عمر ﷺ نه بعد حضرت عثمان ﷺ خلیفه مقرر کیږی ، نو د هغه انتخاب هم د جمهوری طریقې سره ندے شوے ځکه د انتخابی طریقې کې خو د اکثریت رائې وی او حضرت عمر ﷺ په خطبه کې وفرمائیل : چه ما خوب لیدلې دے چه په ماباندې یو چرګ ټونګې وهلې په خوب کې ، او زهٔ د دې نه دا تعبیر کووم چه زه به د یو عجمی سړی د لاسه شهید کیږم نو که چرته زهٔ شهید کړے شوم ، نو په مسلم کې حدیث راځي چه عمر ﷺ اوفرمائیل : «**فالخلافة بين هذه السته**» چه خلافت به ددې شپږو کسانو په مینځ کې وی او شپږ کسان ئې ورته ښکاره کړل : چه عثمان ، علی ، زبیر ، طلحه ، سعد ، عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنهم به وی نو دا شپږ کسان ئې ورته ښکاره کړل ، نو دا شپږ کسان اکثریت دے په یو نسبت سره باقی صحابه کرامو ته ؟ او پدیکې اولنې انکار د خلافت نه عبدالرحمن بن عوف ﷺ اوکړو چه زهٔ خو خلافت نهٔ کووم ، او بیا پدې پنځه کسانو کې فیصله په عثمان ﷺ باندې اوشوه، او بیا ددې په باره کې د زنانه نه هم مشوره نده اغستلې شوے بعضی روایاتو کې راغلی دی او هغه هم انتهائی ضعیف روایات دی چه عبدالرحمن ﷺ د زنانؤ نه هم مشوره اغستې ده ، خو دا خبره غلطه ده ، کتابونو لیکلې دي چه «**لا أصل له**» ، نو ددې شپږو کسانو په مینځ کې خبره اوشوه ، او بخاری کې روایت دے : «**ان عبدالرحمن اقتصد فی ستة فقط**» چه عبدالرحمن ﷺ صرف پدې شپږو کسانو کې کوشش کړیدے نورو خلقو نه ئې مشورے ندی اغستی ، او بیا پدې شوریٰ کې چه کومه مشوره شویده پدیکې اهل الحل والعقد پوهه پوهه خلق وو ، دا خو نهٔ وو چه لیونې ، او روغ، ښځه ، او سړے ، بوډا ، او ماشوم ، او جاهل ، فاسق ، مؤمن ، کافر چه دا ټول دې یو برابر شی

بلکه مشوره ئې صرف د اهل الحل والعقد نه اخستې وه .

بل دوی یو کتاب لیکلې په " د شرعیة الانتخابات " او په هغې کې دوی وائي : چه جزئیت دا صحیح دے د نظام جاهلي نه یعنې د کفری نظام نه جزئیت حاصلول او په هغې کې کار کول نو وائی دا صحیح دے .

**مونږه ورته وایو** : چه دا خبره ستا غلطه ده ، ځکه د نظام جاهلي نه جزئیت نشي جوړیدلې، دوی چه وائي : چه جزئیت صحیح کیدې شی نو دلیل دا پیش کوی : ١/ مسئله د پناه ده : چه پیغمبر علیه السلام جوار حاصل کړے وو د ابو طالب سره ، دغه شان پیغمبر علیه السلام مکې ته راداخل شوے وو په جوار د مطعم بن عدی کې او هغه هم کافر وو ، نو اوګوره د کافر سره ئې پناه اخستې ده ؟ نو مونږه ورته وایو : چه د مطعم بن عدی والا حدیث خو ضعیف دے ځکه ابن اسحاق او ابن هشام ابن کثیر دا روایت اخستې دے او اعتماد ئې کړے دے په روایت د ابن اسحاق باندې لکن دا صحیح ندے ، نو دا حدیث د ابن اسحاق د وجې نه صحیح ندے ، او د سیرت نبوی چه کوم محققین دی نو هغوئ دا خبره رد کړیده چه پیغمبر علیه السلام د دۀ سره پناه اخستې وه ، البته : د جوار په باره کې تاسو یو دلیل پیش کولې شئ نو د حضرت ابو بکر ﷺ د ابن دغنه سره پناه اخستې وه ، په بخاری کې حدیث دے چه ابو بکر صدیق ﷺ هجرت کولو د مکې نه او ابن دغنه یو کافر وو د هغۀ سره په لاره کې میلاؤ شو او نو ابن دغنه ورته اووئیل : چرته ځې یا ابا بکر ؟ نو ابو بکر ﷺ ورته اووئیل : چه زۀ د مکې نه هجرت کوم ځکه خلق مې پدې مکه کې نۀ پریږدی ، نو ابن دغنه چه کافر وو هغه ورته اووئیل : چه ته خو داسې سړے نۀ ئې چه خلق به دې اوباسی ځکه تۀ خو د میلمه عزت ساتې همیشه ، او د مسکین سره دې همیشه ښۀ سلوک کړے دے خو ځرنګه چه د پیغمبر علیه السلام په صفت کې الفاظ راغلی دی نو دغه شان د ابو بکر ﷺ په صفت کې هم دے ، نو ابن دغنه ورته اووئیل : چه تۀ راځه زۀ تا لره پناه درکوم او د ځان سره ئې مکې ته واپس بوتلو ، نو د امن حاصلولو دا طریقه ده چه څوک چاله امن ورکړی نو بیا به دغه امن نۀ ماتوے او کافرو هم د هغې زمانې د استیمان رعایت کولو ، نو هغه ورله پناه ورکړه ، نو د مکې

مشرکانو ته ئې اووئيل : چه ابو بکر لره ما پناه ورکړيده نو هغوئ ورسره دا خبره اومنله خو دا شرط به پکې وی چه دا به خپل عبادت په ښکاره باندې نهٔ کوی بلکه خپل عبادت به په پټه کوی يا په کور کې به ئې کوی ، نو ابو بکر صديق ﷺ خو يو صحابی وو هغه چرته داسې کولې شو خو دوه درې ورځې تيرې نهٔ وې چه بس د کور مخې ته ئې ځان لره يو ځائی برابر کړو او په هغې کې به ئې مونځونه کول او تلاوت به ئې په زوره آواز سره کولو، نو د ابو بکر ﷺ آواز او د قرآن کريم تلاوت کول نو دا ډير زيات متأثره کونکې حالات وو نو زنانه او ماشومان ټول راجمع دی او قرآن کريم ته ئې غوږ ايخودې دے او ابو بکر قرآن تلاوت کوی او ژاړی ورسره ، نو د مکې مشرکان په ابن دغنه پسې راغلل چه تاته مونږ وئيلی وو چه دا ابو بکر به په کور کې عبادت کوی هغه خو بيا د کور نه بهر راوتلې دے او په زوره خپل عبادت کوی ، نو ابن دغنه په ابو بکر صديق پسې راغلې او ورته ئې اووئيل : چه تاسره خو ما دا شرط ايخودې وو چه تهٔ به په کور کې عبادت کوے او تا خو پدې شرط باندې عمل اونهٔ کړو نو ابو بکر صديق ﷺ ورته اووئيل : چه تهٔ دې خپله پناه واپس درواخله .

نو دوی وائی : چه ابو بکر ددې کافر سره پناه اخستې ده او دغه پناه په جاهلی نظام کې اختسل صحيح دی ؟

**نو مونږه ورته وايو** : چه صحيح ده پناه ئې اخستې وه خو جزئيت ئې خو ندې حاصل کړے، دلته جزئيت کوم شي کې دے ، بله دا که بالفرض زهٔ دا جزئيت ئې هم اومنم ، نعوذ با الله من ذلک ، نو بيا ته اوګوره چه د ابو بکر پشان حالت يا د پيغمبر عليه السلام پشان حالت لکه په طائف کې ، دا په تا باندې هم دے او کنه ؟ نو دغه شان حالات خو په تاسو باندې ندی راغلی تاسو خو هر څهٔ ښهٔ په کولاؤ طريقې سره کولې شئ ، ښه په خپل کورونو کې اوسيږئ ښه په مزو او چرچو باندې مو سر هم دے مزو دپاره خو دې پارلمان ته تلې ئې ، او ابوبکر ﷺ خو مفتون وو د هر طرف نه په هغې باندې بنديز وو پابندياني ئې پرې لګولې وے نو هغهٔ خو د مجبورئ د وجې نه پناه اخستې وه ، او ته د ځان تشبيه ورکوے چه ماته خو هم دا حالات دی دا حالات په تاسو کله نه راغلی دی ؟ او بيا مونږه وايو : آيا ابو بکر څه تنزل

کړیدے ، او یا پیغمبر علیه السلام چه د مطعم بن عدی سره ئې پناه اغستې وه نو چرته ئې ورته دا وئیلی دی چه یره ستاسو دا دین خو هم ښۀ دے ؟ یا خیر دے زۀ به لګ رانرم شم ؟ نو دا کار ئې هم ندے کړے ، او بیا ابو بکر صدیق د ابن دغنه په پناه کې دے او په دریمه یا څلورمه ورځ باندې بیا خپل عمل لره دوام ورکړیدے او د حق دعوت ئې خورولو ، نو دا عجیبه خبره ده چه تۀ ماته په نظام جاهلیت باندې د جزئیت نه پدغه واقعه باندې دلیل پیش کوے نو دا خو ډیر عجیب دلیل دے ،

**بل اعتراض** دوی کوی : د حلف الفضول والا واقعه پیش کوی ، نو دا واقعه اصل کې داسې ده : چه پیغمبر علیه السلام فرمائی : چه زۀ د عبدالله بن جدعان په کور کې یو حلف ته حاضر شوے ووم او ماته د هغې نه زیاته خوښه ده چه ماته د هغې په بدل کې سره اوښان راکړے شی نو دغه معاهده ماته ډیره زیاته خوښه وه ، او که بیا زۀ دغه شان معاهدې ته راطلب کړے شوم نو زۀ به خامخا دغه معاهدې ته حاضر شم ، او دا معاهده داسې شوے وه : چه یو زبیدی قبیلې والا سړے وو او دا راغلې په مکه کې ئې سامان خرڅ کړو په عاص ابن وائل باندې ، او عاص ابن وائل ترینه سامان واغستلو او بیا ئې ورلره پیسې نۀ ورکولې ، نو زبیدی قبیلې والا سړی کله یو ته فریاد اوکړو کله بل ته خو چا پرې هم څۀ پرواه اونۀ کړه نو لاړو او عاص ورسره هغه روپۍ نۀ منلې ، نو پدیکې زبیر بن عبدالمطلب راپاڅیدو او جبل ابی قبیس ته اوختلو ، او د بره نه ئې آواز اوکړو چه اے بنی فلان ! اے بنی فلان ! نو ټولو قومونو ته ئې آوازونه اوکړل او ټول راجمع شول چه څۀ خبره ده ، نو دې عبدالله بن جدعان کورته ئې بو تلل او زبیر ورته روټۍ تیاره کړه او پدې خبره باندې ئې معاهده اوکړه چه زمونږ پدې مکه کې دا ظلم شروع شوے دے نو د نصرة المظلوم باندې دوی معاهده اوکړه ، چه کله هم ظالم راپاڅیږی او په مظلوم باندې ظلم کوی نو مونږه به د مظلوم امداد کوو نو دیته ئې نوم کیخودو حلف الفضول ، نو دوی لاړل او عاص ابن وائل ته ئې اووئیل : چه دې زبیدی قبیلې والا سړی ته دا سامان یا پیسې حواله کړه ، نو هغه ئې پرې حواله کړو ، نو دې حلف ته پیغمبر علیه السلام هم حاضر شوے وو او پدې حلف کې د مکې ټول مشران او صنادید قریش

موجود وو ، او په حديث کې هم دغه شان راځي : « حضرت فی بيت عبدالله بن جدعان حلفاً قبل ان يكرمنى الله بنبوة ما اودو ان يكون لی بها حمرا نعم اجتمعت بطون قريش وتحالفوا على نصرة المظلوم بمكة ولو دعيت بمثله لاجبت » نو دوی ددې نه دليل نيس او وائی: چه دا اوګوره پيغمبر عليه السلام هم دې حلف الفضول ته حاضر شويدے ؟

**جواب**: اول خو پدې خبره کې اختلاف دے او بعضی حضرات دا وائی : چه دا قسمه قسمونه اسلام منسوخ کړيدی ، او هر چه دا واقعه شويده نو دا خو د اسلام نه مخکې واقعه شوے وه، او پديکې دا خبره چه «**ولو دعيت بمثله لاجبت**» نو ددينه مراد دا دے چه دغه قسمونه د مسلمانانو ترمينځ هم وی ځکه چه په بل روايت کې داسې راځي : «**لا حلف فی الاسلام**» په اسلام کې د کفارو سره حلف نشته دے '' او بعض حضرات وائی : چه دا قسم باقی دے کولې شی ، مونږ وايو صحيح ته کولې ئی شی نو بيا ستا څۀ مطلب دے چه آيا پيغمبر عليه السلام د دوی سره حاضر شو نو آيا دوی به په نظام جاهلې باندې معاهده کړی وی ؟ آيا پيغمبر عليه السلام د دوی سره په لات او منات باندې قسم کړے وی ؟ او تاسو چه په پارلمان کې حلف کوئ نو د غير الله په قانون باندې حلف کوئ ، نو آيا پيغمبر عليه السلام ورسره د غير الله په قانون باندې حلف کولو ؟ يا پيغمبر عليه السلام په خپل دعوت کې دوی ته څۀ تنازل کړی وی ؟ نو که چرته تنازل ئی کړی وی نو مونږه ته ئی بيان کړئ ، او که چرته نۀ ئی وی کړے نو بيا صحيح خبره زمونږه ده ، نو بيا تاسو ځنګه وائی چه نظام د انتخاباتو دا په هغې باندې بناء دے ؟ او ستاسو پدې انتخاباتو کې ځومره مفاسد دی ، ځومره تنازلات دی دا غټ تنازل ندے چه ته چاته دا نه شی وئيلې چه زۀ په انتخاباتو کې د اسلام دپاره دعوت چلوم نو ته ولې د كفر دپاره دعوت چلوے ؟ او ته د هغې په خلاف راپاځې او هغه ددې نه بند کړے، آيا دا تۀ په جمهوريت کې کولې شی ؟ نۀ ته به خپل دعوت چلوے او هغه به خپل دعوت چلوی ، نو دا ډير لوئ تنازل دے او دا تنازل پيغمبر عليه السلام ندے کړے ، آيا پيغمبر عليه السلام به د هغوی جنډه پورته کړی وی ، نو کلا وحاشا پيغمبر عليه السلام دا کار ندے کړے،

نو دوی دا جزئیت پیش کوی ، چه نبي کریم ﷺ د جاهلي نظام نه جزئیت حاصل کړے وو نعوذ بالله .

**۱۱/ شبهه** ؛ دوی دا شبهه پیش کوی چه انتخابات دا خو یوه مسئله اجتهادی ده ، او یوه قاعده ده «**ولا انکار علی مجتهد**» چه په مجتهد فیه مسئله کې ته په چا باندې رد نشی کولے چه ستا دا مسئله غلطه ده ، ځکه چه هغه خپل اجتهاد کړے وی نو هغه د هغهٔ اجتهادی مسئله ده ، نو دوی وائی : چه دا خو اجتهادی مسئله ده او صحیح ده چه ستاسو نده خوښه نو زمونږه خو خوښه ده نو تاسو په مونږه رد نشی کولے .

**جواب** : چه ستاسو دا مسئله اجتهادی ددې خبرے نه ستاسو څهٔ مطلب دے ؟ آیا دا مسئله په زمانه د خیر القرون کې نهٔ وه موجوده ؟ لکه صحابه کرامو یا پیغمبر علیه السلام دا کار ندے کړے ؟ دا مو مراد دے ، نو دا خو ستاسو په خپل کلام کې تناقض دے ځکه مخکې تاسو اووئیل : چه په صدر د اسلام کې انتخابات موجود وو او اوس وائی : چه مسئله اجتهادی ده ، دا کومو خلقو چه خپل فکر او نظر نوی کنه هغه دغه شان اوری را اوړی اول ئې څه وئیل او وس څه وائی .

**بله خبره دا ده** : چه مونږه دا اومنو چه صحیح ده چه دا خبره په زمانه د وحی کې نهٔ وه موجوده نو بیا خو ددې دا مطلب ندے چه دا به اجتهاد ته متروکه وی چه صرف اجتهاد به پکې کیږی په هغه خبره کې چه هغه په زمانه د وحی کې نهٔ وی موجوده ، بلکه ډیرے مسئلې داسې دی چه هغه به د پیغمبر علیه السلام په زمانه کې نهٔ وی موجودې او اوس به موجودې شی نو د هغې دپاره به کلیات په قرآن او حدیث کې موجود وی نو د هغه اصولو د لاندې به دغه خبره راځی دغه بیا هم اجتهاد ته نهٔ پاتې کیږی ، او که په قرآن او حدیث کې موجوده نشی نو بیا خو اجماع پدې خبره باندې شته دے ، او که چرته تاسو دا معنی کوئ چه دا اجتهادی مسئله ورته مونږه وایو نو د جدید په معنې سره ئې نهٔ وایو چه د وحي په زمانه کې نهٔ وه بلکه مونږه وایو چه پدیکې نص ندے راغلې ، نو مونږه وایو : چه خا نص پکې

ندے راغلي نو آیا دا به صرف اجتهاد ته پرته وی ؟ په هغه زمانه کي دې صریح نص نوی راغلي خو د قواعدو کلیاتو د لاندې خو به وی کنه ، لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ إِنَّآ أَنزَلۡنَا ٱلتَّوۡرَىٰةَ فِيهَا هُدٗى وَنُورٞۚ يَحۡكُمُ بِهَا ٱلنَّبِيُّونَ ٱلَّذِينَ أَسۡلَمُواْ لِلَّذِينَ هَادُواْ وَٱلرَّبَّٰنِيُّونَ وَٱلۡأَحۡبَارُ بِمَا ٱسۡتُحۡفِظُواْ مِن كِتَٰبِ ٱللَّهِ وَكَانُواْ عَلَيۡهِ شُهَدَآءَۚ فَلَا تَخۡشَوُاْ ٱلنَّاسَ وَٱخۡشَوۡنِ وَلَا تَشۡتَرُواْ بِـَٔايَٰتِي ثَمَنٗا قَلِيلٗاۚ وَمَن لَّمۡ يَحۡكُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡكَٰفِرُونَ ۝٤٤ ﴾[1]

دارنګه دا مسئله خو د ډیرو آیتونو په ذیل کي دا خلیږی ، او که چرته دا ووائی : چه دا مسئله اجتهادی ده او مونږه ددې د حرمت ادراک کوو ، او مونږه ددې مصالح وینو او تاسو ئې مفاسد وینئ نو ددې مصالحو د وجې نه مونږه دا جائز کوو نو لهذا تاسو په خپله لاره باندې روان شئ او مونږه به خپله لاره باندې روان شو ، او دیته تحقیق المناط وائی ، چه ده ځان نه په مصلحتونو باندې یوه مسئله روانه کړې .

نو مونږه ورته په **جواب** کې وایو : چه اول خو دا خبره مونږه نهٔ منو چه تاسو ئې مصالح وینئ او مونږه ئې مفاسد وینو نو دا مسئله داسې طریقې سره نده چه دا دې داسې اجتهادی ورګرځی چه تاسو ئې ځان ته د حلت کوی او مونږه به ئې حرمت کوو ، او که بالفرض دا خبره اومنو نو مونږه خو درته ددې تقریبا ۳۲ مفاسد ذکر کړل خو که تاسو پدیکې مصالح وینئ نو دا مصالح بیا په چا سره حاصلیږی ؟ نو دا خو په تجربې سره حاصلیږی په ۵۰ ، یا ۶۰ کاله کې تاسو دا تجربه ونهٔ کړه چه پدې جمهوری نظام سره اسلامی نظام نشی راتلې ، او پدې باندې مصلحتونه نهٔ صحیح کیږی او حدیث کې خو راځی : « لا یلدغ المؤمن من جحر واحد مرتین » او تاسو خو ۵۰ یا ۶۰ سال پدیکې تیر کړل او اوس هم وائی چه پدیکې مصلحتونه شته دے نو دا کوم مصلحت دے ؟ که ستا د خیټې مصلحت وی نو هغه خو بیا ځانته

---

[1] [ سورة المائدة : ٤٤ ] .

مصلحت دے ، او که ته وائی چه د اسلام دپاره پکښي مصلحت لټوم ، يا خو مصلحت د الله جل جلاله په باره کښې وی نو د الله په شان کښې خو خلقو ګستاخۍ اوکړے ، دغه شان د نبی په شان کښې ګستاخۍ اوشوے نو دغه مصلحت دې هم ختم شو ، د مدارسو او مساجدو په شان کښې مصلحتونه نو هغه خو هم وران شول ، د قرآن په شان کښې مصلحت نو هغه خو هم ختم شو نو بیا ددې نه پس کوم یو مصلحت پاتې دے ؟ چه بس دا دې ژوندې پاتی وي .

**بل دوی دا وائی** : چه انتخابات دا یو مصلحت دے د مصالحو مرسلؤ نه ؟

**جواب** : د مصالح مرسله په باره کښې مخکښې مونږه تفصیل سره خبره ذکر کړے وه ، او بله خبره خو دا ده : چه دا مصلحت خو اصل د اصولو د دین نه ندے ، که استحسان یا استصحاب علماء ذکر کوی نو هغه خو د دلیل په تائید کښې ذکر کوی دا نۀ چه هغه بذات خود دلیل دے ، نو دا د اصولو د دین نه ځانته مستقل ندی ، د اصولینو په نیزد باندې چه کله شرائط برابر شی نو بیا هله پدې باندې عمل کوی ، او بل دا چه مصلحت مرسله خو هغه دے چه : «**ما لم يأت نص فيه بعينه بتحريم ولا وجوب مع اندراجها تحت اصل عام**» نو دیته اوګورئ : چه اول به د قرآن او حدیث د یوے غټې قاعدې د لاندې داخل وی او دویمه خبره دا ده : چه نص به پکښې خلاف نوی راغلی ، نو دلته خو درته مونږه بلا نصونه پیش کړل چه دا نظام غلط نظام دے او بیا د هغې نه پس بیا دلته مرسله څنګه وائی ، دا صحیح ده چه جلب المصالح او دفع المفاسد مسئله شته دے خو ددې مطلب دا ندے چه بس کوم مصلحت ستا په عقل باندې برابر راشی نو بس هغه به اخلې او کوم مصلحت اګر که د نص سره مخالف وی نو بس هغه به اخلې او اګر که دا خبره د اصلې کليې د لاندې داخل نوی نو ته به هغه خبره اخلې دا خبره نشته دے.

**دریمه خبره دا ده** : چه دوی وائی چه انتخابات خو هسې یو شکل دے څۀ داسې جوهری څیز خو ندے چه پدې باندې حکم اولګیږی ، خو بس یوه طریقه او لاره ده پدې کښې خو څۀ خبره نشته دے .

**جواب**: دا خبره خو ستاسو بيخي غلطه ده چه يره دا خو هسې شكل دے څه جوهر خو ندي او بس يوه طريقه ده ، نۀ دا خبره غلطه ده ، شكليه خو هغه وى چه هغه يو شكل وى نو پديكي خو تاسو مالونه خرچ كوئ ، كوم سرے چه ستاسو په مقابله كي راشي نو هغه ذاتي دوشمن گنړئ ، او بيا پكي محبت او بغض د يو بل سره كوئ ، او دا تاسو په خپل گمان كي تقرب الى الله گنړئ ، او په يو بل باندي فتوئ لگوئ .

او بله دا چه : تاسو خو دي طرف ته دعوت هم وركوئ او ديته خو تاسو سفينة النجات (د نجات كشتئ ) او سفينة النوح وائى ، چه نور خلق په نورو لارو باندي اسلام راولى نو تاسو ورته وائى : چه دا طريقه د اسلام د راوستلو نده دا غلطه طريقه ده ، نو نورو ته بيا ولي غلطه طريقه وائى ؟ شكليه خو داسي وى چه د هغي سره هر شى جمع كيدلي شى بيا خو پكار دا وه چه تاسو مختلف څيزونه جمع كولے ، نو دا خو جوهرى حيثيت ورته حاصل دے ، او تاسو خو دا هم وائي : چه د اسلام او د توحيد د راوستلو واحده ذريعه هغه انتخابات دى ، نو دا خبرے چه دوى كوى نو دا د ځان نه دفاع كوى لكه الله فرمائي : ﴿ ٱتَّخَذُوٓاْ أَيۡمَٰنَهُمۡ جُنَّةً فَصَدُّواْ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾[1] لكه څرنګه چه منافقينو د قسم نه يو ډال جوړ كړے وو او ځان دپاره ئى دفاع پرې كوله نو دوى هم هغه شان طريقي شروع كړى دى ، او اسلام د هسي شكليو نه منع كړيده لكه الله فرمائى : ﴿ وَإِذَا قَامُوٓاْ إِلَى ٱلصَّلَوٰةِ قَامُواْ كُسَالَىٰ ﴾[2] لكه چه منافقانو به مونځ كولو نو هسي يو شكل د مانځه به ئى جوړ كړو او زړۀ خو به ئى بل خوا وو نو ځكه پرې الله رد اوكړو ، او دا كارونه خو به منافقينو كول او د هغي په باره كي بيا الله فرمائى : ﴿ إِنَّ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ فِي ٱلدَّرۡكِ ٱلۡأَسۡفَلِ مِنَ ٱلنَّارِ وَلَن تَجِدَ لَهُمۡ نَصِيرًا ۝١٤٥ إِلَّا ٱلَّذِينَ تَابُواْ

[1] [ سورة المنافقون : ٢ ] .

[2] [ سورة النساء : ١٤٢ ] .

وَأَصۡلَحُواْ وَٱعۡتَصَمُواْ بِٱللَّهِ وَأَخۡلَصُواْ دِينَهُمۡ لِلَّهِ فَأُوْلَٰٓئِكَ مَعَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَۖ وَسَوۡفَ يُؤۡتِ ٱللَّهُ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ أَجۡرًا عَظِيمٗا ﴿١٤٦﴾ [1] (شكيله به نه جوړوئ په دين كې خالص دين به الله ته پيش كوي ) خو بس د دوى سره خو د اصطلاحاتو بوجئ پرتې وى چه كله يوه اصطلاح پيش كړى او خلق ورلره هغه كفرى ثابته كړى نو بله اصطلاح ورته پيش كړى .

**۱۲/ شبهه** : بله شبهه دوى دا بيش كوى چه مونږه په انتخاباتو كې داخل شوى يو خو وماقصدنا الا الخير مونږه خو پدې لاره باندې اسلام نافذ كوو ، كه اسلام نوى نو نصرب خو به ئې وكړو كنه ، نو د مدارسو تحفظ ورته كوو څۀ نا څۀ خو به اوكړو كنه ، او بيا وائى : چه دا عمل خو مونږه د الله د رضا دپاره كوو نو الله به پرې مونږه ته جزا خير راكوى ، او دليل پيش كوى چه : « انما الاعمال بالنيات » زمونږه نيت پكې صحيح دے ، كه تاسو هر څۀ وائى چه انتخابات كفر دے او كه هر څه وى خو زمونږه نيت پكې صحيح دے ځكه مونږه پرې اسلام راولو .

**جواب**: مونږ وايو چه دا درته چا وئيلې دي چه انما الأعمال بالنيات باندې به خلاص شى چه بس نيت مې ښه دے ، ترڅو پورے چه طريقه د عمل دې برابره نوى نو صرف په نيت باندې كار نۀ كيږى ، او ددې خو ډير مثالونه دى ، لكه سنيما جوړه كړه او دا نيت پكې اوكړه چه زۀ پرې حج كوم ، نو نيت خو دې صحيح دې خو طريقه د عمل دې غلطه ده ، بلكه د عمل كيفيت لره هم اعتبار دے ددې وجې نه شاه ولي الله رحمه الله فرمائى : فرض النواميس » كې الله پاک په مونږه د اعمالو دا شكلونه فرض كړى دي ، كله كله خير دے چه زړۀ دې بل طرف ته لاړ شى خو دا شكل درباندې فرض دے ، دې شكيلې نه هغه د منافقانو شكيله نه ده مراد، دا خو صحيح ده اسلام شكل دے چه ته به راپاسيږې اول به اودس كوى او بيا مونځ كوى په هغه طريقه كوم چه په احاديثو كې ذكر دے ، او داسى نۀ چه بس ته ووائى چه ما

[1] [ سورة النساء : ١٤٥ ـ ١٤٦ ] .

نيت كړے دے بس مونځ اوشو ، لكه حضرت عمر رضي الله عنه باره كې راځى : چه يوه ورځ ئې مونځ اوكړو نو خلقو ورته اووئيل : چه تاسو خو قرأت ونهٔ ويلو ، نو هغه ورته اووئيل : چه خه راځئ چه دوباره مونځ اوكړو ، زما توجه هغه لښكر طرف ته لاړه چه ما يو لښكر روان كړے وو او د هغې په باره كې زما سوچ وو نو د هغې د وجې نه زمانه قرأت پاتې شويدے ، نو دا انتهائى لازمى دى او دوى د شكل نه انكار كوى نو اسلام چه په تا باندې كوم شكلونه فرض كړيدى نو هغه به تهٔ موجوده وے دا نده چه بس تهٔ په هره لاره باندې راتاؤ شې نو صحيح ده ، لكه بعضى خلق يو بدعت په ښهٔ نيت باندې كوى لكه بعضى موليان شو چه دا ګډيږى نو د دوى مقصد پديكې دا دے : چه پدې كار باندې زمونږه نه الله پاک راضى شى ، لكن پيغمبر عليه السلام خو فرمائى : « **مَنْ أَحْدَثَ فِي أَمْرِنَا هَذَا مَا لَيْسَ فِيهِ فَهُوَ رَدٌّ** » [1] دارنګه : « **مَنْ عَمِلَ عَمَلًا لَيْسَ عَلَيْهِ أَمْرُنَا فَهُوَ رَدٌّ** » نو دا خبره كول چه زمونږه نيت برابر دے عمل كه هر څنګه وى نو دا خبره غلطه ده ، بس بيا خو اسلام صرف د فكر نوم شو هر سړے به زړه كې وائى چه ما دا كار وكړو او دا كار مې وكړو ، بلكه د زړهٔ اثر به دې په بدن باندې ظاهروے لكه حديث كې راځي : « **أَلَا وَإِنَّ فِي الْجَسَدِ مُضْغَةً إِذَا صَلَحَتْ صَلَحَ الْجَسَدُ كُلُّهُ وَإِذَا فَسَدَتْ فَسَدَ الْجَسَدُ كُلُّهُ أَلَا وَهِيَ الْقَلْبُ** » [2] .

**بله خبره دوى دا كوى** : چه مونږه پدې لاره باندې اسلام راولو چه په ملک كې اسلام نافذ شى ؟

**جواب** : مونږه وايو : چه دا كار ناممكن دے پدې لاره باندې شريعت راوستل دا غلطه خبره ده ځكه چه جمهوريت يو خپل فكر او سوچ لرى او هغه سوچ دا دے : چه په كوم ملک كې كوم نظام رامنځ ته كيږى نو هغه به د اكثريت نه راپيش كيږى عوام د قانون سرچشمه ده هغوى به ئې راوړاندې كوى او اكثريت به پرې حاصليږي يعنى اكثريت پديكې آزاد دے چه

(1) [ صحيح البخاري ، رقم : ٢٤٩٩ ] .

(2) [ صحيح البخاري ، رقم : ٥٠ ] .

کوم نظام هم راځکې کړی نو صحیح دے ، نو چه اسلام راځی نو هغه به هم د اکثریت په خوښه راځی نۀ ددې وجې نه چه دا د الله قانون دے ، ددې خبرے مطلب داشو چه اوس د اکثریت خوښه ده چه څه کوی ، نو جمهوریت خو عوامو ته اختیار ورکړو او د اختیار او آزادئ مطلب دا دے : که چرته ته ددې حق لرې ! چه خلق اسلام ته رادعوت کړے پدې لاره ، او هغه بل سړے ددې خبرے حق لری چه هغه خلق کفر ته رادعوت کړی او تۀ هغه سړے ددې خبرے نه نشی منع کولے ، نو دا کوم اسلام دے چه یو طرف ته تۀ سړے رادعوت کوے چه اسلام ته راشه او بل طرف ته دعوت چلیږی چه کفر ته راشئ او تۀ په دغه سړی باندې پابندی نشی لګولې نو پدې لاره باندې اسلام چرته هم نشی راتلې .

**دویمه خبره دا ده** : که بالفرض مونږه دا اومنو چه تا پدې جمهوریت باندې اسلام نافذ کړو خو په جمهوریت کې قانون دا دے : چه کوم یو سړی ته په اکثریت باندې حکومت میلاؤ شی نو دا حکومت به د محدودې مودې دپاره وی لکه په اکثرو ملکونو کې موده پنځه کاله ده نو د پنځو کالو دپاره به تۀ حکمران یئ ، او د پنځو کالو نه بعد به تۀ د حکومت نه معزوله کیږے او تا اسلام نافذ کړے وو ، نو زه صحیح شوه ګڼې اول خو مونږه وایو چه دغه لاره غلطه ده خو زه تا نظام نافذ کړو او خلقو اومنله چه امیر المؤمنین شوی نو پنځه کاله بعد چه په خپله معزوله کیږی بغیر د څه خبرې نه ، نو دا خبره خو د اجماع نه خلافه ده نو دا بیا د اسلام نه خلاف کار شو ځکه اجماع پدې خبره باندې ده چه کوم امیر المؤمنین مقرر کړے شو نو هغه امیر به تر هغه پورے امیر وی چه ترڅو پورے ژوندې وی «**الا ان تروا کفرا بواحاً**» مګر که ښکاره کفر پکې راشی نو بیا د لرې کولو اجازت تاته شته دے ، او چه کافر شوے نوی او لرې کولې شی نو دا خو د اجماع او اسلام نه خلاف کار دے ، ورسره دا خبره هم ده چه تا خو اسلامی نظام نافذ کړے وو او ستا نه روسته بل سړے راشی او هغه اسلام نۀ نافذ کوی نو اسلام دې محدود او منحصر کړو ، او مونږه وایو : چه اسلام دې عالمی دین اوګرځی ، دا نه چه پنځه کاله اسلام او پنځه کاله کفر خه او بیا به دې خلقو څه حکم وی

چه کله اسلام ته راځی او کله کفر کې داخلیږی نو دا خبره غلطه ده . فتدبر ! !

**دریمه خبره دا ده**: چه جمهوریت ته د علماؤ او د دینداره خلقو داخلیدل د اسلام په نیت دا غلطه خبره ده ، د جمهوریت په لاره خو اسلام نشی راتلې دا خبره اوشوه ، ځکه چه پدیکې هر کار د اکثریت تابع او ته اسلام د اکثریت د وجه راولې نو دا اسلام اسلام ندې ځکه مونږه وایو چه اسلام به ددې وجه نه راولو چه دا د الله تعالیٰ دین او قانون دے ، او ته بیا هم پدې جمهوریت کې حصه اخلی دا نقصان دے ، نو ددې وجې نه به د خلقو پدې جمهوریت باندې اعتماد پیدا کیږی ، ځکه خلق به وائی : که جمهوریت باطل څیز وے نو دې علماؤ پکې بیا ولې حصه اخستله ، نو تهٔ ئی د اسلام دپاره استعمالوے او که صبا له بل سړے راشی نو هغه به بیا هم دا جمهوریت د کفر دپاره استعمالوی او په دلیل کې به دا پیش کوی چه فلانې مولانا صاحب چه په جمهوریت کې حصه اخستې وه ، لکه نن صبا خلق دا خبره مونږ ته کوي

**څلورمه خبره دا ده** : چه په انتخاباتو سره اسلام نشی راتلې بلکه په انتخاباتو سره به جمهوریت او د غیر الله قانون راځي ځکه جمهوریت یو خپل فکر او سوچ لری او هغه فکر سیکولر فکر دے تر هغې پورے تهٔ پدې جمهوریت اسلام نشی نافذ کولے ترڅو پورے چه تا د خپل ځان نه دین نوی ایستلې ، لکه مساوات دے نو ته به هله جمهوریت ته ورداخلیږے چه ته ښځه او سړے یو برابر اوګنړې ، ته به کافر او مسلمان یو برابر کوے ، ته به عالم او جاهل یو برابر کوے نو تهٔ به د ځان نه دینی تفاضل لرے کوے ، او چه دغه تفاضل تا د ځان نه لرې کړو نو آیا دا اسلام بیا اسلام پاتې شو ؟

**پنځمه خبره دا ده** : د هر یو څیز لاره خپل طرف ته تلې وی ، جمهوریت یو سیکولر نظام دے نو دا به سیکولریزم ته ځی او دا چه کوم نظام نافذ کوی نو هغه به سیکولریزم وی او سیکولریزم د هیچ چا سره نهٔ جمع کیږی ځکه هغه ځان سره په سیاست کې یو دین هم نه جمع کوي نهٔ د یهودیت سره جمع کیږی ، نهٔ د نصرانیت سره جمع کیږی ، او نهٔ د اسلام سره جمع کیږی ځکه هغه وائی چه د دین په سیاست او حکومت کې څهٔ کار نشته دے ، نو د جمهوریت

لار سيکولريزم ته تلې ده او پدې لاره باندې اسلام نشي نافذ کيدلې .

**بله خبره دا ده** : چه جمهوريت کيپټيلزم غواړي او جمهوريت د کيپټيلزم يوه نقشه ده ، نو تۀ چه کله ديته ورداخل شوے نو تۀ بغير د کيپټيلزم نه پاتې کيدې نشې پدې نظام کې ځکه تۀ به صبا بيا ووېونه په څۀ باندې ګټې نو سرمايه دارانه نظام به تۀ خامخا منې ، او چه کله دې سرمايه دارانه نظام اومنلو نو بيا سود او رشوت هر څۀ ته به غاړه ايږدې .

**بله خبره دا ده** : چه اکثريت تۀ حاصلولې نشې چرته هم داسې نشې کيدلې چه تا اکثريت حاصل کړو ځکه چه د اکثريت دپاره د ډيرو دروغو ضرورت دے ، او د اکثريت دپاره د ډيرو پيسو ضرورت دے چه خلقو ته رشوتونه ورکړے چه خلق بيا تاله ووېونه درکړي ، دغه ناجائز کارونه به اول کوے ، نو بيا پدې طريقې سره اسلام تۀ نشې راوستلې .

**بله وجه ئې دا ده** : چه تۀ پدې طريقې سره اسلام نشې نافذ کولې وجه دا ده چه مونږه وايو: چه کله ته جمهوريت کې وردننه شوے نو بيا به تۀ د اساسي قانون لحاظ ساتې او اساسي قانون جمهوريت دے نو بيا دې هم دين د خواهش تابع کړو ځکه اساسي قانون د خواهش په تابع جوړ شوے دے او دا هم ناروا کار دے ، او که تۀ وائې چه زۀ به نظام راولم او اساسي قانون دې ختم شي نو بيا به ستا حکومت هم ختميږي ځکه چه ته ددې اساسي قانون په بنياد باندې دې حکومت ته رارسيدلې يئ دې جمهوريت تا ته اجازه درکړے وه چه ته ودريږه .

**بله خبره دا ده** : چه ته په جمهوريت کې راغلې نو ته صحيح اسلام نشې نافذ کولې ، ځکه د اسلام د ټولو نه غټه شعبه امر بالمعروف او نهى عن المنکر ده او دا تۀ نشې کولې ځکه چه جمهوريت آزادي غواړي ، او ته بيا دا کولے شې چه په ملک کې کومه يوه سيکولر پارټي وي هغه ته ختمه کړے کولې شې ؟ نشې کولې ، نو دا بيا کوم اسلام دے چه نۀ پکې امر بالمعروف شته او نۀ پکې نهى عن المنکر شته دے . نو دغه ددوي يو څو غلطې شبهې وے او دهغې جوابونه ذکر شول .

## د غلط فهمئ درې وجې

نو اوس هر كله چه دغه سيكولر او جمهوريت دومره واضحه گمراهی ده او ددې باوجود بيا هم دغه خلقو د اسلامی نظام راوستلو دپاره دغه مغربی لاره اختيار كړيده نو ددې خلقو د غلط فهمئ درې وجې كيدے شي :

**اوله وجه** : يا خو دغه خلق په اصل كې ډيموكراسی پوره نۀ پيژنی ؛ ځكه چه په ډيموكراسئ كې خو اعلیٰ حاكميت او د قوانينو د جوړولو حق د خلقو دے ، نۀ د الله تعالیٰ ، يعنی په ډيموكراسئ كې خلقو ته اختيار وركول كيږی چه هر څنګه نظام او قوانين د ځان دپاره غواړی جوړ ئې كړی په داسې حال كې چه په اسلامی نظام كې د اعلیٰ حاكميت او د تشريع حق صرف او صرف د الله تعالیٰ دے ، خو په ډيموكراسئ كې آخری فيصله د خلقو وی نۀ د الله تعالیٰ نو دغه خلق څنګه ډيموكراسئ په لاره كې د الله تعالیٰ نظام نافذولې شی ؟

**دويمه وجه** : دويمه وجه به دا وی چه دغه خلق په حقيقت كې په اسلام نۀ پوهيږی صرف اسلامی علم او شريعت ته منسوب خلق دي خو د اسلام په روح او تقاضا او په خصوصياتو نۀ پوهيږی ، نۀ خو د اسلام نه خبر دي ، او نۀ په اسلام كې د حاكميت د نظرئې نه خبر دي ځكه چه دوی تر اوسه پورے د اسلام او ډيموكراسئ په مينځ كې فرق هم نۀ پيژنی.

**دريمه وجه** : دريمه وجه چه دا خلق په دې پوهيږی چه اسلام او ډيموكراسی دوه جدا جدا نظامونه دي خو چونكه د اسلامی نظام راوستل جهاد ، قربانئ او كړاوونه زغمل (تيرول) غواړی ، او دوی دې كار ته تيار نۀ دي ، بلكه د خپلو دنياوی مقاصدو او مصالحو تحقق ورته د ډيموكراسئ له لارې آسان ښكاری نو د منافقت د وجې په ډيموكراسئ باندې د اسلام نوم ايږدی ، تر څۀ وخته پورے به عام خلق په دې باندې تيرباسی ( خطاء كړی ) چه د دوی خو اسلامی تنظيمونه دي او د اسلام دپاره كار كوی او بل طرف ته د طاغوت د لارې په خپلولو په آسانئ او بې قربانئ طريقې په حاكميت كې د سيكولر ډلو سره شريک شی ، او د حكومتی عهدو نه دوی هم خوندونه واخلی .

خو شريعت ، عقل ، تاريخ او تجربه ټول دا ثابتوی چه د انتخاباتو او ډيموکراسئ له لاری اسلامی نظام په هيڅ طريقې سره نشی نافذولې او مخکې مونږه د دوی هغه شبهاتو په مختصر انداز سره رد وکړو اوس مونږ ددې موضوع په آخر کې ددې خپلې دعوې دپاره لس دلائل ذکر کوو ، اګر چه پديکې به اکثرې خبرې مخکې ذکر شوی وي خو اوس ئې بطور خلاصه او مستقل عنوان په شکل ذکر کوو چه اصل خبره ذهن ته واپس راشی :

******

## د جمهوري نظام په ذريعې سره د اسلام د نه نافذيدلو لس ( 10 ) دلائل

**۱/ دليل** : په ډيموکراسئ کې د حکومتی نظام او قوانين د خلقو د طرف نه د خلقو په لاسونو او د خلقو دپاره جوړيږی نو په دې بنياد په ډيموکراسئ کې هر شاملې ډلې دپاره د ټولو نه مخکې دا منل لازم دي چه نظام به د خلقو په خوښه جوړيږی ، تردې چه اسلامی نظام هم راځی نو په دې بنياد به نۀ راځی چه هغه د الله تعالیٰ د طرفه يو مکلفيت دے ، بلکه په دې بنياد به راځی چه د خلقو خوښ دے ، په ډيموکراسئ کې به خلقو ته پوره پوره واک ورکول کيږی چه اسلام غواړئ او که غير اسلام ؟ په اسلام کې خلقو ته دغه حق ورکول د اسلام د فکر او شريعت سره ښکاره مخالفت لري .

د پورتنئ خبرے بله معنی دا ده : چه هر اسلامی تنظيم چه په انتخاباتو کې برخه او حصه اخلی په هغوی لازم دي چه د ټولو نه مخکې دا اومنی چه څرنګه دوی ته اجازت دے خلق اسلام ته راوبلی ، نو دغه رنګه غير اسلامی تنظيمونه ( NGO ) ته هم دا حق حاصل دے چه مسلمانان کفر ته راوبلی ، ددې نه بعد د ډيموکراسی اصولو مطابق مذهبی او اسلامی تنظيمونه هيڅ حق نۀ لری چه دوی د هغوی مخالفت اوکړی .

**۲/ دليل** : په پارلمان کې د اکثريت تنظيم د هر قسم قوانينو د جوړولو او منظورولو حق لری او تر څو چه اسلامی تنظيم پارلمان کې اکثريت ونۀ لری د قانون جوړولو حق هم نه لری

، د پارلماني اصولو په بناء په اقليت باندې دا لازمه ده چه د قانون جوړولو دپاره د اکثريت حق اومنی ، اګر که هغوی د اسلام په خلاف قوانين جوړ کړی چه په يو مسلمان ملک کې د اسلام په خلاف د قوانينو د جوړولو حق تسليمول د اسلام خلاف ډير لوئی اقدام دے مسلمانانو له پکار دي چه دا اجازت هيڅ چاته ورنکړی چه په ملک کې غير اسلامی قوانين جوړ کړی .

**٣/ دليل** : د انتخاباتو ګټونکی تنظيم ته دا حق ورکول کيږی چه د څلورو يا پنځو کالو دپاره حکومت اوکړی ، او نور خلق به د هغوی حکومت د دغې وخت دپاره منی ، که بالفرض کوم اسلامی تنظيم اکثريت تر لاسه کړی او اسلام نافذ هم کړی نو بيا به هم د اسلام نفاذ د څلورو يا پنځو کالو دپاره وی او د خپلې مودے پوره کولو نه روسته به د حکومت نه لاس وينځی چه دا کار په اسلام کې د اجماع خلاف دے ځکه په اسلام کې حاکم تر هغې وخته پورے د حاکميت حق لری چه ترڅو ژوندے وي او د حاکميت شرعی اهليت لری ، سوال راځی : چه که شرعی اهليت لری نو بيا ولې لری کيږی او که شرعی اهليت نه لری نو بيا ولې د دويم ځل دپاره د حاکميت حق ورکول کيږی ؟

دويم مخالفت ئې د اسلام سره دا دے : چه هغه اسلام چه دوی نافذ کړے وی هغه به هميشه دپاره نافذ وی خو په ډيموکراسی نظام کې به هغه څلور يا پنځه کاله روسته به دغه نظام پخپله ختم شی ، او خلقو ته به يو ځل بيا دا حق ورکړے شی چه اسلام غواړئ او که غير اسلام ؟ چه په دې کار سره بيا سيکولر ډلو ته حاکميت ته د رسيدلو موقع ورکول کيږی.

**٤/ دليل** : د اسلام د حاکميت او د ډيموکراسئ د حاکميت نظامونه دوه ښکاره ښکاره نظامونه دي د اسلامی تنظيمونو د طرفه په ډيموکراسئ کې شامليدل د کفری ډيموکراسئ نظام د تائيد او توثيق په معنی دے عام خلق چه کله وګوری چه علماء هم په ډيموکراسئ کې حصه اخلی او انتخاباتو ته ودريږی نو په ډيموکراسئ کې د دوی د شموليت د وجې نه عامو خلقو سره دا فکر پيدا کيږی چه کيدے شی ډيموکراسی به هم يو حق نظام وی ، ځکه چه که نا حقه وے نو دينی علماؤ به پکې حصه نه اخسته ، علماء که هر څومره د خپل مشارکت

دپاره د مجبورۍ او د دعوت د مصلحت تاويلونه او دلائل خلقو ته وړاندے کړی عام خلق پرې نۀ پوهيږی ، ځکه چه په پارلمانی نظام کښ علماء او سيکولر اشخاص ټول په يو قسم اصولو چليږی ، او په عمل کښ هم د دواړو تر مينځ هيڅ فرق نۀ ليدلے کيږی .

**٥/ دليل** : هر نظام يو عملی سوچ او فکر لری چه هغه نظام ته د رسيدلو دپاره لاره او وسائل هم د دغې فکر نه اخذ کيږی د ډيموکراسئ فکر سيکولرزم ده او دغه شان انتخابات هم سيکولرزم ده ، ځکه چه د انتخاباتو دپاره اساسی او بنيادی شرط سياسی مساوات او برابر والې دے او دغه برابروالې هغه وخت راتلے شی چه د ټولو اړخونو د ډيموکراسئ دپاره خپل دين پريږدی ، او دا ځکه چه دين انسانانو ته په يو بل باندې د تفاضل ( غوره والی ) درس ورکوی د مثال په طور : اسلام وائی : چه مسلمان د کافر نه غوره دے ، خو ډيموکراسی وائی : چه دا دواړه يو برابر دی او مساوات ( برابر والی ) يواځی په هغه صورت کښ راځی چه کله د کفر او اسلام خبره د مينځ نه لری شی .

په هم دې بنياد انتخابات په ډيموکراسئ پورے خاص دی د انتخاباتو له لارے يواځی ډيموکراسی راتلے شی نه چه اسلام ، ځکه څنګه چه اسلام له ډيموکراسئ نه يو بنکاره دين دے نو د نافذولو لاره او وسيله ئې هم د ډيموکراسئ نه بنکاره ده .

لکه څنګه چه ډيموکراسی د کميونزم ، عيسائيت ، يهوديت او نورو اديانو سره يوځائی والې نه منی هم دغه شان اسلام هم د نورو اديانو او طريقو سره يوځائی والې نۀ منی ، او نۀ د نورو لارو قائمولے شی ، اسلام به يواځې په هغه طريقه قائميږی چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښ پرې قائم شوے وو ، هم ددې وجه نه د باطلو لارو د اسلام د نفاذ دپاره کوششونه يو ناروا او د عقل او فطرت نه خلاف کار دے .

**٦/ دليل** : ډيموکراسی د سرمايه دارانه نظام ( کپيټليزم ) نه د پيداکيدونکی نظام عملی نمونه ( شکل ) ده ، څومره چه په اسلامی نړئ کښ ډيموکراسی ټنګيږی هم هغې هومره سرمايه دارانه نظام سود او احتکار ( ذخيره اندوزی ) باندې ولاړ نظام چه د اسلام مخالف اقتصادی نظام دے ټنګيږی که چرې بالفرض يو اسلامی تنظيم د ډيموکراسئ له لارے قدرت ته

اورسيږی هغه هم په آرام آرام سره د سرمايه دارانه نظام حصه ګرځی او د اسلام د اقتصادی نظام نه اوځی ( خارجيږی ) .

**۷/ دليل** :انتخاباتی سياست يو ډنډ دے چه يو ځل په کې يو اسلامی تنظيم ور اوغورځيږی بيا ئې د هغې نه وتل انتهائی مشکل او ګران کار وی ، ټول هغه اسلامی تنظيمونه چه يو ځل په ډيموکراسۍ کې ور دننه شوی دی هغوی نور د اسلام د غلبې دپاره انقلابی جهادی کوششونو نه لاس اخيستے دے ، ځکه د ډيموکراتيک سياست دپاره دا شرط دے چه مسلح جد وجهد به نۀ کوے ، د مسلحې مقابلے پرېښودل او په ډيموکراسۍ او انتخاباتو پورے د اسلام د غلبې د اميدونه تړل ، او دغه کار ته د اسلامی مقابلے نوم ورکول د اسلام د نفاذ په لاره کې يو خطرناک خنډ دے ، ځکه چه ددې لارې ( انتخابات ) په وجه باندې د مسلمانانو زړونو نه د جهاد جزبه او د هغې نتائجو باندې بې اعتماده کيدل دي ، په دې ميدان کې د مصر د اخوان، د افغانستان ، پاکستان ، الجزائر ، او داسې نورو اسلامی تنظيمونو ناکامه تجربې د ټولو نه واضحه مثالونه دي ، نۀ يواځې دا چه د اوږدې مودې د تيريدو سره سره ئې اسلامی نظام نافذ نه کړے شو ، بلکه د اسلام دشمنانو په ډير مکر او مهارت د مجاهدينو په خلاف په خپل قطار ( صف ) کې ځان سره اودرول ، او خبره دې ځائې ته را اورسيده چه تش په نامه اسلامی ډيموکرات تنظيمونو هم خپل ټول تبليغاتی وسائل د جهاد او مجاهدينو په خلاف د صليبيانو سره هم آهنګه کړي دي .

**۸/ دليل** : ډيموکراسی يو داسې نظام دے چه په هغې کې اسلامی تنظيمونه اکثريت نه شی ګټلے ، دا ځکه چه د ډيموکراسۍ فکری او سياسی جوړښت داسې دے چه هلته به سرمايه دارن ، فيوډالان ( د جائداد خاوندان ) خانان ، ملکانان ، صنعت کاران ، لوئی تاجران او داسې نور خلق قدرت ( يعنی اقتدار ) ته ورسيږی ، ځکه چه په ډيموکراسۍ کې قدرت ته د رسيدلو دپاره د ټولو نه لويه او مهمه وسيله د مال صرف ( خرچ ) کول دي ، او ددې دپاره رشوت ورکول د خلقو رائې ( ووټ ) په پيسو اخستل ، د خلقو دهوکه کول ، دورغژنې وعدے ورکول او د ځان په ګټه او د مخالف په خلاف فراخه تبليغات کول هم د انتخاباتو هغه ضرورتونه

دي چه د بې د هغې نه په انتخاباتو کې کامیابیدل ممکن نه دي ، نو د انتخاباتو دپاره دغه لاره انتخابول دا خو نۀ اسلام دے او نه د اسلامی تنظیمونو په وسع پوره ده .

**۹/ دلیل** : که چرے یو اسلامی تنظیم ددې ټولو خنډونو او مشکلاتو سره سره بیا هم په انتخاباتو کې اکثریت وګټی او اقتدار ته ورسیږی بیا به هم د دغه اساسی قانون د انتخاباتو ګټونکې تنظیم ته دا اجازه نه ورکوی چه مکمل شریعت نافذ کړی او د اساسی قانون بدلولو ته ئې نور سیکولر قوتونه نه پرېږدی ، که چرې اساسی قانون پرېږدی او مکمل شریعت نافذ کړی نو بیا ئې په قدرت کې د پاتې کیدلو جواز له مینځه ځی ، ځکه چه هم ددې اساسی قانون د مخې د انتخاباتو له لارے قدرت او اقتدار ته رسیدلے دے چه قانون ځی نو د دوی د حاکمیت جواز به هم ورسره ځی .

**۱۰/ دلیل** : د انتخاباتو له لارې قدرت ته رسیدونکې اسلامی تنظیم که اسلام نافذ هم کړی بیا به هم مکمل اسلام نه وی ځکه چه د اسلامی حکومت یوه اهمه ذمه واری ( امر بالمعروف او نهي عن المنکر ) ده او د ټولو نه لوئی منکر دا دے چه په اسلامی ملک کې دې غیر اسلامی احزاب ( ډلې ) موجود وی ، او د غیر اسلامی فعالیتونو ( کارونو ) د کولو اجازه دې هم ولری ، اسلامی حکومت به د ټول سیکولر او مرتدې ډلې د فعالیت نه منع کړی ، افراد به ئې اسلام ته راوبلل کړيشی او د انکار په صورت کې ئې ختم کړی ، انتخابی حکومت دغه کار هیڅ کله نشی کولے ځکه چه ډیموکراسی هر چا ته د هرې عقیدے د بیان او اظهار آزادی ورکوی .

او هم دغه شان دغسې حکومت د کفارو په خلاف د اقدامی جهاد فریضه هم نه شی اداء کولے ، بلکه ددې په خلاف به د بین الاقوامی قوانینو په اساس د ټولو کفری ملکونو سره د امن او تعاون ښه روابط ولری .

هم دغه شان به د ډیموکراتیک انتخابی حکومت د اقوام متحده د سلامتی کونسل ( امن شوریٰ ) او دغه رنګه عالمی معاهدو په پوره پوره پابندی کوی او د خلاف ورزئ په صورت کې به په دۀ باندې عالمی پابندیانې لګیږي .

دا ټول هغه دلائل دي چه ددې نه ښکاره شوه چه د اسلام عملی نفاذ او ډیموکراسۍ په خپل مینځ کې مخالفت دے .

د اسلام د راتګ اصلی مقصد دا دے چه دا په نورو باطلو ادیانو غالب شی نه دا چه د هغو سره یوځائی د تساوی په اساس ژوند وکړی لکه الله تعالیٰ فرمائی :

﴿ هُوَ ٱلَّذِىٓ أَرۡسَلَ رَسُولَهُۥ بِٱلۡهُدَىٰ وَدِينِ ٱلۡحَقِّ لِيُظۡهِرَهُۥ عَلَى ٱلدِّينِ كُلِّهِۦ وَلَوۡ كَرِهَ ٱلۡمُشۡرِكُونَ ﴿٩﴾ ﴾[1]

**ترجمه** : الله تعالیٰ هغه ذات دے چه رالیږلے ئې دے رسول الله خپل ( محمد ﷺ ) په هدایت او په حق دین چه غلبه ورکړی الله تعالیٰ دغه حق دین ته په ټولو دینونو باندې ، اګر که مشرکان دغه غلبه بده ګنړی .

نو پدې اساس به اسلام په ډیموکراسۍ غالب وی ، نۀ دا چه د هغې په چوکاټ کې وچلیږی.

وبالله التوفیق

****

[1] [ سورة الصف : ٩ ].

# اسلام او په جمهوريت کې تضاد

| شماره | اسلام | جمهوريت |
|---|---|---|
| 1 | قانون جوړونکے الله تعالیٰ دے | اصل قانون جوړونکے پارلمان دے ، تردې چه قرآن هم د پارلمان د منظورۍ نه غير قانون نۀ دے |
| 2 | قرآن د چا د منظورۍ محتاج ګنړل ښکاره کفر دے | د پارلمان حُرمت او اختيار نۀ منل د دولت او رياست نه بغاوت دے |
| 3 | هر هغه څوک چه د بنيادی عقيدې يا حکم نه انکار کوی کافر دے | چا ته چه پارلمان کافر نۀ وائی کافر نۀ دے لکه شيعه ، ملحدين ، منکرين حديث |
| 4 | مرتد وژل واجب دي | مذهبي آزادی ده ، اقليت ته حقوق حاصل دی |
| 5 | مسلمانان او کافران مساوی (برابر) نۀ دي | مساوي دي ، که چرے يو ووټ هم ډير وو کافر ښۀ دے |
| 6 | پوهه او ناپوهه مساوی نۀ دي | مساوي دي ، که چرې يو ووټ هم ډير وو جاهل ( ناپوهه ) ښۀ دے |
| 7 | پرهيزګار ( نيک ) او ګناهګار (بد ) برابر نۀ دي | مساوي دي ، که چرې يو ووټ هم ډير وو ګناهګار ( بد ) ښۀ دے |
| 8 | سړي د ښځو حاکمان دي | سړي او ښځې مساوي دي |
| 9 | ښځه مشره نۀ شی کيدلے | ښځه مشره کيدلے شي |
| 10 | پارټی بازی کول حرام دي ؛ ځکه مسلمانان تقسيم کيږی | د څۀ مقصد لپاره پارټی بازی کول قانونی دي |

| | | |
|---|---|---|
| 11 | په پارټيانو جوړلو سره مسلمانانو لره تقسيم كونكې مشرانو وژل واجب دي | دوي لره سيكورټي وركول د دولت ذمه واري ده |
| 12 | هر څوك چه عُهده غواړي هغه نا اهله دے | عُهده غوښتل لازمی دي ، ددې د حاصلولو دپاره هر ممكن كوشش پكار دے |
| 13 | رائې به صرف د اهل حل وعقد (د شريعت تابعدار ، اهل علم او كامل العقل خلقو ) نه اخستلے كيږی | ووټ د هر بالغ حق دے ، چه د اتلّسو 18 كالو وي |
| 14 | فيصله به امير المؤمنين د طرف نه مقرر شوے سړے كوی | فيصله به په اكثريت باندې كيږی ، چا لره چه اكثريت مشر كړی نو هغه به مشر وی |
| 15 | د خپل ځان صفت كول منع دي | هيڅ خبره نده |
| 16 | د كافر نه به رائې نهٔ اخستلے كيږی | اخستلے كيږی به |
| 17 | فاسق ( نافرمانه ) مسلمان د رائې اهل نه دے | فاسق مسلمان هم د رائې اهل دے |
| 18 | امير به تر مرګه پورے امير وی | د محدود وخت دپاره به وی |
| 19 | ښكاره كفر يا ډير ظلم په وجه به امير ختمولے شي | خپله موده كې چه هغه څه كوی نو كوی دې نه ختمولے كيږی ، په دې شرط چه د دولت د قانون خلاف ونهٔ كړی |
| 20 | د حق معيار قرآن وسنت دے | د حق معيار اكثريت دے |
| 21 | كافر د مسلمانانو وړوكے او غټ مشر نشي جوړيدلے | جوړيدلے شي |
| 22 | د حزب اقتدار او حزب اختلاف | لازمی دے |

| | | |
|---|---|---|
| | تقسیم غلط دے | |
| 23 | فاسق د یوې معززے عهدې ( منصب ) اهل ندے | دے |
| 24 | هر چا نه به رائی نهٔ اخستلے کیږی | هر هغه څوک رائی ورکولے شی چه شناختی کارډ لری |
| 25 | که چرے یو هلک عاقل او پوهه وی نو د هغه نه رائی اخستلے کیدے شی | چه د شناختی کارډ د عمر نهٔ دے نو رائی نهٔ شی ورکولے |
| 26 | ارتداد ، فسق ، بدعات او ګمراهی خورول حرام دي | د خپلې رائی اظهار کول آزاد دي |
| 27 | په زوره زنا کول یا په رضا (خوشحالئ ) کول جواز نهٔ لري | په رضا ( خوشحالئ ) کول جواز لري |
| 28 | د اقوام متحده رکنیت نا جائز دے او د هغې قانون منل کفر دے | رکنیت ئې هم جائز دے ، او قانونو نه ئې منل هم جائز دي |
| 29 | امر بالمعروف او نهي عن المنکر کول ضروری دي | ددې ډیر صورتونه قانون چیلنج کوی |
| 30 | تصویر حرام دے | تصویری انتخابی نبنه منل ضروری دي ، که د خپلے ډلې وی او که د بلې ډلې |
| 31 | د ټولے دنیا مسلمانان وروڼه وروڼه دي ، د یو بدن پشان دي په وخت د ضرورت د هغوي مرسته فرض ده | د نورو ملکونو په قانون کې لاس وهل جائز ندي |
| 32 | د ټولو مسلمانانو به یو مشر وی | چه څومره ملکونه وي نو هغه هومره به مشران وي |

| | | |
|---|---|---|
| 33 | جوارګری او سود حرام دے | هيڅ خبره نده |
| 34 | د هر ناجائز قانون احترام کفر دے | د ټولو قانونو احترام کول لازمی دي |
| 35 | اقدامی جهاد لازم دے | حرام دے |

بالله التوفيق .

## خلاصه د خبرې

د جمهوريت په هکله ددې مضمون په آخره کې مونږ په دې نتيجه باندې ورسيدو :

١/ جمهوريت يو غير اسلامي ، کفري او شيطاني دين دے ، چه هغه د انساني ژوند ټول اړخونه ( طرفونه ) نيولي دي ، او دا په حقيقت کې د الله تعالیٰ نه د انسانيت دپاره هر قسمه نظام او قانون جوړولو حق اخستل او الله تعالیٰ لره ( نعوذ بالله ) د قانون سازئ پهٔ باب کې بې واکه او بې اختياره کول دي ، جمهوريت په مغرب کې د مسيحيت نه د انحراف ( اوړيدو) او د الحاد د وجه نه راپيدا شوے دے ، چه په هغې کې هر څه د هر ديني قيد او بند نه آزاد او انسانانو په خپله خوښه پوره کيږي .

٢/ په جمهوريت کې الله تعالیٰ منل او نهٔ منل برابر دي .

٣/ جمهوريت د مغرب د ملحد فلاسفو د فکرونو او نظرياتو په بنياد او اساس ولاړ دے ، او ددې د اسلام سره هيڅ مشابهت ( يوشان والے ) او تعلق نشته ، ليکن د مغربي سيکولر عناصرو نه متأثره ، دهوکه خورو او تش د نوم مسلمانانو دا کوشش دے چه ټولو مسلمانانو له دهوکه ورکړو او په اسلام او جمهوريت کې ورته تعلق او مشابهت ور وښايو ، ددې دپاره چه مسلمانانو لره د جمهوريت د کفري دين خلاف ميدان ته کيدو او د جهاد کولو نه منع کړے شي .

٤/ جمهوريت په اسلامي دنيا باندې د مغربي غلبې او تسلط هميشه قائم او دائم ساتلو يوه خطرناکه منصوبه ده ، چه مغربي طاقت د زور لالچ ، زندان ، د مرګونو په دهمکو سره او د خپلو غلامانو حکومتونو په ذريعې په اسلامي دنيا کې محفوظ او بچ اوساتي ، او ددې خوررولو او نافذ کولو دپاره په زرګونو ميلنونو ډالرو ، په لکهونو فوجيانو او په فوجي وسائلو باندې خرچ کوي او ددې په ذريعې د جمهوريت په خلاف مقابلې ختمولو دپاره په اسلامي ملکونو کې د لکهونو مسلمانانو قتلونه کوي او اسلامي جماعتونه او پارټياني صرف ددې يرې د مينځه ختموي چه هسې نه مظلوم مسلمانانو لره د جمهوريت د تريخ حقيقت نه اشنا نه کړي.

اوس چه د کوم اسلامی ملکونو د مغرب قبضې لاندې راغلی دي نو پدې ملکونو کې

جګړې او جنګونه صرف ددې دپاره رواني کړي دی چه جمهوریت په کې نافذ کړي ، لهذا د مسلمانانو دپاره ضروري دي چه د خپل دې دشمن د فکري ، اعتقادي او اخلاقي حقیقت نه ځان خبر کړي ، او د دشمن اصلیت او حقیقت د هر طرف نه او پیژني .

مونږ ددې مقصد دپاره دا موضوع په تفصیل سره د خپل امة مسلمه د ځوانانو دپاره د څو کتابونو او زرګونو صفحو کتلو او مطالعه کولو نه روسته دغه دوره وکړه ، او په خپله سیده ساده ژبه کې د خپل د اسلام ځوانانو مخې ته وړاندې کړه چه کوم د اسلام د دفاع دپاره هر طریقې خپلولو ته تیار دي او عملاً د جمهوریت د کفر په خلاف مقابله کې مشغول دي .

وبالله التوفیق .

❊❊❊❊

## 10 / مـــــوضــــوع:

## الــولاء والــبراء [ اوله حصــه ]

مسئلة الولاء والبراء دا يوه ډيره مهمه مسئله ده په مسئلو کې او دا اهمه مسئله ځکه چه په حديث کې راځی عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دے چه نبی کريم ﷺ فرمائی : «**أوثق عرى الإيمان المولاة فى الله والمعاداة فى الله ، والحب في الله والبغض فى الله**» .[1]

**ترجمه** : " د ايمان ټولو نه مضبوط کړئ هغه د الله دپاره دوستی او الله دپاره دشمنی او د الله دپاره محبت او د الله دپاره نفرت کول چا سره " .

د ټولو نه مهمي مسئلے هغه تحکيم القوانين ، جمهوريت او د ولاء والبراء ده ، هسې خو ټولې مهمي مسئلے دي خو تقريبا چه زمونږ په درسونو کې دا ډيرے اهمے مسئلے دي ، نو لهذا پديکې ډيره توجه پکار ده اسلام يو داسې مذهب دے چه کله دې راشی نو د جاهلی نظام سره مکمل اړيکې ختموی او مکمل تعلقات د جاهلی نظام سره ختموی جاهليت نه چه اسلام ته راواوړيدے نو د جاهليت سره بيزاري پيدا کوی ، منهج د اسلام داسې را روان دے د پيغمبر عليه السلام هم ابتدائی دغه نعره او آواز وو چه لاإله إلا الله او دعوت ابراهيمی يعنی د ابراهيم عليه السلام دپاره هم دغه منهج وو چه د جاهليت سره ئې بغض ظاهر کړو چه ورته ئې اووئيل : ﴿كَفَرْنَا بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ ٱلْعَدَٰوَةُ وَٱلْبَغْضَآءُ أَبَدًا حَتَّىٰ تُؤْمِنُوا۟ بِٱللَّهِ وَحْدَهُۥٓ﴾ (2)

زمونږ او ستاسو تر مينځه بس درې معاملے پاتې شوے : ۱/ زمونږه کفر دے په تاسو باندې يعنی ستاسو په معبودانو باندې، ۲/ زمونږ او ستاسو په مابين کې به دشمنی وی ، ۳/بغض به وی يعنی په زړه کې به هم دشمنی وی او په ظاهر کې به هم دشمنی وی .

---

1) [ رواه الطبراني : ] .

2) [ سورة الممتحنة : ٤ ] .

دارنګه په بل ځائی کې ورته ابراهیم علیه السلام اوفرمائیل : ﴿ قَالَ أَفَرَءَيْتُم مَّا كُنتُمْ تَعْبُدُونَ ۝٧٥ أَنتُمْ وَءَابَآؤُكُمُ ٱلْأَقْدَمُونَ ۝٧٦ فَإِنَّهُمْ عَدُوٌّ لِّيٓ إِلَّا رَبَّ ٱلْعَٰلَمِينَ ۝٧٧ ﴾ [1] که تاسو يئ او که ستاسو پلاران دي او چه تاسو د چا عبادت کولو دا ټول چه دي دا زما دشمنان دي ، الله رب العزت خپله فرمائی : ﴿ مَن كَانَ عَدُوًّا لِّلَّهِ وَمَلَٰٓئِكَتِهِۦ وَرُسُلِهِۦ وَجِبْرِيلَ وَمِيكَىٰلَ فَإِنَّ ٱللَّهَ عَدُوٌّ لِّلْكَٰفِرِينَ ۝٩٨ ﴾ [2]

او طريقه د صحابؤ او طريقه د پیغمبر همدغه وه چه د ولاء او د براء دوستی د مؤمنانو سره او دشمنی د کافرانو سره دا د هغوی طريقه را روانه وه ، او يو وخت داسې وو چه مونږ به د دوی نه جزیه اغسته ځکه د ولاء او د براء برکت وو چه خپل مینځ کې ولاء وه نو مسلمانان متفق وو او د دشمن سره براء وه نو په دشمن باندې خزلان ( رسوائی ) پرته وه د هغوئ نه به ئې جزيه اغسته ، او اوس داسې وخت راغے چه دوی زمونږ نه جزيه اخلی ، تاسو ته معلومه ده چه مسلمان ملکونه دي ته **Entre tere** ورته وائی دغه شی دا مسلمانان دوی په کال کې داخله وی ورلډ بینک ته دا حالات په مونږ ددې وجه نه راغلل ، نو اوس چه مونږ دا ولاء او براء اوپيژنو چه د چا سره به دوستی کوم او د چا سره به دشمنی کوم ، دشمنی دا چه په هغې سړے ګناه ګاریږی ، او هغه کومه دشمنی ده چه په هغې باندې سړے کفر ته رسيږي او کومه دوستی ده چه په هغې باندې سړے ګناه ګاریږی او کومه دوستی ده چه په هغې باندې سړے کفر ته رسيږی ؟

---

[1] [ سورة الشعراء : ٧٥ ـ ٧٧ ] .

[2] [ سورة البقرة : ٩٨ ] .

## مسـئلة الولاء والبراء

اوس مسئله د ولاء او د براء شروع كوو :

**اول د ولاء او د براء لغوى تعريف** : نو دا دوه الفاظ دي : ١/ ولاء ، ٢/ براء

**ولاء** د وَلِـيٌ نه مأخوذ دے ، ددې يو خو معانى دي :

١/ امام جوهري په " صحاح " كې فرمائى : «**الولي لغةً القرب**» " يعنى ولـى په لغت كې په معنى د نزدې والى سره راځى ".

٢/ ولـئ يلـى په معنى د قرب سره راځى لكه په يو حديث كې راځى چه يو صحابى د رسول الله ﷺ روټئ خوړله نو نبى كريم ﷺ ورته وفرمائل : « سم الله وكل مما يليک » "بسم الله ووايه او د هغه ځائى نه خوره چه كوم تاته نزدې وى " نو ولـئ يلى په معنى د قرب (نزدې والى ) سره راځى .

٣/ ولاء په معنى د متابعت سره هم راځى لكه فقهاء كرام وائى : په اودس كې متابعت ضرورى دے .

٤/ وَلِـيٌ په معنى د ناصر سره هم راځى ، لكه الله تعالىٰ فرمائى : ﴿ نِعۡمَ ٱلۡمَوۡلَىٰ وَنِعۡمَ ٱلنَّصِيرُ ۝٤٠ ﴾[1]

٥/ وَلِـيٌ په معنى د مُعين سره هم راځى .

٦/ وَلِـيٌ په معنى د معتِق ( آزادونكې ) سره هم راځى ، او معتِق ته مولـىٰ هم وئيلے شى او دارنګه عبد ( غلام ) ته هم مولـىٰ وئيلے شى ، معتق ورته په عربئ كې وائى .

٧/ رشته دار ته هم ولې وئيلے كيږى .

٨/ دارنګه د دوستئ په معنى سره هم راځى ، نو دا د ولاء معناګانې شوے .

**غرض** : زمونږ مقصد دا شو چه دوستى كول د چا سره د زړه نه د چا تابعدارى كول ، چا سره

---

[1] [ سورة الأنفال : ٤٠ ] .

محبت كول ديته ولاء وئيلے شي ، او ديته موالات هم وئيلے شي ، او مونږ قطع الموالات كوو د كافرو سره ، او ددې په مقابله كې المعادات دے يعنى دشمنى .

خو معادات په دوه معنو سره راځى : ١ـ المباعدة ، يعنى لرې والې اختيارول ، ٢ـ والمخالفة، يعنى د چا سره مخالفت كول ديته معادات وئيلے شي .

٢/ لفظ دے **والبراء** نو براء او معادات دواړه په يو معنى سره راځى ، براء معنى « برئ فلان عن فلان » يعنى فلانى د فلانى نه لرې والې اختيار كړو ، بله معنى ئې دا راځى : « برئ فلان عن فلان » يعنى فلان د فلانى نه ځان خلاص كړو مخالفت ئې د هغوى اوكړو .

نو براء په درې معنو سره راځى : ١ـ مخالفت كول ، ٢ـ د چانه ځان خلاصول ، ٣ـ لرې والې اختيارول .

نو مونږه به موالات د مسلمان سره كوو يعنى دوستى او محبت او د كافر سره به معادات كوو يعنى هغه سره مخالفت كول د هغهٔ نه نفرت كول او د هغهٔ نه لرې والې كول او د كافر نه ځان خلاصول .

دارنګه براء په معنى د خَلق سره هم راځى لكه د الله په صفاتو كې يو صفت د بارئ راځى لكه الله تعالىٰ فرمائى : ﴿ هُوَ ٱللَّهُ ٱلْخَٰلِقُ ٱلْبَارِئُ ﴾ [1]

نو په معنى د پيدا كولو سره هم راځى ، په معنى د مرض جوړيدلو سره هم راځى چه بُرء ورته وائيلے شي ، او دغه شان چه يو سړے برى وى د عيب او د يو مكروه كار نه پدې معنى سره هم راځى .

**د ولاء او براء شرعى تعريف** :

په شريعت كې ولاء او براء څه ته وائى ؟ نو اوس مونږه شرعى معنى كوو :

**اول د ولاء شرعى تعريف** : نو په شريعت كې ولاء ديته وائى : « **حبّ الله تعالىٰ ورسوله و**

---

1) [ سورة الحشر : ٢٤ ] .

**دين الإسلام وأتباعه و نصرة اين الله»** " د الله تعالیٰ سره محبت کول او د الله تعالیٰ د رسول ( ﷺ ) سره محبت کول ، او د دین اسلام سره محبت کول ، او د هغه د اتباعو سره محبت کول ، او د الله د دین سره امداد کول ".

نو دیته وئیلے کیږی ولاء دواړه معانی پکې راغلے د ولاء یوه معنی ده محبت کول د زړه نه ، او دویمه معنی ئې ده امداد کول .

**او د براء شرعی تعریف** : براء په شریعت کې دیته وائی : « **هو بغض الطواغیت ، وبغض الکفر بجمیع ملله وأتباعه الکافرین ومعادات ذلک کله** » .

یعنی بغض کول د طاغوتیانو [1] سره او بغض کول د کفر سره او د ټولو ملتونو سره به بغض کوے دا نۀ چه د بعضو سره به بغض کوے او د بعضو سره نۀ ، بلکه د ټولو مِللو سره به بغض کوے او دارنګه د هغې د اتباعو سره بغض کول دي او ددې ټولو نه معادات ( لرې والې ) اختیارول دي ، نو دیته وئیلے کیږی براء نو د براء هم دوه معانی شوے : ۱- د زړه نه د چا سره بغض کول ، ۲- دشمنی کول او دواړه معانی پدې کې راغلے ، نو دا شوه ولاء او براء .

**اوس یو بل فرق دې** : دری خیزونه دي : ۱/ موالات ، ۲/ مدارات ، ۳/ مواسات

**موالات** د زړه نه دوستئ ته وئیلے شی دا حرام دے د کافر سره .

**مدارات** علماء کرام فرمائی چه کله یو کس راګیر شی لکه مثال په طور یو کس په دارالحرب کې اوسیږی او هلته کافرانو سره وی نو بیا خو دې د مقابلے طاقت نشی لرلے ، نو هر چا سره په خُله باندې خوګے خبرے کوے خو لیکن په زړه کې ورسره بنۀ بغض او عداوت لرے لکه حضرت علی ﷛ فرمائی : چه د بعضو خلقو سره به مونږ لاس میلاوؤو او زمونږ زړه په هغوی باندې لعنت وائی او مونږ وایو چه دا لاسونه د دوی نه کټ شی ، نو دیته مدارات وائی .

---

[1] طواغیت التي تُعبد من دون الله » هغه طواغیت چه د الله نه ماسوا د هغوی عبادت کولے شی .

**مواساة** عدل كول دي ، لکه الله تعالیٰ فرمائي : ﴿ لَّا يَنْهَىٰكُمُ ٱللَّهُ عَنِ ٱلَّذِينَ لَمْ يُقَٰتِلُوكُمْ فِي ٱلدِّينِ وَلَمْ يُخْرِجُوكُم مِّن دِيَٰرِكُمْ أَن تَبَرُّوهُمْ وَتُقْسِطُوٓاْ إِلَيْهِمْ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلْمُقْسِطِينَ ﴿٨﴾ ﴾ [1]

الله تعالیٰ تاسو نهٔ منع کوی د هغه کسانو نه چه تاسو سره جنګ نهٔ کوی په دین کې او نهٔ اوباسی تاسو د کورونو ستاسو نه نو تاسو الله نهٔ منع کوی چه تاسو د هغوی سره نیکی اوکړئ معاملاتو کې عدل کول وغیره دیته مواسات وئیلے شی .

**موالات** حرام دے د کافر سره ، خو علماؤ فرق کړیدے چه موالات په دوه قسمه دے :

۱/داسې دے چه ته ورسره دوستی کوے او هغه کفر ندے نو بعضې دیته موالات وائی او بعضی ورته نوم بدلوی یعنی چه په کوم باندې سړے کافر کیږی نو هغې ته تَوَلِّـی وائی .

**موالات** : «**رفع القلم له وبل الدوات ورفع السوط لهم**» لکه قلم راغستل شو د هغې دپاره دوات اچول شو او دارنګه کوړه راغستل شو د هغوي دپاره چه په هغې باندې مسلمانان وهی نو دا ګناه کبیره ده او دیته موالات وائی پدې باندې سړے نهٔ کافر کیږی .

**تَوَلِّـی** دا یو داسې شی دے چه سړے کافر کوی مکَفِّر دے «**كدفع عنهم واعانتهم في الحرب**» نو پدې باندې بیا سړے کافر کیږی ، یعنی د هغوی د خبرونه دفاع کول د هغوی سره په جنګ کې امداد کول او مسلمان قتلول د هغه دپاره دیته تَوَلِّـی وائیلے شی .

او دا تَوَلِّـی پدې د علماؤ اجماع ده چه دا کفر دے لکه حسین احمد مدنی رحمه الله ، علامه ابن حزم ، علامه ابن تیمیه او شیخ عبدالطیف رحمهم الله پدې باندې اجماع رانقل کړے ده چه دا شی کفر دے .

[1] [ سورة الممتحنة : ۸ ] .

## دلائل د وجوب په دوستئ د مؤمنا نو

اوس مونږ پدې خبره باندې دلائل ذکر کوو چه د مسلمانانو سره دوستي واجبه ده ، نو پدې مسئله باندې ډیر دلائل دي بعضې به دلته ذکر کړو د الله په توفیق سره :

۱/ **دلیل** : الله تعالیٰ فرمائي :

﴿ إِنَّمَا وَلِيُّكُمُ ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱلَّذِينَ يُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَيُؤۡتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ وَهُمۡ رَٰكِعُونَ ٥٥ ﴾[1]

په تحقیق سره دوست دے الله تعالیٰ ستاسو او رسول د هغه او د هغه کسانو چه ایمان ئې راوړے او هغه چه پابندي کوي د مونځ او ورکوي زکاة او دوي وي رکوع کونکي ، نو د دغه کسانو دوست الله تعالیٰ دے .

۲/ **دلیل** : دغه شان الله تعالیٰ ورپسې بل آیت کې فرمائي :

﴿ وَمَن يَتَوَلَّ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ فَإِنَّ حِزۡبَ ٱللَّهِ هُمُ ٱلۡغَٰلِبُونَ ٥٦ ﴾ [2]

څوک چه دوستي کوي د الله او د رسول د هغه سره او د هغه کسانو سره چه ایمان ئې راوړیدے نو یقینا ډله د الله تعالیٰ هم دوي غالب دي .

نو د الله د لښکر نه ګرځیدل دا خو واجبه خبره ده ځکه چه لښکرے دوه قسمه دي :
۱/حزب الله ، ۲/ حزب الشیطان ، نو تهٔ دې د لښکر د شیطان نه ونهٔ ګرځیږې دا واجبه ده بلکه تهٔ دې د لښکر د الله نه اوګرځیږې ، او د الله تعالیٰ د لښکر نه چه تهٔ ګرځې نو په درې موالاتو سره به ګرځې : ۱/ د الله سره موالاتو باندې یعنې د الله سره به دوستي کوے د الله سره به دشمني نهٔ کوے .

۲/ په رسول الله ( ﷺ ) باندې به ایمان راوړے او د هغه متابعت او تابعداري به کوے.

۳/ د مؤمنانو سره به په خپل مابین کې محبت او دوستي کوے .

---

[1] [ سورة المائدة : ٥٥ ].

[2] [ سورة المائدة : ٥٦ ].

نو كله چه دې دا درے كارونه اوكړل نو جزاء به ئې دا را ووځى چه «**فإن حزب الله هم الغلبون**» نو دا درې واړه خبرے شرط شوے او دا ورله جزاء شوه او كله چه شرط فوت شى نو مشروط هم فوت كيږى «**إذا فات الشرط فات المشروط**» نو كله چه دا درې خبرے موجودې وى نو ته به هم د الله د لښكر نه وے او غالب به وے او كه دا نوى نو بيا د الله لښكر نه او د غالبه كيدو نه نشى ګرځيدے ، نو څنګه چه د الله د لښكر نه جوړيدل واجب دي نو دغه شان د رسول الله ﷺ او د مؤمنانو سره دوستى هم واجبه ده .

**٣/ دليل** : الله تعالىٰ فرمائى :

﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَهَاجَرُواْ وَجَٰهَدُواْ بِأَمۡوَٰلِهِمۡ وَأَنفُسِهِمۡ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ وَٱلَّذِينَ ءَاوَواْ وَّنَصَرُوٓاْ أُوْلَٰٓئِكَ بَعۡضُهُمۡ أَوۡلِيَآءُ بَعۡضٖۚ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَلَمۡ يُهَاجِرُواْ مَا لَكُم مِّن وَلَٰيَتِهِم مِّن شَيۡءٍ حَتَّىٰ يُهَاجِرُواْۚ وَإِنِ ٱسۡتَنصَرُوكُمۡ فِي ٱلدِّينِ فَعَلَيۡكُمُ ٱلنَّصۡرُ إِلَّا عَلَىٰ قَوۡمِۭ بَيۡنَكُمۡ وَبَيۡنَهُم مِّيثَٰقٞۗ وَٱللَّهُ بِمَا تَعۡمَلُونَ بَصِيرٞ ٧٢ ﴾ (1)

﴿ وَٱلَّذِينَ كَفَرُواْ بَعۡضُهُمۡ أَوۡلِيَآءُ بَعۡضٍۚ إِلَّا تَفۡعَلُوهُ تَكُن فِتۡنَةٞ فِي ٱلۡأَرۡضِ وَفَسَادٞ كَبِيرٞ ٧٣ ﴾ (2)

الله تعالىٰ فرمائى : كافران په خپل مابين كې دوستى كوى نو كه تاسو په خپل مابين كې دوستى ونكړه نو په زمكه كې به فتنه او غټ فساد جوړ شى كه مؤمنان په خپل مابين كې دوستى اونكړى او اختلافات شروع كړى نو فتنې او فسادونه به راځى .

نو اوګوره ! دفتنې نه ځان بچ كول او د فساد نه ځان بچ كول واجب دي ، او دا پدې باندې كيږى چه ته د مسلمانانو سره دوستى اوكړے د مؤمنانو سره دشمنى اونكړے .

---

(1) [ سورة الأنفال : ٧٢ ] .

(2) [ سورة الأنفال : ٧٣ ] .

دا رنګه په احاديثو کې هم دا خبره ذکر ده ، لکه يو حديث مبارک کې راځی نبی کريم ﷺ فرمائی : « **مَثَلُ الْمُؤْمِنِينَ فِي تَوَادِّهِمْ وَتَرَاحُمِهِمْ وَتَعَاطُفِهِمْ مَثَلُ الْجَسَدِ إِذَا اشْتَكَى مِنْهُ عُضْوٌ تَدَاعَى لَهُ سَائِرُ الْجَسَدِ بِالسَّهَرِ وَالْحُمَّى** »[1] .

**ترجمه** : مثال د مؤمنانو په خپل محبت کې په يو بل باندې په رحم کې او په نرمۍ کې پشان د يو جسد دی چه کله د دينه يو اندام په درد باندې وی نو ټول اندامونه بيا آرام نشی کولے .

نو د مسلمانانو په مابين کې هم دغه شان حالت پکار دے چه په يو مسلمان باندې تکليف راځی چه بل مسلمان فوری د هغه سره امداد کړے وی .

بل حديث مبارک کې راځی رسول الله ﷺ فرمائی : « **الْمُؤْمِنُ لِلْمُؤْمِنِ كَالْبُنْيَانِ يَشُدُّ بَعْضُهُ بَعْضًا** »[2] .

يو مؤمن د بل مؤمن دپاره داسې دے لکه آبادی چه مضبوطوی بعضې بعضو لره ، چه يوه خښته د بلې خښتې سره يوه ګټه د بلې ګټې سره مضبوطه کړې وی او که د خښتو او ګټو په مابين کې اتفاق ختم شی نو ديوال باقی نشی پاتې کيدلے .

دغه شان يو بل حديث مبارک کې راځی ، رسول الله ﷺ فرمائی : « **الْمُسْلِمُ أَخُو الْمُسْلِمِ لَا يَظْلِمُهُ وَلَا يُسْلِمُهُ . . . الحديث** »[3] .

يو مسلمان د بل مسلمان رورو دے نۀ دې دا مسلمان په بل مسلمان باندې ظلم کوی او نۀ به ئې کافر ته تسليموی يعنی کافر ته به مسلمان نۀ ورکوی .

ملا عمر مجاهد رحمه الله ته چه کله د پاکستان نه وفد لاړو چه په هغې کې علماء هم وو او ورته ئې اوويل : چه أسامه مونږ ته حواله کړئ ، او علماؤ ورته اوويل : چه ټول امارت

---

[1] [ صحيح مسلم ، رقم الحديث : ٤٦٨٥ وغيره ] .

[2] [ صحيح البخاري ، رقم الحديث : ٤٥٩ ، و مسلم ، رقم الحديث : ٤٦٨٤ ، وغيره ] .

[3] [ صحيح البخاري ، رقم الحديث : ٢٢٦٢ ـ ٦٤٣٧ ، و مسلم ، رقم الحديث : ٤٦٥٠ ، وغيره ] .

به خرابيږي حواله ئې کړئ ورته ، نو ملا محمد عمر رحمه الله ورته دا حديث مبارک ولوستلو او بيا ئې ورته اووئيل : چه اوس ماله جواب راکړئ چه آيا زهٔ دا تسليم کړم او که نهٔ ؟ نو دوی ورته خاموش شول او هيڅ جواب ئې ورنهٔ کړو .

دغه شان بل حديث کې راځی ، رسول الله ﷺ فرمائی : «**وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا تَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ حَتَّى تُؤْمِنُوا وَلَا تُؤْمِنُوا حَتَّى تَحَابُّوا أَوَلَا أَدُلُّكُمْ عَلَى شَيْءٍ إِذَا فَعَلْتُمُوهُ تَحَابَبْتُمْ أَفْشُوا السَّلَامَ بَيْنَكُمْ**»[1] .

قسم مې دې وی په هغه ذات باندې چه د چا په قبضه کې چه زما روح دے تاسو جنت ته نشئ داخليدلې تردې چه تاسو مؤمنان شئ ، او تاسو مؤمنان نشی کيدے تردې چه تاسو په خپل مابين کې محبت اوکړئ ، آيا نهٔ درخائم تاسو ته يو داسې عمل چه کله تاسو هغه اوکړئ نو تاسو به د يو بل سره محبت وکړئ ( هغه عمل دا دے چه ) سلام خپل مابين کې خور (عام) کړئ .

نو پدې ټولو احاديثو کې دا خبره معلومه شوه چه ولاء د مسلمانانو سره دوستی د مسلمانانو سره واجبه ده او دشمنی د کافرانو سره واجبه ده .

هم دغه شان په يو بل روايت کې راځی : **عَنْ جَرِيرٍ قَالَ : قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ ! اشْتَرِطْ عَلَيَّ فَأَنْتَ أَعْلَمُ بِالشَّرْطِ ، قَالَ : أُبَايِعُكَ عَلَى أَنْ تَعْبُدَ اللَّهَ لَا تُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا ، وَتُقِيمَ الصَّلَاةَ ، وَتُؤْتِيَ الزَّكَاةَ ، وَتَنْصَحَ الْمُسْلِمَ ، وَتَبْرَأَ مِنَ الْمُشْرِكِ**»[2] .

جرير البجلی رضي الله عنه فرمائی : چه زه رسول الله ﷺ ته راغلم او بيعت مې ورسره کولو ما ورته اووئيل : چه اے رسول الله ﷺ ! په ما باندې څه شرط کيده او بيعت راسره اوکړه ؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل : بيعت درسره کوم پدې شرط باندې چه د يو الله تعالیٰ عبادت به کوے او د الله تعالیٰ سره به هيڅ شريک نه جوړوے ، د مونځ پابندی به کوے ، زکاة به ورکوے،

---

[1] [ صحيح مسلم ، رقم الحديث : ٨١ ، و سنن أبي داؤد ، رقم الحديث : ٤٥١٩ وغيرهم ] .

[2] [ مسند احمد ، رقم الحديث : ١٨٤٣٦ ، وغيرهم .

او د مسلمان خيرخواهي به کوے او د مشرک نه به ځان جدا کوے ، په يو بل روايت کې ورسره داهم راځي : چه د کافر نه به بائيکاټ کوے .

ددې رواياتو نه معلوميږی چه د کافر سره دشمنی کول واجب دي .

او په قرآن کريم کې پدې مسئله باندې ډير آيتونه راغلي دي ، خو اول دا خبره کوو :

چه ابن القيم رحمه الله فرمائی : دوستی د مسلمانانو سره هغه پورے نه صحيح کيږی تر څو چه د کافرو سره دې دشمنی نوی کړے ، فرمائی : «**لا تصح الموالات إلا بالمعادات كما قال تعالىٰ عن امام الحنفاء والمحبين** ﴿ قَالَ أَفَرَءَيْتُم مَّا كُنتُمْ تَعْبُدُونَ ۝٧٥ أَنتُمْ وَءَابَآؤُكُمُ ٱلْأَقْدَمُونَ ۝٧٦ فَإِنَّهُمْ عَدُوٌّ لِّيٓ إِلَّا رَبَّ ٱلْعَٰلَمِينَ ۝٧٧ ﴾[1] **فلم تصح لخليل الله هذه الموالات والخلّة الا بتحقيق هذه المعادات فأنه لا ولاء الا لله ولا ولاء إلا بالبراءة من كل معبود سواه** » .

موالات نه صحيح کيږی مگر په معادات باندې لکه الله تعالىٰ د امام الحنفاء ابراهيم عليه السلام نه حکايت کړے دے او امام المحبين چه د الله سره د چا محبت وی ، امام المحبين هم ابراهيم عليه السلام دے نو الله تعالىٰ د هغه نه حکايت کوی چه هغه خپل قوم ته اووئيل ... ( بيا ابن القيم رحمه الله فرمائی : ) چه صحيح نشو د خليل الله دپاره چه ابراهيم عليه السلام دے دغه موالات او دغه دوستانه مگر په تثبيت کولو د دې معادات سره چه کله ئې د کفارو سره دشمنی اوکړه نو د الله تعالىٰ او د مسلمانانو سره ئې دوستی برابر شوه ، بيا فرمائی : ځکه چه دوستی نشته مگر د الله دپاره به وی او دوستی نه کيږی مگر په براءت سره کيږی د هر معبود ما سوا الله نه چه بيزاری اختيار کړی د هر معبود د الله نه بغير نو هله به ستا دوستی صحيح کيږی د الله تعالىٰ سره .

ددې وجه نه الله تعالىٰ فرمائی : ﴿ وَإِذْ قَالَ إِبْرَٰهِيمُ لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِۦٓ إِنَّنِى بَرَآءٌ مِّمَّا تَعْبُدُونَ

---

[1] [ سورة الشعراء : ٧٥ ـ ٧٧ ] .

﴿ إِلَّا ٱلَّذِى فَطَرَنِى فَإِنَّهُۥ سَيَهْدِينِ ۝٢٧ وَجَعَلَهَا كَلِمَةًۢ بَاقِيَةً فِى عَقِبِهِۦ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ۝٢٨ ﴾ [1]

ابراهيم عليه السلام خپل قوم ته اووئيل : چه زه بيزاره يم د هغه څه نه چه تاسو ئې عبادت کوئ * مګر د هغه ذات سره مې دوستى ده کوم ذات چه زه پيدا کړے يم او هغه به ماته هدايت کوى * او ګرځولے ئې ده دا کلمه باقى په روستنو د هغه کې دې دپاره چه رجوع وکړى دوى د کفر نه اسلام ته ، بيا معنى کوى او فرمائى : «**إذ جعل هذه الموالات لله والبراءة من كل معبود سواه يتوارثه الأنبياء وأتباعهم بعضهم من بعض وهي كلمة لا إله إلا الله ، وهي التي ورثها امام الحنفاء وأتباعه يوم القيامة**» وګرځوو الله تعالىٰ دا موالات د الله دپاره چه ابراهيم عليه السلام وو او دغه دشمنى چه هغه د هر معبود سره کړے او ماسوا د الله تعالىٰ نه کلمة باقية فى عقبه دا ئى کلمه اوګرځوله باقى روستو د هغه نه چه په وراثت کې اخلى د يو بل نه انبياء عليهم السلام چه مقوله دا او څه کلمه دا چه الله پاک دا اوګرځوله نو دې د هغه کلمې بيان کوى چه روستو انبياؤ او دهغې اتباعو ته يو کلمه پاتې شوه چه هغه کلمه د لاإلٰه إلا الله ده .

تاسو اوګورئ د ابراهيم عليه السلام کلماتو ته چه هغه وائى : « و إذ قال ابراهيم لابيه وقومه انني براء مما تعبدون » انني براء مما تعبدون لاإلٰه شوه الا الذى فطرنى الخ الا الله شوه نو دا لاإلٰه إلا الله کلمه په ټول امت کې باقى پريخوده ، دغه کلمه امام الحنفاء ابراهيم عليه السلام خپلو اتباعو ته تر ورځ د قيامته پورے پريخوده .

په ديکې تر دې ځائى پورے مونږه ته درې خبرے ثابت شوے : يوه خبره مونږ ته دا ثابته شوه چه ولاء د مسلمانانو سره واجبه ده دا يوه مسئله مونږه ته معلومه شوه ، او دويمه خبره چه براءة الكفار دشمنى د کفارو سره واجبه ده ، او دريمه خبره چه دوستى د مسلمانانو سره نه صحيح کيږى مګر په دشمنئ د کفارو سره چه د کفارو سره مو

---

[1] [ سورة الزخرف : ٢٦ ـ ٢٨ ] .

دشمني اوکړه نو هله به زمونږ دوستي د مسلمانانو سره صحيح کيږي .

او دا هغه تحقيق دے چه مونږه کړے وو « اشداء على الكفار رحماء بينهم » چه په کافرانو دي سختي کوله نو په مؤمنانو به دي رحم راشي او که سختي دې نه کوله نو بيا خپل مينځ کې ترحم نشي راتلے نو دا هم هغه خبره ده چه کومه علامه ابن القيم رحمه الله اوکړه .

## دلائل د وجوب په براءت د کافرانو

اوس مونږه دلائل د براءت ذکر کوو چه د کافرانو نه به ځان جدا کوے او پدې هم ډير دلائل دي ، اول به ئې د قرآن کريم نه ذکر کوو :

**١/ دليل** : الله سبحانه وتعالىٰ په قرآن کريم کې فرمائی :

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُواْ عَدُوِّى وَعَدُوَّكُمۡ أَوۡلِيَآءَ تُلۡقُونَ إِلَيۡهِم بِٱلۡمَوَدَّةِ وَقَدۡ كَفَرُواْ بِمَا جَآءَكُم مِّنَ ٱلۡحَقِّ يُخۡرِجُونَ ٱلرَّسُولَ وَإِيَّاكُمۡ أَن تُؤۡمِنُواْ بِٱللَّهِ رَبِّكُمۡ إِن كُنتُمۡ خَرَجۡتُمۡ جِهَٰدٗا فِى سَبِيلِى وَٱبۡتِغَآءَ مَرۡضَاتِىۚ تُسِرُّونَ إِلَيۡهِم بِٱلۡمَوَدَّةِ وَأَنَا۠ أَعۡلَمُ بِمَآ أَخۡفَيۡتُمۡ وَمَآ أَعۡلَنتُمۡۚ وَمَن يَفۡعَلۡهُ مِنكُمۡ فَقَدۡ ضَلَّ سَوَآءَ ٱلسَّبِيلِ ﴿١﴾ ﴾ (1)

الله رب العزت فرمائی : اے مؤمنانو ! تاسو زما د دشمن او ستاسو د دشمن سره دوستي مۀ کوئ او عدوى دا ئى مقدم کړو په عدوکم باندې دې دپاره چه الله تعالىٰ فرمائی : چه دا زما دشمن دے نو تۀ چه ورسره دشمني کوے نو پدې دشمنئ کې به ستا مقصد زما رضا وى دا نۀ چه ته ورسره د خپل ولئ د وجه نه دشمني کوے او په عدوّکم سره بيا تنبيه ده چه ګوره دا صرف زما دشمن ندے بلکه دا ستا هم دشمن دے ، نو الله رب العزت منع اوکړه چه دوئ سره دوستي مه کوئ ، او دلته دا منع دپاره د وجوب ده نو په تا باندې دا واجب دي چه د دوى نه به ځان ساتې .

---

(1) [ سورة الممتحنة : ١ ] .

**۲/ دليل** : بل آيت كريمه چه په هغې كې الله رب العزت منع كوى فرمائى :

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَوَلَّوۡاْ قَوۡمًا غَضِبَ ٱللَّهُ عَلَيۡهِمۡ قَدۡ يَئِسُواْ مِنَ ٱلۡأٓخِرَةِ كَمَا يَئِسَ ٱلۡكُفَّارُ مِنۡ أَصۡحَٰبِ ٱلۡقُبُورِ ۝١٣ ﴾ [1]

اے مؤمنانو ! تاسو دوستى مۀ كوئ د هغه قوم سره چه هغوى باندې الله تعالىٰ غضب كړے دے په تحقيق سره هغوئ نا اميده شويدى د آخرت نه لكه څنګه چه كفار د اصحاب القبور د زندګئ نه نا اميده دي نو دغه شان دوى نا اميده شويدى د ايمان نه او د آخرت نه .

نو اوګوره الله رب العزت پدې ځائى كې مؤمنانو ته وجه د دشمنئ بيان كړه چه لا تتولوا قوما د هغه قوم سره تاسو دوستى مه كوئ چه الله ورباندې غضب كړے دے نو د الله ورسره دشمنى ده نو تاسو ورسره هم دشمنى كوئ محبت ورسره مۀ كوئ ، « الحب لله والبغض لله » محبت هم د الله دپاره او بغض هم د الله دپاره نو پدې آيت كې هم الله رب العزت منع اوكړه د هغوى سره د دوستئ نه .

**۳/ دليل** : بل ځائى كې الله رب العزت فرمائى :

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُوٓاْ ءَابَآءَكُمۡ وَإِخۡوَٰنَكُمۡ أَوۡلِيَآءَ إِنِ ٱسۡتَحَبُّواْ ٱلۡكُفۡرَ عَلَى ٱلۡإِيمَٰنِۚ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمۡ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ۝٢٣ ﴾ [2]

**ترجمه** : " اے مؤمنانو ! مۀ نيسئ تاسو خپل پلاران او رونړه په دوستئ سره كچرے خوښوى هغوى كفر لره په بدله د ايمان كې ( نو چه هغوى كفر خوښوى نو ته ورسره دوستى مۀ كوه او احسان كوه د مور او پلار سره خو دوستى ورسره مۀ كوه ) او چا چه دوستى اوكړه د هغوى سره ستاسو نه نو دغه كسان هم دوى ظالمان دي " .

نو پدې آيت كريمه كې اشاره اوشوه دغه خبرے ته چه ګوره دوستى به د الله تعالىٰ دپاره

---

1) [ سورة الممتحنة : ١٣ ] .

2) [ سورة التوبة : ٢٣ ] .

وی ځکه چه منع ئې اوکړه د داسې کسانو نه چه د هغوی سره دوستی کولو ته خاځا میلان کیږی نو دوستی به هم د الله دپاره وی او دشمنی به هم د الله تعالیٰ دپاره وي .

**٤/ دليل** : بل ځائې کې الله تعالیٰ فرمائی :

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُواْ ٱلۡيَهُودَ وَٱلنَّصَٰرَىٰٓ أَوۡلِيَآءَۘ بَعۡضُهُمۡ أَوۡلِيَآءُ بَعۡضٖۚ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمۡ فَإِنَّهُۥ مِنۡهُمۡۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ٥١ ﴾ [1]

**ترجمه** : " اے مؤمنانو ! مهٔ نیسئ تاسو په دوستئ باندې یهود او نصارئ بعضی د دوی نه دوستان د بعضو دي چا چه دوستی اوکړه د دوی سره ستاسو نه پس یقینا دغه کس د دوی نه دے یقینا الله تعالیٰ هدایت نهٔ کوی قوم ظالمانو ته " .

نو پدې آیت کریمه کې الله تعالیٰ فرمائی : چا چه د دوی سره دوستی اوکړه نو دغه کس د دوی نه دے ، نو دا کس د دوی نه ولې دے ؟ دا خبره به روستو په اقوالو د علماؤ کې ذکر کړو .

لکه ابن جریر رحمه الله فرمائی : « **ومن يتولهم منكم أي من يتول اليهود والنصارىٰ فإنه منهم أي فإنه من تولهم** » او بیا وړیسې روسته فرمائی : « فحكمه حكمه » یعنی د ده حکم او د هغهٔ حکم بیا یو شو ځکه « **فإنهم إذا رضي رضى دينه فقد عادَ ما خالفه وسخطه وصار حكمه حكمه** » دا فرمائی : چه دا خو به اوس د هغه دپاره دوستی کوی او د هغه دپاره به دشمنی هم کوی او چه پدې باندې راضی شو او د دهٔ سره ئې دوستانه جوړه کړه نو دا د دهٔ په دین باندې راضی شو ، او چه په دین باندې راضی شو خو بیا دا د هغه د قبیلے نه اوګرځیدو .

**٥/ دليل** : دا رنګه بل ځائې کې الله تعالیٰ فرمائی :

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مَن يَرۡتَدَّ مِنكُمۡ عَن دِينِهِۦ فَسَوۡفَ يَأۡتِي ٱللَّهُ بِقَوۡمٖ يُحِبُّهُمۡ وَيُحِبُّونَهُۥٓ أَذِلَّةٍ عَلَى

[1] [ سورة المائدة : ٥١ ] .

ٱلْمُؤْمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى ٱلْكَٰفِرِينَ يُجَٰهِدُونَ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ وَلَا يَخَافُونَ لَوْمَةَ لَآئِمٍ ۚ ذَٰلِكَ فَضْلُ ٱللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَآءُ ۚ وَٱللَّهُ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ ﴿٥٤﴾ إِنَّمَا وَلِيُّكُمُ ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱلَّذِينَ يُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَيُؤْتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ وَهُمْ رَٰكِعُونَ ﴿٥٥﴾ ﴾ [1]

پدې آيتونو کې الله تعالىٰ فرمائی : اے مؤمنانو ! چه څوک مرتد شی ستاسو نه پس زر دے چه الله تعالىٰ به يو داسې قوم راوليږی چه الله به مينه کوی د دوی سره او دوی به مينه کوی د هغه سره نرمی به کوی د مؤمنانو سره او سختی به کوی د کافرانو سره ، نو الله تعالىٰ په داسې وخت کې بيا داسې قوم راليږی ، يعنی کله چه مؤمنان دوستی شروع کړی د کفارو سره.

ددې وجه نه علامه ابن تيميه رحمه الله فرمائی : چه کله په يو امت کې فتنه د ارتداد شروع شی نو په داسې وخت کې بيا د الله تعالىٰ وعده دا ده : « فسوف يأتى الله بقوم » دا يو خاص ځائی کې نده بلکه هر ځائی بيا الله تعالىٰ يو قوم راليږی چه نرم وی د مؤمنانو سره او سخت وی د کافرانو سره ، نن هم په امت کې دغه فتنه راپيدا شويده چه د کافرانو سره دوستی کوی نو الله تعالىٰ خپله وعده ريښتنی کړه چه « فسوف يأتى الله بقوم يحبهم ويحبونه . . . الآية » نو داسی قوم الله تعالىٰ راوستو چه د کافرو سره داسی سختی کوی چه په دوی بده لګی .

**٦/ دليل** : بل ځائی کې الله تعالىٰ فرمائی :

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ ٱلْكَٰفِرِينَ أَوْلِيَآءَ مِن دُونِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ۚ أَتُرِيدُونَ أَن تَجْعَلُوا۟ لِلَّهِ عَلَيْكُمْ سُلْطَٰنًا مُّبِينًا ﴿١٤٤﴾ ﴾ [2]

**ترجمه** : " اے مؤمنانو ! مۀ نيسئ تاسو کافرانو لره په دوستئ سره سوا د مؤمنانو نه ، آيا غواړئ تاسو چه وګرځوی الله تعالىٰ په تاسو باندې دليل ښکاره " .

**٧/ دليل** : بيا بل ځائی کې الله رب العزت داسې فرمائی :

---

(1) [ سورة المائدة : ٥٤ ـ ٥٥ ] .

(2) [ سورة النساء : ١٤٤ ] .

﴿ تَرَىٰ كَثِيرًا مِّنْهُمْ يَتَوَلَّوْنَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ۚ لَبِئْسَ مَا قَدَّمَتْ لَهُمْ أَنفُسُهُمْ
أَن سَخِطَ ٱللَّهُ عَلَيْهِمْ وَفِى ٱلْعَذَابِ هُمْ خَٰلِدُونَ ﴿٨٠﴾ وَلَوْ كَانُوا۟ يُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلنَّبِىِّ
وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْهِ مَا ٱتَّخَذُوهُمْ أَوْلِيَآءَ وَلَٰكِنَّ كَثِيرًا مِّنْهُمْ فَٰسِقُونَ ﴿٨١﴾ ﴾ [1]

الله رب العزت فرمائی : ته به وینې ډیر ددې منافقانو نه چه دوی به دوستی د کافرانو سره کوی دا خو ډیر بدترین شی دے هغه چه وړاندے کوی دوی ته نفسونو خپلو چه هغه دوستی د کافرانو ده ، او دا چه الله غصه کیږی پدې باندې او دوی به وی په عذاب کې همیشه * که چرے ایمان راوړے وے دوی په الله تعالیٰ او په نبی کریم ﷺ او په هغه قرآن چه نازل شویدے دۀ ته نو نۀ به وے نیولے دوی دا کافران په دوستانې سره ، او چه دا دوستی کوی نو معلومیږی دا چه د دوی ایمان نشته .

**٨/ دلیل** : هم دغه شان په سورة النساء کې الله فرمائی :

﴿ بَشِّرِ ٱلْمُنَٰفِقِينَ بِأَنَّ لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿١٣٨﴾ ٱلَّذِينَ يَتَّخِذُونَ ٱلْكَٰفِرِينَ أَوْلِيَآءَ مِن دُونِ
ٱلْمُؤْمِنِينَ ۚ أَيَبْتَغُونَ عِندَهُمُ ٱلْعِزَّةَ فَإِنَّ ٱلْعِزَّةَ لِلَّهِ جَمِيعًا ﴿١٣٩﴾ ﴾ [2]

**ترجمه** : " زیرے ورکړه کافرانو ته چه یقینا د دوی دپاره دردناک عذاب دے * دا منافقان هغه کسان دي چه نیسی کافرانو لره په دوستئ سره بغیر د مؤمنانو نه ( مؤمن سره دوستی نه کوی او د کافر سره دوستی کوی ) آیا لټوئ دوی د هغوی سره عزت ( نن صبا ټول خلق ددې عزت دپاره په طلب کې دي چه زما عزت او رتبه باقی پاتې شی ددې دپاره لګیا دي او د کافرو سره دوستی کوی ) نو یقینا عزت خو ټول د الله تعالیٰ سره دے " .

نو د مرتبې دپاره او د عزت دپاره د کافرانو سره د دوستئ کولو نه الله تعالیٰ منع اوکړه او د عذاب الیم وعده ئې ورباندې اوکړه نو معلومیږی چه دا ډیر زیات قبیح او حرام کار دے .

---

[1] [ سورة المائدة : ٨١ ـ ٨١ ] .

[2] [ سورة النساء : ١٣٨ ـ ١٣٩ ] .

**۹/ دليل**: هم دغه شان په سورة " المجادله " كې الله تعالىٰ فرمائي :

﴿ لَّا تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْآخِرِ يُوَآدُّونَ مَنْ حَآدَّ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَلَوْ كَانُوٓاْ ءَابَآءَهُمْ أَوْ أَبْنَآءَهُمْ أَوْ إِخْوَٰنَهُمْ أَوْ عَشِيرَتَهُمْ ۚ أُوْلَٰٓئِكَ كَتَبَ فِى قُلُوبِهِمُ ٱلْإِيمَٰنَ وَأَيَّدَهُم بِرُوحٍ مِّنْهُ ۖ وَيُدْخِلُهُمْ جَنَّٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَا ﴾[1]

ته به اونهٔ مومي يو قوم لره چه هغه به په الله تعالىٰ باندې ايمان راوړى او په ورځ د آخرت باندې به ايمان راوړى ( يعنى داسې كس به ته اونهٔ مومي چه داسې به وى ) او بيا هم دوستى كوى د هغه چا سره چه هغه د الله تعالىٰ سره دشمنى كوى ، نو الله تعالىٰ فرمائى : چه داسى قوم نشى كيدے چه هغه دې مؤمن وى او هغه دې دوستى كوى د الله تعالىٰ د دشمنانو سره .

اے پيغمبره ( ﷺ ) د ذرې هومره ايمان به وركې پيدا نکړې چه د هغه كفارو سره دوستى كوى دا بالكل مؤمن نشى كيدے .

**۱۰/ دليل**: هم دغه شان بل ځائې بيا الله تعالىٰ فرمائى :

﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ ٱرْتَدُّواْ عَلَىٰٓ أَدْبَٰرِهِم مِّنۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ ٱلْهُدَى ۙ ٱلشَّيْطَٰنُ سَوَّلَ لَهُمْ وَأَمْلَىٰ لَهُمْ ﴿٢٥﴾ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُواْ لِلَّذِينَ كَرِهُواْ مَا نَزَّلَ ٱللَّهُ سَنُطِيعُكُمْ فِى بَعْضِ ٱلْأَمْرِ ۖ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ إِسْرَارَهُمْ ﴿٢٦﴾ ﴾[2]

الله تعالىٰ فرمائى : هغه كسان چه هغوى مرتد شويدي ( په څه باندې مرتد شويدي ؟ ) اړول د دين نه واپس په شا باندې مرتد شويدى پس د هغې نه چه دوى ته هدايت خه ظاهر شو شيطان دوى ته دا خبره خائسته كړے ده ( چه يره دوى مرتد شى ) * دا ( ارتداد د دوى پدې وجه باندې راغلے دے ) چه يقينا دوى هغه كسانو ته چه هغوى د قرآن دشمنان دي

---

[1] [ سورة المجادلة : ٢٢ ] .

[2] [ سورة محمد : ٢٥ ـ ٢٦ ] .

قرآن بد ګڼري نو هغوی ته ئې وئيلي زر دے چه مونږ به ستاسو اطاعت کوو په بعضي کارونو کې (خير دے بعضي به ستاسو منو ) ( نو الله تعالیٰ فرمائی : ) او الله تعالیٰ پوهه دے د دوی په پټو رازونو باندې .

لکه کله چه دا ملکونه جوړيدل او آزاديدل نو ددې ملکونو مشرانو او بانيانو باره کې دوی يوه رساله ليکلے ده هغه کې وائی : چه دې مشرانو ( يعنی زمونږه او ستاسو د ملکونو بانيانو ) د برطانيې حکومت ته اووئيل : چه مونږه به آئين او اساسی قانون ستاسو د لاندې چلوو نو « سنطيعکم فی بعض الأمر » او نام نهاد مسلمانانو ملکونو مشرانو ورته اووئيل : سنطيعکم فی کل الأمر يعنی مونږ به په ټولو امورو کې ستاسو اطاعت کوو ، نو الله تعالیٰ فرمائی : چه دا سړے مرتد دے .

**۱۱/ دليل** : هم دغه شان الله تعالیٰ په بل ځائی کې د دوی په باره کې فرمائی :

﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ بِطَانَةً مِّن دُونِكُمْ لَا يَأْلُونَكُمْ خَبَالًا وَدُّوا۟ مَا عَنِتُّمْ قَدْ بَدَتِ ٱلْبَغْضَآءُ مِنْ أَفْوَٰهِهِمْ وَمَا تُخْفِى صُدُورُهُمْ أَكْبَرُ ۚ قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ ٱلْـَٔايَـٰتِ ۖ إِن كُنتُمْ تَعْقِلُونَ ﴿١١٨﴾ ﴾ [1]

اے مؤمنانو ! مۀ نيسئ تاسو پټه دوستی سوا ستاسو نه ( يعنی مؤمنانو نه غير د بل چا سره پټې دوستانې او په زړه کې محبتونه مۀ کوئ ) هغوی خو په تاسو باندې قصور ( کوتاهی ) نه کوی د يو مصيبت او د يو تکليف « ودوا ما عنتم » هغوی دا خوښوی چه تاسو په مشقت کې واچوی « قد بدت البغضاء من أفواههم » ظاهر شوے دے بغض د هغوی د خلې نه چه د دوی په خلې باندې خبرے دي نو بعضي بعضي ظاهرے شی لکه يو ځل ددې بوش خنزير د خُلې نه يوه خبره ظاهره شوه چه دا جنګ صليبی جنګ دے او الله تعالیٰ فرمائی: « وما تخفی صدورهم اکبر » چه په سينو کې ئې چه کوم پټ ساتلی دي نو هغه ډير لوئی دی «قد بينا الآيات

[1] [ سورة آل عمران : ۱۱۸ ] .

ان كنتم تعقلون » الله فرمائی : چه ما درته ښکاره بیان کړه دي آیتونو کې خو که عقل درکې وي سړی توب درکې وی نو هله به بیا ددې خبرو نه فائده واخلئ نو بیا به د کفر سره دوستی نکوئ .

**١٢ / دليل** : دارنګه بل ځائی کې الله تعالیٰ فرمائی :

﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ نَصِيبًا مِّنَ ٱلْكِتَٰبِ يُؤْمِنُونَ بِٱلْجِبْتِ وَٱلطَّٰغُوتِ وَيَقُولُونَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا۟ هَٰٓؤُلَآءِ أَهْدَىٰ مِنَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ سَبِيلًا ۝٥١ ﴾[1]

دا د کعب بن اشرف ذم بیانوی دا یو یهودی عالم وو چه الله تعالیٰ ورته د تورات علم ورکړے وو نو الله فرمائی : چه ما د تورات د څه حصې علم ورکړے وو او دې ایمان راوړی په بتانو باندې په شیطان باندې دا په دې باندې ایمان راوړی او وائي هغه کسان چه کافران دي دا ډیر په هدایت باندې دي د هغه کسانو نه چه ایمان ئې راوړے د جهت د لارې نه پدې سره الله تعالیٰ د کعب بن اشرف ذم پدې بیان کړو چه دا ولې د مشرکانو سره دوستی کوی ، او الله ورته فرمائی : چه ته څنګه د مشرکانو سره دوستی کوے حال دا چه ته خو کتابی یئ او دوی خو ستا مخالف دي دوی خو ستا عقیده ستا نظریه خو نهٔ منی ولې د دوی سره دوستی کوے دا خبره شوه .

**١٣/ دليل** : بل ځائی کې الله جل جلاله فرمائی :

﴿ وَلَمَّا جَآءَهُمْ رَسُولٌ مِّنْ عِندِ ٱللَّهِ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ نَبَذَ فَرِيقٌ مِّنَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ كِتَٰبَ ٱللَّهِ وَرَآءَ ظُهُورِهِمْ كَأَنَّهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ۝١٠١ وَٱتَّبَعُوا۟ مَا تَتْلُوا۟ ٱلشَّيَٰطِينُ عَلَىٰ مُلْكِ سُلَيْمَٰنَ ۖ وَمَا كَفَرَ سُلَيْمَٰنُ وَلَٰكِنَّ ٱلشَّيَٰطِينَ كَفَرُوا۟ يُعَلِّمُونَ ٱلنَّاسَ

---

[1] [ سورة النساء : ٥١ ] .

ٱلسِّحۡرَ . . . الآية ﴾[1]

نو دلته د شيطانانو سره دوستي او د ساحرانو سره دوستي كول الله رب العزت د كفر سبب گرځولے دے .

نو دا شو بعضي دلائل پدې خبره باندې چه د كافرانو سره دشمنى كول واجب دي ، نور هم ډير آيتونه پدې خبره باندې شته دے چه دكفارو سره دشمنى كول واجب دي ، او دا زمونږ د اسلام او د دين واجبه فريضه ده او كوم خلق چه دا خبره كوى چه يره دا خو هم انسانان دي او د حقوق انساني په وجه دوى سره دوستي كوئ دا په حقيقت كې د دې دين نه مرتد شوى خلق دي .

## أقوال العلماء في أن عداوة الكفار واجب

اوس اقوال د علماؤ ذكر كوو چه د كفارو سره دوستي كول دا يو ناروا كار دے او د كافرانو سره دشمنى كول دا واجب دي ، ددې په باره كې د علماء كرامو او فقهائې كرامو ډير زيات اقوال دي خو مونږ به د بعضې مفسرينو او فقهاؤ اقوال رانقل كړو بفضل الله وبعونه :

رئيس المفسرين ابن جرير الطبرى ﷫ ددې : ﴿ لَّا يَتَّخِذِ ٱلۡمُؤۡمِنُونَ ٱلۡكَٰفِرِينَ أَوۡلِيَآءَ مِن دُونِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَۖ وَمَن يَفۡعَلۡ ذَٰلِكَ فَلَيۡسَ مِنَ ٱللَّهِ فِي شَيۡءٍ إِلَّآ أَن تَتَّقُواْ مِنۡهُمۡ تُقَىٰةٗۗ وَيُحَذِّرُكُمُ ٱللَّهُ نَفۡسَهُۥۗ وَإِلَى ٱللَّهِ ٱلۡمَصِيرُ ﴿٢٨﴾ ﴾[2] يو دا آيت شو ، يا دا بل آيت : ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُواْ ٱلۡيَهُودَ وَٱلنَّصَٰرَىٰٓ أَوۡلِيَآءَۘ بَعۡضُهُمۡ أَوۡلِيَآءُ بَعۡضٖۚ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمۡ فَإِنَّهُۥ مِنۡهُمۡۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٥١﴾ ﴾[3] يا دا آيت شو او دا رنګه پدې ځائې كې : ﴿ وَمَن يَتَوَلَّهُم

---

[1] [ سورة البقرة : ١٠١ ـ ١٠٢ ] .

[2] [ سورة آل عمران : ٢٨ ] .

[3] [ سورة المائدة : ٥١ ] .

مِّنكُمْ فَإِنَّهُۥ مِنْهُمْ ﴾ تفسير جامع البيان چه تفسير ابن جرير د علامه ابن جرير الطبرى رحمه الله والا تفسير دے فرمائی : چه «**ومن يتول اليهود والنصٰرى دون المؤمنين فانه منهم فإنه من تولّٰهم ونصرهم على المؤمنين فهو من أهل دينهم وملتهم فإنه لا يتولّٰى متول احد الا هو به و بدينه وما هو عليه راضٍ وإذا رضيه رضى دينه فقد عاد ما خالفه وسخطه وصار حكمه حكمه**» .

څوک چه دوستى کوى د يهودو او نصاراؤ سره ماسوا د مؤمنانو نه د مؤمنانو سره دوستى نه کوى او د يهودو او نصاراؤ سره دوستى کوى نو دا د هغوى نه دے ځکه څوک چه کافرانو سره دوستى وکړى او مسلمانانو خلاف د هغوي امداد وکړى نو دا د هغوى د دين نه دے او د هغوى د ملت نه دے ، او يو کس د چا سره دوستى نه کوى مګر دا ورسره دوستى ځکه کوى چه دي په هغه باندې د هغه په دين باندې د هغه چه کومه خبره وى دا په هغې باندې راضى وي او دا چه کله په هغه باندې راضى شو دا د هغه په دين باندې راضى شو ، او د هغه چه څوک مخالفين وى نو ده به د هغوى سره نه لرى د هغه مخالفين اسلام دے دې د هغه دشمن وګرځيدو او هغه سره نۀ لګى او دشمنى به کوى نو د دحکم او دهغه حکم علامه ابن جرير وائى دا يو اوګرځيدو نو دې د هغه پشان مرتد شو .

اوګوره نن صبا حکومتونو ته او که ته وائې چه دا خو د هغوى په دين باندې ندې راضى؟ نو دا ملکونو په سطح باندې چه دوى دا اجلاسونه کوى په تقارب اديان باندې نو دوى کوم يو دين جوړوى خو دوى اسلام بدلوى د اسلام نۀ غواړى بلکه دوى ډيموکريټ اسلام غواړى.

يوه رساله ده " سول ډيموکريټ اسلام پارټنر ريسورسيز " او مخکې مونږه ددې رسالې نه څه عبارتونه راخستى وو چه مختلف اشياء ئې په رساله کې خودلى وو هغه چيرئيل بنائۀ والا ښځه چه يهودنړه وه چه هغې کوم اسلام پيش کړے وو نو دوى هغه اسلام غواړى دا اسلام نۀ غواړى ، ته به وائې چه څه دليل دے په هغه اسلام باندې نو دا ډير تفصيل غواړى خو دا به روسته راشى ان شاء الله ، خو مختصر دليل دا دے : چه دوى د حدود او قصاص پـﮧ خلاف ( آرډننس ) فرمان جارى کوي چه نام نهاد مسلمان ملکونو چه دوى د امارت اسلامى د

ختمولو دپاره دوی د کفر سره لاس ورکړو ، دغه دلیل دے چه دوی وائی : چه طالبان مونږ د کانړو او د لوټو زمانې ته بوزی دغه دلیل دے چه دوی وائي : مونږ شریعت نه بلکه د عدل او انصاف نظام نافذ کړے دا اخبارونو کې باقاعده بیانات چلولی دی نو دا ددې خبرے دلیل دے که دوی وائی : چه مونږ د اسلام سره مینه ده او یا مونږ اسلام نافذ کوو ، نو مونږ وایو چه داسې به نه وائی ، اوس به داسې څکه نه وائي چه په هره زمانه کې د هغه څیز نه تبری (بائیکاټ) وي چه په کوم څیز کې خلق مصروف وي لکه یو سړے شراب حلال ګنړلی وی نو هغه به د شرابو د حرمت باره کې وائی نو هله به مسلمانیږی نو اوس که دوی وائي چه مونږ خو اسلام منو ، نو پدې باندې دوی نه مسلمانیږے بلکه ته به ورته وائی چه داسی اوایه زه اسلام منم او نافذ کوم ئې هم هغه اسلام چه په پیغمبر علیه السلام باندې نازل شوے هغه اسلام نه چه یهودیانو خپل جوړ کړے دے اوس خو اسلام هغې ته هم وئیلے کیږی، هغه ډیموکریټ اسلام.

نو ددې آیت په تفسیر کې دې علامه ابن جریر رحمه الله دغه شان فرمائیلي دي .

دغه شان علامه سمرقندی رحمه الله په بحر العلوم کې ددې آیت په ضمن کې فرمائی : « یا أیها الذین آمنوا لا تتخذوا الیهود والنصاری اولیاء . . . » نو دې فرمائی : چه تاسو د دې سره دوستی مه کوئ «**فی العون والنصرة**» دلته د واقعې شان نزول بیانوی وائی : چه ددې آیت څه شان نزول وو ددې شان نزول دا وو چه «**أنه لما کانت وقعت أُحد خاف أُناس من المسلمین أن یظهر علیهم الکفار فأراد من کانت بینه وبین النصاریٰ والیهود صحباً ان یتولوهم ویعاقدوهم فنهاهم الله تعالیٰ عن ذلک**» چه کله غزا د احد وه نو بعضی خلق اویریدل چه کافران راباندې غلبه اونکړی نو بعضی مسلمانانو دا اراده اوکړه چه یهودو او نصاراؤ کې د چا ملګرتیا وی نو د هغوی سره به معاهدے او دوستانې اوکړو نو بس خه مزیداره به بیا زندګی تیره وو که کافران غلبه اوکړی هم نو الله تعالیٰ منع اوکړه چه «**لا تتخذوا الیهود والنصاری اولیاء**» چه مه نیسئ تاسو یهود او نصارا په دوستئ سره یعنی **معیناً وناصراً** معین او ناصر ترینه مه جوړوئ

او يا تاسو ورسره معين او ناصر مه جوړيږئ **بعضهم** اولياء هغوى بعضى په دين د بعضو دي او تاسو خو د هغوى د دين نه مخالف يئ نو تاسو د هغوى سره دشمنى اوكړئ ، **ومن يتولهم منكم أي من اتخذ منهم اولياء** چا چه د دوى نه دوستان اونيول **فإنه منهم** دا به د دوى نه وى يعنى **على دينهم** بيا د هغوى په دين باندې به وى .

علامه سمرقندى رحمه الله په " بحر العلوم " كې وائي : چه دې به د هغوى په دين باندې وى «**ومعهم فى النار**» او دا به دهغوى سره په اوور كې وى ، بيا ورپسې وائى : «**إن الله لايهدى القوم الظالمين** » الله تعالیٰ هدايت نه كوى قوم ظالمانو ته « لا يرشدهم إلى الحجة ما لم يجتهد ويقصد الإسلام » .

دغه شان زمونږ د مذهب تفسير دے " تفسير مدارک " د امام نسفى رحمه الله والا هغه فرمائى : «**لا تتخذوهم اولياء تنصرونهم و تستنصرونهم** وتواخونهم وتعاشرونهم **معاشرة المؤمنين**» داسې دوستى مه كوئ چه تاسو په جنگ كې د دوى امداد كوئ يا د دوى نه امداد غواړئ او تاسو د دوى سره رورولى قائموئ او تاسو د دوى سره معاشرت كوئ لكه څنګه معاشرت چه د مؤمنانو سره كوئ نۀ داسې به نۀ كوئ .

بيا الله رب العالمين د دې نهى علت بيان كړو چه ولې ورسره مۀ كوئ ؟ فرمائى : «**بعضهم اولياء بعض وكلهم اعداء المسلمين وفيه دليل على أن الكفر ملة واحدة ومن يتولهم منكم فإنه منهم أي فإنه من جملتهم وحكمه حكمهم وعاد تغليظ من الله وتشديد فى وجوب المجانبة والمخالفة فى الدين**» د دوى په خپل مابين كې دوستى ده دا ټول د مسلمانانو دشمنان دي او پدې خبره كې دليل دے چه كفر ملت واحده دے دا به د هغوى د قبيلې نه وى او څه چه د هغوى حكم وى چه هغه مونږ قتلوو هغوى مونږ ته مباح الدم دي نو دا به هم مونږ ته مباح الدم شى او د هغوى مال زمونږ دپاره جائز دے نو د دۀ مال به هم جائز شى دا د الله د طرف نه سخت زجر دےچه د مخالف فى الدين نه ځان وساتئ ، نو الله رب العزت پدې ځائې كې ډير سخت زجر وكړو .

**بيا موالات په دوه قسمه دي** : **١/ صوري موالات** دے ، صوري موالات دغه دے لکه ته ورسره دوستي کړے او ته مجبوره ئې په يره « خوف » باندې ئې په صف کې ئې اودرولے ئې نو مونږ وايو چه ګناهګار خه غټ ګناهګار ئې کفر فتوی پداسې ځائې کې ورباندې نه لګی خو چه پداسې زور ئې اودرولې وے چه تا قتلوی ندے پریږدی او که نه د تنخواه دپاره اودریدے نو بيا د اجرتی قاتل دے په اجرت باندې کافر شوے ئې بلکه بيا خو دا اجرتی کافر دے په اجرت باندې ايمان خرخوی .

**٢/ د زړه نه موالات** دے نو سړے پدې دويم قسم موالات باندې کافر کيږی ، ددې خو دا مطلب ندے چه بعضی خلق وائی : چه دا د زړه سره متعلقه خبره ده نو بيا خو په چا باندې په مخ د زمکې د کفر فتوی نشی لګولے ، د زړه مسئله به روستو په اعمالو کې معلوموے چه څوک دا نظام د هغوی پشان غواړی ، نظام د هغوی پشان نظام قائموی د دوی سره هر وخت کې پاڅی او کينی ، د هغوی په صف کې د جنګ دپاره اودريږی نو دا خبره کافی نده چه په دوی باندې د کفر فتوی اولګيږی ؟ او دا د دوی د زړه معامله شی ؟ نو که پدې ځائې کې هم ته ورباندې د کفر فتوی نه لګوے نو بيا هسې بهانې جوړوے ، د زړه خبرے په عمل باندې معلوميږی کنه .

دارنګه مقاتل بن سليمان رحمه الله فرمائی : « **ومن يتولهم منكم أي ومن يتولهم من المؤمنين فإنه منهم أي فإنه يلحق بهم ويكون معهم لأن المؤمنين لا يتولون الكفار** » د مؤمنانو نه چه چا د دوی سره دوستی اوکړه کوم مؤمن چه د دوی سره دوستی اوکړه نو دا به د هغوی سره ملحق وي او د هغوی سره به وی ځکه چه مؤمنانو شان دا دے چه دوستی نکوی د کافرانو سره «**إن الله لا يهدي القوم الظالمين**»يقينا الله تعالیٰ هدايت نه کوی قوم ظالمانو ته.

نو دا په تفسير " **مقاتل** " کې دی ، او دغه شان په " **معالم التنزيل** " کې علامه بغوی رحمه الله هم فرمائی : «**بعضهم اولياء بعض في العون والنصرة**» دوی په خپل مابين کې دوستان دي په خپل مابين کې دوی د يو بل مدد کوی «**ويدُهم واحدةٌ على المسلمين**» او د دوی لاس

چه کوم دے نو هغه په مؤمنانو باندې یوشان دے «**ومن يتولهم منكم فيوافق من يعينهم**» نو هغوی وائی : چه د سره ترجمه ئې مهٔ کوه بس «**فإنه منهم**» دے د هغوی نه دے چه د مؤمنانو خلاف د هغوی امداد کوی او د مؤمنانو خلاف د هغوی سره حمایت کوی «**إن الله لايهدى القوم الظالمين**» الله هدایت نهٔ کوی قوم ظالمانو ته .

او بیا پدې آیت کې د ډیر تفاسیرو اقوال ذکرشویدی ، لکه تفسیر ابن عادل فرمائی :«**ومن يتولهم منكم فإنه منهم أي فيوافق من يعينهم فإنه منهم ، قال ابن عباس : يعنى كانوا مثلهم**» دا به د هغوی په مثل وي ، او دا بیا روستو لیکی : «**فعاد تغليظ من الله وتشديد فى وجوب المجانبة المخالفة فى الدين**» چه ګوره چرته صوری موالات هم اونکړے ځکه چه الله پاک ډیره سختی اوکړه د دوی په موالاتو باندې .

او ددې نظیر داسې دے لکه «**ومن لم يطعمه فإنه منى**» عزالدین ابن عبدالسلام فرمائی: «**فإنه منهم أي مثلهم فى الكفر**» بیا دا فرمائی : چه دا ابن عباس ﷺ فرمائیلی دي چه مثل د هغه دے په کفر کې .

او دغه شان ابو حیان رحمه الله فرمائی : چه الله پاک منع کړل مؤمنان د دوستئ د یهودو او د نصاراؤ نه او د هغوی د امداد نه او د هغوی د معاشرت او د هغوی د ژوند تیرولو نه ځکه چه « ومن يتولهم منكم فانه منهم أي فانه منهم فى الكفر » دا په کفر کې دے أي ومن يتولهم فى الدين چا چه ورسره په دین کې دوستانه اوکړه .

او مونږ به روسته دا خبره ثابته کړو ان شاء الله چه د دوی ورسره دوستانه په دین کې وه او که په دنیا کې وه .

وقال غيره : «**ومن يتولهم فى الدنيا فانه منهم فى الاخرة**» او وئیلی دي غیر د دوی نه چه چا دوستانه اوکړه د دوی سره په دنیا کې نو دا به د دوی سره په آخرت کې هم وی .

نو دا خو د یو آیت تشریح شوه چه کومه تا اولوستله .

او هر چه دا بل آیت دے : ﴿ لَّا يَتَّخِذِ ٱلۡمُؤۡمِنُونَ ٱلۡكَٰفِرِينَ أَوۡلِيَآءَ مِن دُونِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَۖ وَمَن

يَفۡعَلۡ ذَٰلِكَ فَلَيۡسَ مِنَ ٱللَّهِ فِي شَيۡءٍ إِلَّآ أَن تَتَّقُواْ مِنۡهُمۡ تُقَىٰةٗۗ وَيُحَذِّرُكُمُ ٱللَّهُ نَفۡسَهُۥۗ وَإِلَى ٱللَّهِ ٱلۡمَصِيرُ ۝٢٨ ﴾[1]

چه مؤمنان دې کافران په دوستئ سره نهٔ نیسی او چا چه دا کار اوکړو نو دا ندے د الله نه په یه یو څیز کې ، ددې څه مطلب شو چه دې ندے د الله نه په هیڅ څیز کې ؟

تفسیر " ابن جریر " فرمائي : « **لا تتخذوا أیها المؤمنون الکفار ظهورا انصارا توالونهم علی دینهم وتظاهرونهم علی المسلمین من دون المؤمنین وتدلونهم علی عوارتهم فإنه من یفعل ذلک فلیس من الله فی شیئ أي فقد برئ الله منه وبرئ من الله بإرتداده عن دینه ودخوله فی الکفر** » کافران مهٔ نیسئ په دوستئ سره او په امداد سره چه تاسو د دوی سره په دین کې دوستاني کوئ او د مؤمنانو خلاف د هغوی امداد کوئ ماسواء د مؤمنانو نه او پټ رازونه د مسلمانانو ورته خائې چا چه دا کار اوکړو الله د دنه بری دے او دا د الله تعالیٰ نه بری دے ځکه چه دا مرتد شو د خپل دین نه او دا په کفر کې داخل شو .

نو دا مطلب شو د **فلیس من الله في شیئ . . . الخ** .

دغه شان تفسیر خازن فرمائی : « **ومن یفعل ذلک** » یعنی چا چه موالات د کافرانو اوکړل او کفارو ته خبرونه وړی د مسلمانانو رازونه ورته ښکاره کوی او دا د کافرو سره دوستانه او محبت کوی نو « **فلیس من دین الله فی شئ** » نو دا د الله د دین نه په هیڅ څیز کې هم ندے .

او دغه شان علامه بغوی ﷫ فرمائی : « **ومن یفعل ذلک فی نقل الاخبار الیهم و إظهارهم علی عورات المسلمین أي لیس من دین الله في شئ** » چا چه دا موالات د کفارو اوکړل چه هغوی ته خبرونه نقل کوی او هغوی ته ښکاره کوی پټ رازونه د مسلمانانو نو دا ندے د دین د الله نه په هیڅ څیز کې د الله په دین باندې بیا ندے متدین .

او هر چه دا بل آیت دے : ﴿ لَّا تَجِدُ قَوۡمٗا يُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِ يُوَآدُّونَ مَنۡ

[1] [ سورة آل عمران : ٢٨ ] .

حَـآدَّ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ . . . الآية ﴾[1]

نو ددې آيت په باره کې هم د مفسرينو ډير زيات اقوال دي بعضى ترينه رانقل کوو :

علامه ابن الجوزى رحمه الله په " زاد المسير " کې فرمائي : « **وهذه الآية قد بيَّنتُ أن مودَّة الكفار تقدح في صحة الإيمان ، وأن من كان مؤمناً لم يوالِ كافراً وإن كان أباه أو ابنه أو أحداً من عشيرته** »[2].

دې آيت دا بيان اوکړو چه دوستى د کافرانو دا نقصان راولى په صفت د ايمان کې ، او څوک چه مؤمن وى هغه به چرته هم د کافر سره دوستى اونکړى اګر که د ده پلار وى او که د ده ځوئى وى او که چرته يو کس وى د دهٔ د کورنۍ نه .

او بل دا آيت مونږه مخکې په دلائلو کې ذکر کړے وو : ﴿ بَشِّرِ ٱلْمُنَٰفِقِينَ بِأَنَّ لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿١٣٨﴾ ٱلَّذِينَ يَتَّخِذُونَ ٱلْكَٰفِرِينَ أَوْلِيَآءَ مِن دُونِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ۚ أَيَبْتَغُونَ عِندَهُمُ ٱلْعِزَّةَ فَإِنَّ ٱلْعِزَّةَ لِلَّهِ جَمِيعًا ﴿١٣٩﴾ ﴾[3]

نو ددې آيت په باره کې هم مفسرين فرمائى :

لکه أبو حيان رحمه الله په " بحر المحيط " کې په تفسير ددې آيت کې فرمائى ، او دغه شان تفسير " الثعالبى " هم ليکى : « **نصَّ سبحانه مِنْ صفاتِ المنافِقِينَ على أشدِّها ضرراً ، وهي موالاتُهم الكافِرِينَ** »[4] .

الله سبحانه وتعالى تصريح وکړه د صفاتو د منافقينو نه چه د منافقانو صفات دا دي چه د منافقانو د ټولو نه سخت ترين ضرر ورکول مؤمنانو ته هغه دوستانه د دوى د کافرانو سره

---

[1] [ سورة المجادلة : ٢٢ ] .

[2] [ تفسير زاد المسير : ٦ / ٣ ، تحت آيت المجادلة : ٢٢ ] .

[3] [ سورة النساء : ١٣٨ ـ ١٣٩ ] .

[4] [ تفسير الثعالبى : ١ / ٣٦٩ ، فى تفسير هذه الآية .

ده او هغه په مؤمنانو باندې راوچتوی .

او دغه شان ابو منصور الماتريدی رحمه الله فرمائی : « يدل على ان قوله يا أيها الذين امنوا فی اهل النفاق والمراءٰت » هغه په خپل تفسير کې وائی : چه د دينه معلومه دا شوه چه يا أيها الذين امنوا لا تتخذوا اليهود والنصارىٰ اولياء من دون المؤمنين دا آيت چه دا په باره د اهل النفاق کې راغلے دے ځکه چه هلته ئې وئيلے وو چه يهودو او نصاراؤ سره دوستی مهٔ کوئ دلته وائی : چه څوک ورسره دوستی کوی هغه منافق دے نو بشر المنافقين نو ابو منصور ماتريدی وائی په خپل تفسير تأويلات اهل السنة کې وائی : چه د دينه دا معلومه شوه چه دا آيت په باره د اهل النفاق او اهل المرآت کې راغلے دے .

نو ددې ټولو آيتونو مقصد داشو چه د کافرانو سره داسې دوستی کول چه د هغوی د دين مقابله وی نو ته د مسلمانانو په مخالف باندې اودرېږے او د هغوی د مسلمانانو په مقابله کې امداد اوکړے نو دا کفر دے .

دغه شان حافظ ابن کثير رحمه الله فرمائی : الله جل جلاله خپل مؤمن بندګان منع کړی دي چه هغوی د کافرانو سره دوستی اوکړی او ددې خبرے نه ئې هم منع کړی دی چه مؤمنان پرېږدی او په دوستانه د هغوی سره قائمه کړی او بيا الله پاک اوفرمائيل : ومن يفعل ذلک فليس من الله فی شيئ ، يعنی چه کوم سړے د کافرانو سره دوستی کوېې ددې جرم عظيم ارتڪاب کوی نو الله تعالیٰ فرمائی : چه نه مې ورسره څه تعلق شته او نه مې ورسره څه واسطه شته .

بيا هم دا ابن کثير رحمه الله فرمائی : چه الله تعالیٰ منع کوی د کافرانو د دوستئ نه او بيا دغه شان نور آيتونه ذکر کوی کوم چه مخکې مونږ ذکر کړل .

نو دا ټول اقوال د علماء کرامو او مفسرينو پدې باندې دال دي چه دا کار کول ( موالات ) حرام دي دا کار کول ڪفر دے .

ددې وجه صالح الفوزان رحمه الله فرمائی : «**من مظاهر الموالات الكفار**» چه ستا د کافر سره دوستئ ظاهری مونږ ته څه پته لګی ، هغه وائی چه دا دے «**اعانتهم**» اعانت به ئې کوی «و

**مناصرتهم على المسلمين**» او امداد به ورسره كوي په مسلمانانو باندې «**ومدحهم**» د هغوى مدح او صفت به بيانوى ، څنګه مدح به كوي ؟ لكه زمونږ دوست ملک دے Friand of فلان او فلان دغه شان مدحے ئې كوي او هغوى ته دا الفاظ ښه ښكارى او دوى ته دغه كافران هم ډير خواږه ښكارى او دوى ورته كيني پاخي او دوى د هغوى نه دفاع هم كوى ، بيا فرمائى : «**وهذا من نواقض الإسلام و أسباب الرِدَّة**» چه دا د نواقصو د اسلام نه دي او اسباب د ارتداد دي .

علامه ابن جرير رحمه الله فرمائى : چه صحيح خبره دا ده چه دا آيت : ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُواْ ٱلۡيَهُودَ وَٱلنَّصَٰرَىٰٓ أَوۡلِيَآءَۘ بَعۡضُهُمۡ أَوۡلِيَآءُ بَعۡضٖۚ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمۡ فَإِنَّهُۥ مِنۡهُمۡۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ٥١ ﴾[1]

چه ددې آيت حكم محكم دے ندے منسوخ شوے او ددې آيت په مسلمانانو كې حكم عام دے او تر قيامته پورے به دا حكم عام وي ، او هر چه دا خبره چه دا آيت خو د منافقانو په باره كې نازل شويدے نو دا بالكل صحيح ده خو شان نزول ئې خاص دے او حكم ئې عام دے او دا د تفسير مسئله ده ، هغه منافقينو خو به د يهوديانو او عيسايانو سره دوستاني كولے د هغوى په زړه كې يو خوف ( يره ) پرته وه چه چرته يهوديان او عيسايان د دۀ سره ناسازګار حالاتو مخامخ نشى ، لكه رئيس المنافقين عبدالله بن أبئ بن سلول منافق به دا ويل چه زه خو دوستانه نۀ پريږدم د حالاتو هيڅ پته نه لګى كه صبا له مسلمانانو ته شكست ميلاؤ شى نو زه به بيا څه كوم ، دا كلمه ډيره خطرناكه كلمه ده دا مۀ وائى نو بعضى خلق منافقين وى او مجاهدينو ډلے ته راداخل شوى وى په قوم باندې به داسې پردې راچوى او كه غلط كارونه كوى نو دا بيا ورته غږ نۀ كوى ، او دا خبره كوى كه صبا له مجاهدين ختم شو نو زه به بيا څه كوم دا د عبدالله بن ابى منافق كلمات وو .

---

[1] [ سورة المائدة : ٥١ ] .

ددې وجه نه الله رب العزت په سورة المائدة آيت نمبر 52 کې د دوی بنۀ وضاحت کړيدے لکه الله رب العالمين فرمائی :

﴿ فَتَرَى ٱلَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ يُسَٰرِعُونَ فِيهِمۡ يَقُولُونَ نَخۡشَىٰٓ أَن تُصِيبَنَا دَآئِرَةٞۚ فَعَسَى ٱللَّهُ أَن يَأۡتِيَ بِٱلۡفَتۡحِ أَوۡ أَمۡرٖ مِّنۡ عِندِهِۦ فَيُصۡبِحُواْ عَلَىٰ مَآ أَسَرُّواْ فِيٓ أَنفُسِهِمۡ نَٰدِمِينَ ﴿٥٢﴾ ﴾[1]

ته به وينې هغه کسان چه د هغوی په زړونو کې مرض دے هغه به پدې دوستانه کې نيغ نيغ کيږی چه زه ورسره څه دوستانه جوړه کړم اوس نام نهاد مسلمان ملکونه دا کوشش کوی چه مونږ د دوی ښۀ خدمت وکړو چه هندوانو او بعض مغربي ممالک دوستی مونږ سره جوړه کړی او مونږ سره مضبوط شی ، ځکه يريږی چه مونږ چرته راروان وخت کې سخت تکاليفو سره مخامخ نشو ، نو الله فرمائی : چه ډيره قريبه ده دا چه فتح به راولی او يا به امر د خپل طرف نه راوليږی نو اوبه ګرځی دوی هغه چه په خپلو نفسونو کې ئې څه پټول په هغې به دوی خپيمانه شی .

او د بعضو نام نهاد ملکونو سره نن هم دا غم دے چه امريکه لاړه شی نو زه به څه کوم الله پاک خومره عجيب د پيشن ګوئی والا کتاب راليږلے دے .

او الله تعالیٰ فرمائی : « فعسى الله أن يأتي بالفتح » زر دے چه الله تعالیٰ فتح راولی نو بيا به څۀ چل وشی ؟ ﴿ فَيُصۡبِحُواْ عَلَىٰ مَآ أَسَرُّواْ فِيٓ أَنفُسِهِمۡ نَٰدِمِينَ ﴿٥٢﴾ ﴾[2] نو زر دے چه دوی به خپيمانه شی ، نو دا د الله تعالیٰ کلام دے .

نو ددې وجه نه علامه ابن جرير ﷫ فرمائی : چه الله پاک مسلمانان ددې خبرے نه منع کړل چه هغوی د يهوديانو او عيسايانو خپل حمايتی او مددګار په جنګ کې جوړ کړی او د مؤمنانو خلاف الله تعالیٰ باندې او د هغه په رسول باندې ايمان اولری او د هغوی خلاف مؤمنانو چه کوم مؤمنان په الله او په رسول باندې ايمان لری د هغه خلاف دوی اودريږی نو

---

[1] [ سورة المائدة : ٥٢ ] .

[2] [ سورة المائدة : ٥٢ ] .

د دينه الله پاک منع اوکړه الله ددې خبرے خبر هم ورکړو چه کوم مسلمانان الله او رسول الله ﷺ او مؤمنان پريږدی او کافران خپل حمايتی جوړ کړی او مددګار او دوستان ئې جوړ کړی نو بيا د هغې يهودی او عيسائی پارټۍ يو فرد اوګنړلے شی نو ګويه دا سرے د الله رب العالمين او د رسول الله ﷺ او دمؤمنانو په مد مقابل کې د کافرانو په پارټۍ او په جماعت کې يو رکن اوګرځيدلو او الله او رسول د هغه نه کليةً ( يعنی مکمل ) بيزاره او لا تعلقه دي ، نو ابن جرير رحمه الله ددې آيت د لاندې دا کلام فرمائيلے دے .

علامه جمال الدين قاسمی رحمه الله فرمائی : چه دا خبره صحيح نده چه زما په زړه کې د دوی سره مخالفت دے او زه د دوی خلاف يم نۀ بلکه اصل شی کردار دے هغه وائی « ومن يتولهم منكم فإنه منهم » ددې مطلب دا دے : چه کوم سرے د يهوديانو او عيسايانو سره دوستی کوی نو دا د هغوی په ډله کې شميرلے کيږی د هغوی سره دوستی کونکے په هغه باندې هغه حکم نافذ کيږی کوم چه په يهودو او نصاراؤ باندې نافذ کيږی .

د هغوی په باره کې الله تعالیٰ دا حکم لګولے دے چه : ﴿ وَٱقۡتُلُوهُمۡ حَيۡثُ وَجَدتُّمُوهُمۡ ﴾[1] نو د دوی به هم دغه حکم وی چه په کوم ځائی کې دوی اوموميئ مړ ئې کړئ ، باوجود ددې چه هغوی به دا دعوے کولے چه زه د يهوديانو او عيسايانو مخالف يم خو بيا هم ظاهری حالات او واقعات عمل او کردار ددې شهادت ورکوی چه دا د کافرانو سره پوره پوره موافق دے نو دا د دغې خبرے دليل دے چه د دۀ په زړه کې ورسره مينه ده که د دۀ په زړه کې مينه نوے نو دې د مسلمانانو په مخالفت کې ولے اودريدلو ، نو دا ئې دلائل دي .

دغه شان علامه ابن تيميه رحمه الله فرمائی : « ومن يتولهم منكم فيوافقهم ويعينهم » څوک چه د دوی سره دوستی کوی موافقت ورسره کوی او اعانت ( مدد او مرسته ) ورسره کوی نو فانه منهم » فرمائی : چه مفسرين پدې خبره باندې متفق دي چه دا آيت نازل شوے دے په سبب د يو قوم باندې چه د هغوی په خلے باندې اسلام ظاهرولو او په زړه کې ئې مرض وو

[1] [ سورة النساء : ٨٩ ] .

او ددې خبرے نه یریدل چه اهل اسلام به مغلوبه شی نو د کافرانو سره به ئې دوستی کوله د یهودو او نصاراؤ سره د خوف د وجه نه چه د هغوی په زړونو کې وو نهٔ د اعتقاد د وجه نه چه دا پیغمبر ( ﷺ ) دروغجن دے او یا یهود او نصارا صادقان دي پدې ښهٔ پوهیدل چه یهود او نصارا دوغجن دي او پیغمبر علیه السلام صادق دے خو ددې خوف د وجه نه ئې دا کول نو الله فرمائی : دا مرتد دي که یو سړے دا ووائی چه که اسلام مغلوب شی نو بیا به څه کوو؟

نو علامه ابن تیمیه رحمه الله اوفرمائیل : چه که دا سړے د خوف د وجه نه ورسره دوستی کوی چه یره اسلام به صبا مغلوبه شی نو دهٔ په اسلام باندې بدګمانی اوکړه نو ددې بدګمانی د وجه نه الله وائی کافر شوے او مرتد شوے دے نو اوګوره دې د زړه نه جوړ نوو خلق وائی دا فیصله په زړه باندې دی دا د زړه خبرې دي چه په زړه کې ورسره محبت شته او که نشته نو دا تاسو اونهٔ کتل هغه دا وائی : چه زړه کې ورسره نوو هغوی خو پدې خبره اعتقاد وو چه پیغمبر علیه السلام صادق دے او پدې خبره ئې اعتقاد وو چه یهود او نصارا کاذبین دے خو لیکن بیا هم الله فرمائی : چه دا کافر دے نو اوس دې اوسنو سره به څه کوے .

امام قرطبی رحمه الله فرمائی : « ومن یتولهم منکم یعضدهم علی المسلمین » یو سړے دې د دوی سره دوستی کوی یعنی دوی قوی کوی او مضبوطه وی ئې د مسلمانانو خلاف نو (فانه منهم) یعنی دوی به د هغې نه شمیرلے شی .

ګویا که الله ډیر په وضاحت سره دا خبره اوفرمائیلے چه د دوی سره هغه رَوِیه کول پکار دي کومه رویه چه د یهودو او عیسایانو سره کیږی .

دغه سړے د چا مسلمان په مال کې وراثت کې حقدار نشی جوړیدے تفسیر قرطبی رحمه الله فرمائی : چه کوم سړے د کفارو سره دوستی کوی او د مسلمانانو خلاف امداد ورکوی نو د مسلمان په مال کې دې وارث نشی جوړیدے دا مرتد دے ځکه چه مړ کیدو نه پس به د هغه مال مسلمانانو وارثانو کې تقسیمیږی او دې خو مرتد شوے دے نو بیا دا خبره ذهن نشین کول پکار دی چه دا حکم به تر قیامت پورے جاری وی او دا حکم منسوخ شوے ندے دغه رنګه سلیمان بن عبد الله وائی : « **نها سبحانه وتعالیٰ عن اتخاذ الیهود والنصاریٰ اولیاء**

**الله»** الله تعالیٰ منع اوکړه د دوستانې نیولو نه د یهودو او نصاراؤ سره **«واخبر أن من تولهم من المؤمنين»** او الله پاک خبر ورکړو چه څوک دوستی اوکړی د دوی سره د مؤمنانو نه نو فانه منهم نو دا به د دوی نه ګنړلے کیږی **«و هکذا حکم من تولی الکفار»** دوی صرف یهود او نصارا ندی دا حکم د هغه چا دے چه د کافرانو سره دوستی اوکړی **« من المجوس »** د مجوسیانو نه **«وعباد الأصنام»** او د بتانو د عبادت کونکو نه « فهو منهم » دا د هغوی نه دے تر دې قول پورے چه « ولم يفرق تبارك وتعالى » الله پاک تفريق اونکړو **« بين الخائف وغيره»** که څوک یریږی او که څوک نۀ یریږی « بل اخبر تعالیٰ » بلکه الله پاک خبر ورکړو **«إن الذين فی قلوبهم مرض يفعلون ذلک خوف الدوائر»** د زمانې د ګردش نه او د مصیبتونو نه شکست نه یریږی نو دا هغه سړے وی چه هغه منافق وی **«و هکذا هؤلاء المرتدين»** دغه شان د دې زمانې مرتدین هم دغه شان دي .

نو اوګوره الله تعالیٰ بار بار د دوی په کفر بیان اوکړو او علماء کرام هغوی پدې باندې تبصرے اوکړے چه دا کفر دے وائی چه : ﴿ وَلَوْ كَانُوا۟ يُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلنَّبِىِّ وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْهِ مَا ٱتَّخَذُوهُمْ أَوْلِيَآءَ ﴾[1]نو راغلے دے .

علامه ابن تیمیه رحمه الله فرمائی : چه الله پاک جمله شرطیه ذکر کړه جمله شرطیه ددې خبرے تقاضا کوی چه کله شرط موجود شی نو مشروط به موجودیږی په حرف د لو سره او حرف د لو تقاضا ددې خبرے کوی چه انتفاء د شرط سره انتفاء د مشروط راځی چه کچرته په دۀ کې ایمان وے نو دۀ به د کافرانو سره دوستی نوے کړے ، نو چه دې د کافرانو سره دوستی کوی نو شرط ئې منتفی دے نو ایمان ئې هم منتفی دے چه مشروط دے نو په دې کې ایمان نشته دے .

نو غټو غټو علماؤ پدې باندې تصریح کړیده نو « فدل على أن الإيمان المذكور ينف القلب»

---

[1] [ سورة المائدة : ٨١ ] .

دې خبرے دلالت اوکړو پدې خبره باندې چه ایمان مذکور د زړه نه نفی شو .

« فدل ذلک علی أن من اتخذهم اولياء ما فعل الإيمان الواجب من الإيمان بالله والنبي وما انزل اليه » دا فرمائی : چه چا دا کار اوکړو پدې خبره باندې دلالت کوی دا آیت چه دې سړی کې ایمان نشته دے په الله او په رسول او په قرآن په حقیقت کې ، دغه سړی پدې باندې ایمان نشته .

*******

## الــولاء والـــبراء [ دويـــمه حـصـــه ]

مخکې مونږه د ولاء او د براء مسئله شروع کړې وه پدې خبره باندې مونږه دلائل ذکر کړل چه د مسلمانانو سره ولاء واجبه ده او پدې موالات کې څو قسمه داسې دي چه هغه ستا دپاره جائز دی مثلا : د کفارو سره ته تجارت کوے نو اسلام په تا باندې پابندی نه لګوی د کفارو سره بالکل تجارت کوه د کفارو ملک ته ځې د جاسوسۍ دپاره نو بالکل لاړ شه کفارو ملک ته ځې د سفارتخانې په طور باندې په سفارت خانه کې چه کله اسلامی ملک وی ځکه چه اسلامی ملک د کفارو په ملکونو کې سفارت خانو کې هم کیدے شی لیکن خبره دا ده چه د کفارو سره داسې قسمه دوستی کول چه ته ورسره بالکل په صف کې ورننه وځې د هغوی دفاع او اعانت ئې کړے په حرب ( جنګ ) کې مسلمانانو خلاف په جنګ کې اودریږی او مسلمان سره د هغه په سر باندې جنګ کړے د هغه دین په خپل ملک کې رائج کوے نو دا بیا سور کفر دے علماء کرامو بیا په دې باندې تصریح کړے ده نو په دې باندې مونږ دلائل ذکر کول هغه دلائلو کې مونږ څه دلائل ذکر کړل لکه تفسیر ابن جریر او بعضی نورو تفاسیرو په هغې باندې تصریح کړے وه چه چا دا کار اوکړو نو دې د اسلام نه مرتد دے او د اسلام نه خارج دے نو دا دلائل خو ذکر شو.

په دیکې امام سلیمان ابن عبدالله په کتاب کې فرمائی : « أنه يجب على المسلم » په مسلمان باندې دا فرض دی « أن يعلم » چه هغه دا خبره اوپیژنی « أن الله افترض عليه » چه الله فرض کړے دے په دۀ باندې « عداوت المشركين » عداوت او دشمنی د مشرکانو نو چه الله پاک په مسلمان باندې د مشرکانو سره دشمنی فرض کړے ده او د کفارو سره ئې دوستی وربandې حرامه کړیده « وعدم مولاتهم » او د دوی سره دوستی نه کول ئې وربandې فرض کړیدی « واخبر » او بیا الله پاک دا خبر ورکړو « ان ذلک من شروط الإيمان » چه دا د شروطو د ایمان نه دي چه د دوی سره دوستی نه کول دا د ایمان دپاره شرط دے او د دوی سره دوستی کول د دوی سره محبت ساتل پدې سره د ایمان شرط ختمیږی « ونفى الإيمان عمن يواد من حاد الله ورسوله » او الله پاک ایمان نفی کړو د هغه چا نه چه محبت او دوستی کوی د هغه چا

سره چه هغه د الله او د الله د رسول سره دشمني کوي نو د هغه سړی نه ئې ايمان نفی کړو چه د دهٔ ايمان نشته لکه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ لَّا تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ يُوَآدُّونَ مَنْ حَآدَّ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ ﴾[1]

تهٔ به اونهٔ مومې يو قوم لره چه هغې دې په الله ايمان هم راوړی او بيا دې دوستی د الله د دشمنانو سره کوی په داسې قوم کې زره برابر ايمان هم نشته چه هغه وائی چه زه په الله باندې ايمان لرم او هغه دې دوستی د الله د دشمنانو سره کوی « ولو کان اقرب قريب فی النسب » اګر که وی ډير نزدې په نسب کې خو ليکن سره ددينه به ئې بيا هم د ده سره دشمني وی د لا إلٰه إلا الله د مفهوم د ساتلو دپاره د کفارو سره دشمني دا واجبه ده ځکه دا خبره مونږ بار بار ذکر کړه چه د لا إلٰه إلا الله مفهوم د کفارو په دشمنئ باندې مبنی دے ځکه چه لاإلٰه نه منم بل معبود نو نه معبود منم او نه دهٔ معبود متبعين منم او نه د معبود قانون منم نه د بل معبود رسم او رواج منم إلا الله مګر يو الله تعالیٰ منم نو د لا إلٰه إلا الله د شرائطو نه دا دے چه ته به د مشرک سره دوستی نکوے ځکه جرير رضي الله عنه ته پيغمبر عليه السلام اووئيل : چه «**أبايعک على أن تعبدالله ولا تشرک به شيئاً وتقيم الصلوٰة وتؤتی الزکوٰة وتصوم رمضان وتنصح المسلم وتفارق المشرک يا وتبرأ من الكافر**»[2] چه ته به د مشرک نه ځان جدا ساتې نو دا ئی ورته ددې وجه نه اووئيل چه ته به د کفارو او د غيرو چه کوم معبودان د هغو معبودانو نه به هم تعلق کټ کوی ځکه چه ابراهيم عليه السلام اوفرمائيل :

﴿ فَإِنَّهُمْ عَدُوٌّ لِّىٓ إِلَّا رَبَّ ٱلْعَٰلَمِينَ ۝٧٧ ﴾[3]

ستاسو دا معبودان زما دشمنان دي نو دغه ځائی کې ئې ورته اووئيل : چه زما دشمنان

---

(1) [ سورة المجادلة : ٢٢ ] .

(2) [ مسند أحمد ، رقم الحديث : ١٨٤٣٦ ] .

(3) [ سورة الشعراء : ٧٧ ] .

دي او په بل ځائې کې ئې د دوی سره دشمنی ظاهره کړه او ورته ئې اوويل : ﴿ كَفَرْنَا بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ ٱلْعَدَٰوَةُ وَٱلْبَغْضَآءُ أَبَدًا حَتَّىٰ تُؤْمِنُواْ بِٱللَّهِ وَحْدَهُۥٓ ﴾[1]

د متبعينو په باره کې ئې څه اوويل : « كفرنا بكم اولياء الطاغوت » چه ورته وئيلے کيږی مونږ په تاسو باندې کفر کوو او ستاسو او زمونږ په مابين کې به دشمنی وی نو چه دشمن د چا سره وی نو څوک د هغه په صف کې نه اودريږی « والبغضاء » او بغض به وی ترڅو پورے به دا دشمنی او بغض وی « حتى تؤمنوا بالله وحده » تر دې چه تاسو په يو الله تعالىٰ باندې ايمان راوړئ ، نو د متبعينو نه ئې هم الله تعالىٰ منع اوکړه چه د دوی سره به هم تعلقات نه ساتې ځکه ئې ملت ابراهيمی په مونږ او تاسو باندې فرض کړو چه تاسو به په ملت ابراهيمی باندې چليږی .

نو کلمه د توحيد د لاإلٰه په نفی کې دا خبره ظاهره وی چه د لاإلٰه بل معبود نشته نه به د بل معبود عبادت کوے نه به د هغه معبود سره دوستی کوے او نه به د هغه معبود دين ته په ښه نظر ګورے نه به د هغه معبود د دين دپاره جنګيږی نه به د هغه معبود د قول دپاره تأويلات کوے او نه به د هغه معبود د متبعينو سره تعلقات ساتې اسلام داسې لاإلٰه کې نفی اوکړه او إلا الله يو د الله دپاره به محبت کوے د يو الله به عبادت کوے د يو الله د متبعينو سره او د هغه د عابدينو سره به موالات او محبت کوے دلته ئې درته د دوستئ او دشمنئ مدار کيخودو او دا شروط د ايمان شو لاإلٰه إلا الله : ﴿ فَمَن يَكْفُرْ بِٱلطَّٰغُوتِ وَيُؤْمِنۢ بِٱللَّهِ فَقَدِ ٱسْتَمْسَكَ بِٱلْعُرْوَةِ ٱلْوُثْقَىٰ ﴾[2]

نو فمن يكفر بالطاغوت دا شو و يؤمن بالله كفرنا بكم و بدا بيننا وبينكم الخ دا شو حتى تؤمنوا بالله وحده أفرئيتم ما كنتم تعبدون ، لا إلٰه إلا الله أنتم وأبائكم الأقدمون فانهم

---

[1] [ سورة الممتحنة : ٤ ] .

[2] [ سورة البقرة : ٢٥٦ ] .

عدولی لاإلٰه إلا الله شو او وريسي إلا رب العـٰلمين الا الله شو ، دا خبره د ايمان د شرائطو نه اوګرځيده .

د دې وجه نه علامه ابن جرير الطبری رحمه الله دا سيد المفسرين دے او طبقات المفسرين کې ليکی وائی : که چرته ابن جرير رحمه الله رائی يو طرف ته وی او د نورو مفسرينو رائی بل طرف ته شی نو د ابن جرير رحمه الله رائی به وحده يواځې اغستلے شی او دا اولنې هغه سړے دے چه د تفسير د قرآن بالحديث کړے دے بيا تفسير ابن کثير د دهٔ نه اخذ کړے دے نو دا استاذ المفسرين او سيد المفسرين دے ، دا علامه ابن جرير رحمه الله فرمائی : اے هغه خلقو چه تاسو په صحيح زړه سره او په رشتيا زړه سره کلمه وائی لا إلٰه إلا الله وائی او پيغمبر عليه السلام چه تاسو ته کوم شريعت راوړے په هغې باندې د زړه نه په رشتيا سره اقرار کوئ سره د دې نه چه تاسو په الله باندې د زړه په صداقت ايمان راوړئ سره د دې نه چه تاسو د پيغمبر په شريعت باندې په رشتيا ايمان راوړئ دروغ ورکې نهٔ وائی خو سره د دينه کچرته تاسو د تورات او د انجيل يعنی د يهودو يا د نصاراؤ نه د يو جماعت پيروی اوکړه سره ددينه چه هغوی ځان په خپله کتاب الـٰهی طرف ته منسوب کوی نو که تاسو د هغوی تابعداری اوکړه نو لازما به هغوی تاسو ګمراه کوی او د دين نه به مو اړوی او مرتد کوی به مو نو ارتداد ته به رسيږئ :

﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا۟ لِلَّذِينَ كَرِهُوا۟ مَا نَزَّلَ ٱللَّهُ سَنُطِيعُكُمْ فِى بَعْضِ ٱلْأَمْرِ ۖ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ إِسْرَارَهُمْ ﴿٢٦﴾ ﴾[1]

منافقينو وئيلے وو هغه کسانو ته چه هغوی د قرآن سره نالګی وه او د قرآن دشمنان وو نو هغوی ورته اووئيل : چه بعضی بعضی خبرے به مونږ ستاسو منو ، نو الله تعالیٰ اوفرمائيل:

﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ ٱرْتَدُّوا۟ عَلَىٰٓ أَدْبَـٰرِهِم مِّنۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ ٱلْهُدَى ۙ ٱلشَّيْطَـٰنُ سَوَّلَ لَهُمْ

[1] [ سورة محمد : ٢٦ ] .

وَأَمۡلَىٰ لَهُمۡ ۝٢٥ ﴾[1]

نو الله فرمائی دغه کسان مرتد دي د ارتداد فتوی ئې وربانديې ولګوله ، سنطيعکم فی بعض الأمر ، او که يو سړے راپاڅی او د اقوام متحده سره دا اعلان اوکړی چه زه به پوره په پوره بانديې د اقوام متحده د آئين نه لانديې زندګی تيروم زه به د بين الأقوامی قوانينو نه روګردانی ( په شاه بانديې واپس کيدل ) نه کوم او زه به د جمهوريت پوره پوره پاسداری کوم او جمهوريت به زه برقرار ساتم نو دا سړے بيا مسلمان نۀ شی پاتې کيدلے .

دغه شان ابن جرير رحمه الله ددې آيت په ضمن کې فرمائی : ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِن تُطِيعُواْ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ يَرُدُّوكُمۡ عَلَىٰٓ أَعۡقَٰبِكُمۡ فَتَنقَلِبُواْ خَٰسِرِينَ ۝١٤٩ ﴾[2]

اے د ايمان والاؤ ! که چرته تاسو تابعداری اوکړه د هغه کسانو چه کافران دي نو مرتد به کړی تاسو د دين خپل نه ( په شاه بانديې به مو د خپل دين نه واړوی ) نو تاسو به وګرځئ تاوانيان ، يعنی په اعمالو کې به ستاسو حبط راشی اعمال به مو برباد شی ددې آيت په ضمن کې مفسر ابن جرير رحمه الله فرمائی : چه اے هغه خلقو چه الله تعالیٰ تاسو سره وعدے کړيدي او وعيدونه ئې درته درکړيدي او اوامر او نواهی د الله تعالیٰ تاسو رشتيا ګنړئ او حق ئې منئ نو « ان تطيع الذين كفروا » سره د دينه چه د ايمان والا ئې د الله په وعدو او وعيدونو مو ايمان دے د الله په کتاب بانديې مو ايمان دے سره د دينه چه دا هر څه منئ نو که تاسو اطاعت د يهودو او نصاراؤ اوکړو د کافرانو اطاعت مو وکړو يعنی هغه کسان چه هغه د پيغمبر عليه السلام خاتم الرسل د نبی آخر زمان د رسالت نه انکار کوی که د هغوی اطاعت مو وکړو نو بيا الله تعالیٰ ارشاد اوفرمايو : که چرته تاسو ددې يهودو او نصاراؤ خبره اومنله يعنی کومې خبرے حکم دوی تاسو ته کوی او تاسو هغه حکم په ځائی بانديې راوړو کوم کار نه دوی تاسو منع کوی او تاسو اونکړو لکه مثلا هغوی درته اووئيل : چه مونږ سره اتحاد

[1] [ سورة محمد : ٢٥ ] .

[2] [ سورة آل عمران : ١٤٩ ] .

کروسيټ ( Croset ) کې اتحاد د حربي صليبي کې تاسو مونږ سره شريک شئ نو فورا شريک شوئ او تاسو ته ئې اووئيل : چه تاسو فورا د خپل ملک نه د طالبانو سفارتخانې ختمې کړئ نو تاسو فورا ختمې کړے پدې پسې مو هر څه اومنل پدې معامله کې تاسو د هغوی رائی او د هغوی نصيحت قبول کړو او هغه مو اعزاز اوګڼړلو لکه نن ئې چه خلق اعزاز ګڼړی هاں دا خبره خلق اعزاز ګڼړی چه مونږه د هغوی سره د دهشت ګردو خلاف جنګيږو لکه څنګه چه نن خلق اعزاز ګڼړی او په هر هغه معامله کې چه تاسو د دوی رائی او د دوی خيال قبول کړو او دا مو اعزاز اوګڼړو او په هر هغه معامله کې چه تاسو ته نصيحت کوی او هغه نصيحت مو قبول کړو چه د هغې په باره کې تا ته کافر دا خبر ظاهره وی چه هغه ستا خيرخواه او ستا همدرد دے يعنی مطلب دا نۀ چه هغه تاته ووائی چه کافر دے شه او کافر شی نو ته به هله کافر کيږی نۀ چه کومو خبرو کې هغه تاته خپله خيرخواهی ظاهره وی او کومو خبرو کې هغه تاته همدردی ظاهره وی د هغې د خيرخواهئ په خبرو کې د هغې د همدردئ په خبرو کې تا د هغه طرز عمل او د هغه اطاعت ګزاری تا اوکړه نو د ايمان د راوړلو نه بعد هغه به تا مرتد جوړوی دې باندې ته مرتد کيږی ، علامه ابن جرير رحمه الله وائی : پس د ايمان راوړو نه بيا هم تۀ د هغوی اطاعت کوے نو دا په حقيقت کې د الله او د هغه د رسول د شريعت نه انکار کول دې او د دينه پس بيا لازمی او بديهی نتيجه دا ده چه « فتنقلبوا خاسرين » چه هغه به تا د خپل دين نه واړوی او ددې د وجه نه به بيا الله پاک چه کوم هدايت درته الله پاک کړے عقيده د ايمان ئې درته درکړيده د هغی نه به دې واړوی نو ته به هلاک او برباد شی او ته به نقصان کې پريوځې او بيا به روستو ارمانونه کوے .

ابن جرير رحمه الله پدې ځائی کې د ابن اسحاق په سند سره يو روايت رانقل کړے دے چه هغه وائی : «**فتنقلبوا خاسرين**» چه معنی ئې دا ده چه تاسو به د خپل دين په معامله کې خساره اوچته کړئ د دين په معامله کې خساره دا ده چه سړے کافر شی او دين ترينه پاتې شی .

او ابن جرير رحمه الله په بل ځائی کې د امام سدی رحمه الله نه نقل کوی هغه فرمائی : « إن

تطيع الذين كفروا يردوكم على أعقابكم » كچرته تاسو اطاعت د ابو سفيان اوكړو يردوكم كفارا نو دوی به تاسو كافران كړی په هغه زمانه كې يعنی دا د هغه وخت خبره ده .

نو پدې ځايونو كې الله تعالىٰ د كافرانو د دوستۍ نه په سختۍ سره منع اوكړه او دائی د شروطو د ايمان نه اوګرځول .

بل ځائی كې الله تعالىٰ فرمائی :

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُواْ ٱلۡكَٰفِرِينَ أَوۡلِيَآءَ مِن دُونِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَۚ أَتُرِيدُونَ أَن تَجۡعَلُواْ لِلَّهِ عَلَيۡكُمۡ سُلۡطَٰنٗا مُّبِينًا ١٤٤ ﴾[1]

اے د ايمان والاؤ ! د مؤمنانو نه علاوه د كافرانو سره دوستى مهٔ كوئ تاسو دا غواړئ چه په خپل ځان باندې صريح الزام ولګوئ د الله د طرف نه الله تعالىٰ په تاسو باندې الزام اولګوی.

نو ددې آيت په ضمن كې ابن جرير رَحِمَهُ اللهُ فرمائی : چه الله د طرف نه خپلو مؤمنانو بندګانو ته ممانعت وشو چه هغوی دې په خپل ځان كې د منافقينو اوصاف او اخلاق نه پيدا كوی يعنی ددې كافرانو سره دوستى كول د دوی نه عزت طلب كول د دوی په صف كې شامليدل دا د منافقينو صفات دي ځكه چه منافقين د مؤمنانو په ځائی د كافرانو سره دوستى كوی بيا دا منافق د الله د دشمنانو سره دوستى كوی د هغې په بنياد باندې د كافرانو پشان شی ځكه الله رب العالمين ارشاد اوفرمائيلو چه اے ايمان والاؤ د كافرانو سره دوستى مهٔ كوئ د مؤمنانو ملت چه تاسو پرېږدئ او كافران مضبوط جوړ كړئ كچرته يو كلمه ويونكې سرے مسلمان دا حركت اوكړی نو په ده باندې هم بيا د منافقينو پشان اور د جهنم واجب دے ، دا د علامه ابن جرير رَحِمَهُ اللهُ الفاظ دي او دې به وائي چه ددې نه بعد الله تعالىٰ خپل مخلوق او خپل مسلمانان بندګان رټى چه اے ايمان والاؤ چه تاسو كې كوم سړے د كافرانو سره دوستى اوكړی او د مسلمانانو سره دوستى نكوی اګر چه دا د كافرانو سره دوستى اوكړی او په دې باندې نه څه خپيمانتيا او څه ندامت دته پدې باندې نوی او د دوی سره ئې انتهائی غرق

[1] [ سورة النساء : ١٤٤ ] .

(جَوَرْ) محبت وی او د دینه دا واپس رانشی نو په واقع او حقیقت کې دا سړے د منافقینو سره میلاؤ دے او منافقینو په باره کې الله تعالیٰ فرمائی او آخری حکم ئې دا دے : ﴿ بَشِّرِ ٱلْمُنَٰفِقِينَ بِأَنَّ لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ۝١٣٨ ﴾[1]

چه دوی ته خو به سخت عذاب الله تعالیٰ ورکوی ، زمونږه د مذهب یو تفسیر ، تفسیر د امام آلوسی رحمه الله " روح المعانی " چه ورته وئیلے کیږی مشهور تفسیر دے ، علامه آلوسی رحمه الله ددې آیت په ځائی کې فرمائی : الله رب العزت د منافقینو د حال بیانولو نه بعد صحیح مؤمنان او صحیح ایمان والا د کافرانو د دوستئ نه منع کړل چه تاسو د کافرانو سره دوستی مهٔ کوئ ځکه کچرته تاسو د کافرانو سره دوستی کوئ نو د کافرانو سره دوستی کول دا خو د منافقینو شان دے دا د هغوی د دین حصه ده ، لهذا مسلمانانو ته ئې اووئیل : چه تاسو د منافقینو د مشابهت نه ځان اوساتئ د الله تعالیٰ فرمان دے : ﴿ أَتُرِيدُونَ أَن تَجْعَلُوا۟ لِلَّهِ عَلَيْكُمْ سُلْطَٰنًا مُّبِينًا ۝١٤٤ ﴾[2]

ددې معنی دا ده چه عذاب کې مبتلاء کیدو دپاره واضح دلیل د الله تعالیٰ د طرف نه د خپل ځان خلاف هغه دا دے : چه ته د کافر سره دوستی اوکړے بس بیا دې د الله تعالیٰ عذاب کې ځان مبتلا کړو نو تا په خپله په ځان د معذب کیدو دلیل قائم کړو.

بل آیت مبارک کې الله تعالیٰ فرمائی :

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوٓا۟ ءَابَآءَكُمْ وَإِخْوَٰنَكُمْ أَوْلِيَآءَ إِنِ ٱسْتَحَبُّوا۟ ٱلْكُفْرَ عَلَى ٱلْإِيمَٰنِ ۚ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ۝٢٣ ﴾[3]

ددې آیت مبارکه د لاندې امام قرطبی رحمه الله لیکی : چه د دې آیت ظاهری حکم او

---

[1] [ سورة النساء : ١٣٨ ] .

[2] [ سورة النساء : ١٤٤ ] .

[3] [ سورة التوبة : ٢٣ ] .

ددې آيت معنى خو دا معلوميږي چه پدې آيت کريمه کې ټول مؤمنان مخاطب شوی دي او ددې آيت حکم به تر قيامته پورې هم باقي وی او دا آيت منسوخ ندې او تر قيامته پورې دا حکم دے چه مؤمنانو او کافرانو په مابين کې دوستي هيچرې نشي کيدے نو قرآن مجيد ددې مذکوره آيت آخرى حصه دا ده : « ومن يتولهم فألئک هم الظالمون » مفسر القرآن سيدنا عبدالله بن عباس رضي الله عنهما فرمائی : چه ددې آيت کريمه مطلب دا دے چه «**ومن يتولهم منکم فهو مشرک مثلهم لانه من رضي بألشرک فهو مشرک**» ځکه هغه وائی : چه دا ددې مشرک پشان مشرک دے ، ځکه چه خوک په شرک باندې راضی شی نو هغه په حقيقت کې مشرک دے نو دا خبره امام قرطبي رحمه الله په خپل تفسير کې رانقل کړيده .

شيخ سلمان بن عبدالله فرمائی : « **ففی هذه الايت البيان الواضح أنه لا عذر لاحد فی الموافقت علی الکفر علی الأموال والأبناء والآباء والأزواج مما يعتذر به کثير من الناس** » .

چه پدې آيت کې واضحه خبره واضح بيان اوشو چه د هيچا دپاره عذر نشته چه هغه د کفر سره موافقت اوکړی چه ډير خلق ورسره کوم عذرونه پيش کوی چه يره زما پلار کيږی زما رور دے زما ځوی ( ابن ) دے نو هيچا ته هم اجازت نشته چه په مال کې په پلار ګيری او ځوئ ګيری او په ښځه او خاوند کې نو په هيڅ صورت کې هم اجازت نشته چه د کافر سره دې موافقت اوکړی شی دې وائی : چه ډير خلق داسی قسمه عذرونه پيش کوی « إذا لم يرخص فی مودتهم و اتخاذهم اولياء خوفا منهم وايثاراً بمرضاتهم » نو وائی : چه کله الله پاک د رونړو پلارانو د ښځو د دوستئ اجازت ورنکړو نو « فکيف بمن اتخذ اباعد الأولياء واصحاب » نو هغه سړی ته به څه اجازت ورکړی چه هغه پردې کافران وی نه ئې پلار دے او نه ئې رور دے او د ترينه پلار جوړ کړے وی هغه سره دوستي کوی نو دې وائی : چه د هغه په باره کې به څه وائی : « واظهر لهم الموافقت علی دينهم » او دې بيا هغه ته موافقت ظاهری د هغه په دين باندې هغه ته وائی چه زه به جمهوريت باقی ساتم جمهوريت دپاره به زه جنګيږم او د جمهوريت دپاره زه هر قسم قربانی ته تيار يم او وائی : چه مونږ به جمهوريت يقنی جوړه وو دا د هغه د

موافقت دپاره هغه ته خپل موافقت ظاهروی نو دې وائی : چه « **خوفاً من هذه الأمور ومحبة لها ومن العجب استحسانهم لذلک واستحلالهم له فجمعوا مع الردّة استحلال المحرم** » دوی وائی: چه ارتداد خو ئې ارتداد اوکړو خو یو د هغوی سره دا خبره هم ښهٔ ګنړی چه زه دا کارونه کوم لکه نن صبا خلق ښه ګنړی چه زه ټائی واچوم ، نن صبا خلق ښه ګنړی چه زه د بین الأقوامی د قوانینو تابع یم ، او دا هم ښه ګنړی چه زه د اقوام متحده په منشور باندې روان یم او دا ښه ګنړی چه کفر ماته پدې خبره باندې شاباسې راکړو ، نو دې وائی : چه دا کار خوک کوی نو مرتد خو خامخا دے خو استحلال هم دهٔ اوکړو یعنی حرام کار د حلال اوګنړلو ځکه چه دوی دا کارونه حلال هم ګنړی او بهتر ئې هم ګنړی چه د دوی سره دوستی اوکړی نو دا غټ کفر دے .

بیا شیخ عبدالرحمن بن حسن رحمه الله فرمائی : « **الأمر الثالث من نواقض الاسلام موالاة المشرک والرکوع الیه ونصرته وإعانته بألید او اللسان او بألمآل فلا تکونن ظهیرا للکافرین** »

چه دریمه خبره د نواقضو د اسلام نه دا ده چه ته د مشرک سره دوستی اوکړے او هغه ته میلان اوکړے او د هغه امداد کوی او اعانت ئې کوی په لاس سره یا په ژبه سره یا په مال سره نو مه ګیږه مدد کونکې د کافرانو سره .

او بیا الله فرمائی : ﴿ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَأُوْلَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّـٰلِمُونَ ﴿٢٣﴾ ﴾[1]

او بیا فرمائی : « **وهذا خطاب من الله تعالیٰ للمؤمنین من هذه الأمة فأنظر أیها السامع أین تقع من هذا الخطاب وحکم هذه الآیة** »

دا د الله تعالیٰ د طرف نه مؤمنانو ته خطاب راغلے دے چه مؤمنان ددې امت دي نو اوګوره اے سامع ! لګ د ځان سره سوچ اوکړه چه ته په کوم صف کې ولاړ ئې او دا آیت او دا خطاب تا چا ته پریخودے دے دا ولې تهٔ نهٔ اخلے .

هم دغه شان په بل ځائی کې الله سبحانه وتعالیٰ فرمائی :

---

[1] [ سورة التوبة : ٢٣ ] .

﴿ وَقَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِي ٱلْكِتَٰبِ أَنْ إِذَا سَمِعْتُمْ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ يُكْفَرُ بِهَا وَيُسْتَهْزَأُ بِهَا فَلَا تَقْعُدُوا۟ مَعَهُمْ حَتَّىٰ يَخُوضُوا۟ فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِۦٓ ۚ إِنَّكُمْ إِذًا مِّثْلُهُمْ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ جَامِعُ ٱلْمُنَٰفِقِينَ وَٱلْكَٰفِرِينَ فِي جَهَنَّمَ جَمِيعًا ﴿١٤٠﴾ ﴾[1]

او يقينا نازل كړيدے الله تعالىٰ په قرآن كريم كې چه كله تاسو د الله آيتونه واؤرئ چه خلق د هغې نه انكار كوى ، داسې قانون سازى روانه ده چه په هغه قانون سازئ كې هغه څيزونه جائز كوى چه هغه الله تعالىٰ حرام كړيدي او هغه څيزونه حرام كوى چه الله تعالىٰ جائز كړيدي ، لكه جهاد الله واجب كړيدے هغې ته دا دهشت ګردئ نوم وركوى الله پاک زنا حرامه كړيده هغه حرامه زنا دوى حلالوى په نوم د زنا بالرضا الفاظ سره ، نو الله تعالىٰ فرمائى : چه دا كار كيږى نو تاسو ددوى سره مۀ كينئ ملګرتيا خو څۀ كوے چه پدې خبرو كې ورسره ملګرتيا ونۀ كړئ او تاسو ورسره مۀ كينئ تردې پورے چه دوى په نورو خبرو كې لګيا شى نورے خبرے شروع كړى ، او كه چرته تاسو ورسره ناست يئ او پديكې خاندے او خوشحاليږئ ورته نو الله فرمائى : « إنكم إذا مثلهم » نوتاسو به په مثل د دوى باندې شئ د دې وجه نه دوى سره په جلسه او جلوس كې مۀ كينئ ، نوا لله تعالىٰ فرمائى :

﴿ فَلَا تَقْعُدُوا۟ مَعَهُمْ حَتَّىٰ يَخُوضُوا۟ فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِۦٓ ﴾ چه تاسو مۀ كينئ د دوى سره تردې چه په نورو خبرو كې ورداخل شى ، دوى هلته كې لګيا دي كفريات به وائى ، د مجاهدينو پسې بد رد وئيلے كيږى يو مجاهد پسې د جهاد د وجه نه بد وئيل دا كفر دے ځكه چه تۀ په حقيقت كې د جهاد د وجه نه بد وائى نو دا د دين د ركن سره دشمنى شوه ستا د هغه سره څه پوله پتې ندے شريک خو چه دشمنى ورسره كوے نو د جهاد د وجه نه ئې ورسره كوے هغه په كفر كې لګيا وى او ته ورته په هغه كفر باندې خوشحالى كوے او لاسونه ورته پړقوے بيا به تۀ د هغوى نه جدا شى نو الله تعالىٰ فرمائى : « إنكم إذا مثلهم » دا په مثل د دې كافرانو

---

[1] [ سورة النساء : ١٤٠ ] .

باندې دے چه څنګه هغه ګمراه په ستېج ولاړ دے نو دغه شان ګمراهان ورته لاندې ناست وی او دوی ورته خوشحالیږی ، که په دیکې یو سړے د خیر په نیت باندې ورغلے وی چه د هغې خبرے واؤری د هغه جاسوسی اوکړی پدې نیت باندې تلے وی نو هغه صحیح ده او مسلمان دے ، او کوم سړے چه ورته ناست وی او خوشحالیږی ورته نو دا د هغه په حکم کې دے ، ځکه خو الله تعالیٰ فرمائی :

﴿ إِنَّ ٱللَّهَ جَامِعُ ٱلْمُنَٰفِقِينَ وَٱلْكَٰفِرِينَ فِي جَهَنَّمَ جَمِيعًا ﴿١٤٠﴾ ﴾[1] حکم ئې ورله یو کړو چه الله پاک کافران او منافقان په یو جهنم کې جمع کوی یو مقام او یو ټکانه ئې ده .

ددې په ذیل کې علامه ابن جریر رحمه الله فرمائی : « إنكم إذا مثلهم » ددې معنی دا ده چه که چرته تاسو د داسی خلقو سره مجلس کوئ چه هغوی د الله د قرآن او د آیتونو نه انکار کوی د قرآن د آیتونو او د تعلیماتو مذاق اړاوهی ( ټوقی کوی ) د هغه د احکامو مذاق اړاوهی او ته پدیکې تماشه کوے او ناست ئې نو بیا ته هم د هغوی پشان یئ ، مطلب دا دے : چه ته پدې حالت کې د دوی سره کینې او پاڅې نه او دوی د الله تعالیٰ د آیتونو استهزاء کوی او د الله د آیتونو نه انکار کوی نو ته د ده سره په فعل او عمل کې برابر ئې ، برابره خبره ده که هم دغه ځائی کې د الله د آیتونو انکار کیږی او که مذاق اړاویږی نو ستا په دغه ځائی کې د ناستې د وجه نه د الله د نافرمانئ ارتکاب دے او چه کله کافر د الله تعالیٰ د آیتونو او هدایاتو نه انکار کوی او د هغې مزاق اړاویږی نو هغلته د الله د نافرمانئ ارتکاب کیږی ، نو لهذا ته هم ورسره په دې نافرمانئ کې شریک یئ چه د کومې نافرمانئ ارتکاب هغه کوی نوته هم ورسره په هغه نافرمانئ کې راضی یئ ، که هغه نافرمانی د کفر کوی نو ته هم ورسره په دغه نافرمانئ کې شریکیږی ځکه چه ته هغه ته ولې خوشحالیږی او ته په هغه باندې رد ولې نۀ کوے ، او بیا ته د هغۀ خبرو ته ښۀ هم وائی او دغه ځائی نه نه پاڅیږے نو ته هم د هغه پشان یئ .

---

[1] [ سورة النساء : ١٤٠ ] .

ددې وجه نه علامه ابن کثير رحمه الله فرمائي : چه دا خاموشي هم تائيد دے ځکه چه زمونږ د اصولو مسئله ده چه سکوت په معرض د بيان کې بيان وي چه کوم ځائې کې سړے چپ او خاموش پاتې شي او په هغه ځائې کې بيان پکار وي نو معلومه دا شوه چه دا سړے پدې کار باندې خوشحاله دے لکه خطبه د نکاح چه سړے وليګي نو کچرته زنانه وخندل او يا ئې اووئيل : چه آو ، يا غلې او خاموش پاتې شوه ، نو وئيلے کيږي چه دا خاموشي هم ددې خبرے دليل دے چه ددې دا سړے خوښ دے او په دې نکاح باندې خوشحاله او راضي ده ، نو دا خاموشي چه دۀ اوکړه نو دا د تائيد او دليل دے .

نو چه کله الله تعالیٰ منع اوکړه چه څوک ددې حکم ارتکاب اوکړي حالانکه د الله تعالیٰ هغه حکم تاسو ته رارسيدلې وي او منع کړی ئې يئ چه دا کار مه کوئ او تاسو د کافرانو سره يو ځائې مۀ کينئ ته بيا هم د هغوی سره کينې چه کوم ځائې کې د الله تعالیٰ د آيتونو نه انکار کيږي او د الله تعالیٰ د آيتونو مذاق اُړاويږي د قرآن په احکاماتو باندې اعتراضات کولے شي ، لکه نن صبا تۀ اوګوره چه حدود ارډنينس روان دي او وائي چه حدود خو نن صبا زمانه کې نشي قائميدے او څوک په پارلمان کې ورته ناست وي ، او زنانو د آزادئ خبر روان وي او څوک ورته په دې ځائې کې ناست وے ، او دا واک آوټ ( Waikout ) ګوره دا مطلب ندے چه بس ته ووائې چه « فلا تقعدوا معهم حتی يخوضوا فی حديث غيره » کې دا راغلے په دې عهده ( سيټ ) باندې دا هغه پاتې کيدل د دغه شيطان آخرس ، دا دې خبرے دليل دے چه هغه استعفاء نه ورکوے او هغه نه راوځي د دې پارلمان نه نو هغه د دوی سره پدې خبره او پدې قانون باندې خوشحاله دے ، نو پدې سره د قرآن کريم اهميت او هغه مرتبه خلق ختموی او ته هغلته ناست يئ او د هغوی تصديق کوے نو ته پدې جرم کې برابر شريک يئ ددې وجه نه الله تعالیٰ اوفرمائيل : « إنکم إذا مثلهم » او بيا هغه وائي : چه الله تعالیٰ دا وفرمائيل : « إن الله جامع الکافرين والمنافقين فی جهنم جميعا » الله تعالیٰ منافقان او کافران د جهنم په يو اوور کې جمع کړل لکه څنګه چه په دنيا کې منافق د کافرانو په مجلسونو کې شريک کيږي نو دغه شان الله تعالیٰ منافقين په جهنم کې أزلي او ابدی عذاب کې هم د

کافرانو سره شریک کوی ، چه اودریږه چه ته د دوی سره خوشحاله وے «الْمَرْءُ مَعَ مَنْ أَحَبَّ»[1] چا چه د چا سره مینه وی نو هغه به د هغه سره وی په آخرت کې ، نو اوګوره نن څومره خلق ددې جمهوری لیډرانو سره د زړه نه محبت او دوستانې کوی ، او ته لږ سوچ اوکړه چه پدې دومره لیډرانو کې چرته یو پکې د سړی څوئی ښکاری ؟ دا ټول منافقین او ګمراه راغلی دي او په مونږ باندې مسلط شوی دي ، او چا چه هم دې خلقو سره مینه ده نو دا خلق به په ورځ د قیامت کې ورسره الله پاک یوځائی نکړی ؟ ولې نهٔ یو ځائی به وی ، ددې وجه نه الله پاک منافقین او کافران په جهنم کې یو قسم سزا کې جمع کړل ددې دپاره په سزا څکلو کې په عذاب الـٰهی مبتلاء کیدلو کې قید وبند په سزا برداشت کولو کې په بیړو او هتکړو بندیدلو کې په ګرمو اوبو اچولو کې او په هغوی باندې پیپ او وینو څکلو کې منافقان او کافران چه کوم دے جمع شی او ددې پیپ او د وینې هغه بد شکله مزه کې شریک شی لکه دنیا کې چه مجلس کې شریک وو.

علامه ابن کثیر رحمه الله فرمائی : ددې وجه نه دې جمهوری لیډرانو بیانونو ته چه دا کوم عوام راجمع کیږی نو دا د دوی سره پدې ګمراهۍ کې شریک دي نو که څه نقصان او تاوان ورته ورسیږی نو مه خفه کیږۍ اکثر داسې وی کنه چه کله پکې جګړے اوشی او کله پکې دا یو مخالف پارټۍ سره مخامخ شی نو ډزے اوشی ، څکه اکثر خلق پدیکې پخپله خوشحالۍ سره تلے د هغه جهنډه پخپل کور باندې لګوی د هغه منشور ته خوشحالیږی پخپله خوشحالې د هغه دپاره خلق راجمع کوی ، عجیبه خبره ده ، او بیا هم مولیان وائی چه ډیر بد اوشول ، هلکه دا کتاب لږ اوګورۍ ؟ چه ددې کتاب په اوراقو ( پانړو ) کې ئې څه لیکلی دي نن خلق د کتاب نه مسئلے نهٔ کوی او کوشش دا کوی چه زمونږ ستاسو تعلق کټ کړی د کتاب نه خو چرته هم ګوره د کتاب سره تعلقات کټ نکړۍ.

او ښه ملګرے زمونږ په دې زمانه کې هغه کتاب دے ددې دا مطلب دے چه دین د

[1] [ رواه البخاري ، رقم : ٥٧٠٢ ، وغيرهم ].

اسلافو د صحيح نظريئ والا كتابونه كورئ او دغه شان قرآن كورئ حديث كورئ او بل طرف ته مهٔ ځئ نن دور د فضائلو ندے نن دور د مسائلو دے نن مونږ ته داسې مشكلات راغلي دي چه كه فضائل بيانوو نو فضائل ځان له شی دے اوس كه مونږ شروع اوكړو نو 40 ـ 50 ورځو كې به فضائل د جهاد ختم نشی ددې وجه نه مونږ مختصر فضائل بيان كړل اكثر زه ملګرو ته وايم چه د جهاد د فضائلو نه غټ فضيلت بس دا دے چه فقهی خومره فتاوے دي نو هغه تاسو را واخلئ چه مونځ شروع كيږی نو په فضائلو باندې ئې چرته شروع نده كړے ، روژه چه شروع كيږی نو په فضائلو ئې چرته شروع نده كړے ځكه چه د فتاوو كار د فضائلو سره نوی بلكه د مسائلو سره وی خو يو جهاد دے چه كه تاسو د جهاد بحث په فتح القدير كې را واړوئ كه په شامی كې ئې وګورئ او كه په زخيره كې ، دارنګه په بحر الرائق كې ئې اوګورئ نو دې ټولو به د جهاد په فضائلو شروع كړے وی او نور ئې د يو عمل هم فضائل ندی ذكر كړی ، نو دا صرف د جهاد د فضائلو خصوصيت او امتياز دے او باقی د نورو احكامو فضائل په هغه زمانه كې بيانول پكار وی چه دشمن په مونږ باندې حمله نوی كړے نو بيا به فضائل بيانوو ، نو اوس په مونږ باندې دشمن راغلے دے نو پكار ده چه مونږ د خپل ايمان او عقائد اوپيژنو ځكه نن زمونږ د خلقو عقيدے خرابې شوے خلق سيكولر اسلام ته صحيح او حقيقی اسلام وائی د حاكميت او قانونيت صفت ئې د خالق په ځائې مخلوق ته وركړے دے نو خلقو عقيدے ئې تباه او بربادے كړی دي خلق د جهاد په دشمنئ كې لګيا دي خلق د دين په دشمنئ كې لګيا دي او ملا صاحب تهٔ ورته مسئله نهٔ بيانوی نو هغه حديث درته ندے ياد چه چاته الله پاک علم وركړے وی او هغه علم پټ كړی نو الله به بيا «أُلْجِمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِلِجَامٍ مِنْ نَارٍ»[1] د قيامت په ورځ باندې دته د اوور واګې واچوی نو دا ملا ددې حديث نه نهٔ يريږی ددې حديث د وجې نه مونږ دلته دوره شروع كړه اګر چه زه ورته برابر هم نهٔ وم خو ليكن ما چه كله د خلقو بيرونی حالاتو ته اوكتل او د هغه بيرونی

[1] [ رواه الترمذي ، رقم : ٢٥٧٣ ، وغيرهم ] .

حالاتو تأثر مې په نظر ئې د علماء، طلباء، مجاهدينو او کتو دا نور عوام خو لا سه کې نو ما اووئيل چه يره دا خو ورځ تر ورځه داسې کوشش شروع دے چه د علماؤ او طلباؤ او مجاهدينو په صف کې هم مونږ ته داسې سړے کله کله ميلاؤ شی چه هغه مونږ سره د سيکولر سياسی خلقو په سر جګړه کوی الله فرمائی : ﴿ فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنَافِقِينَ فِئَتَيْنِ ﴾[1]

دا به راته علماؤ، طلباؤ او مجاهدين دوه ټکړے شی او په منافقانو باره کې الله پاک وائی تاسو دوه ډلې مه جوړيږئ مسلمانانو د منافقانو خبرے کولے چه دوی دا ګناه کړے او دا ئی نده کړے نو پدې باندې د مسلمانانو په خپل مابين کې اختلاف پيدا شو نو الله پاک آيت نازل کړو چه ﴿ فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنَافِقِينَ فِئَتَيْنِ ﴾[2] تاسو ولے د منافقانو په باره کې دوه ډلے کيږئ او چه کله زه اوګورم نو ددې آيت مصداق زمونږ په خپل مينځ کې راځی، نو ددې وجه نه ما اووئيل چه دا دوره خو انتهائی لازمه ده او چه دا ملګری پخپلو عقائدو او نظرياتو باندې پوهه شی.

بل دا خبره چه چرته دشمن دوی په دلائلو کې بند نکړی او بل دا چه د خپلو صفونو اصلاح اوکړی په هر لحاظ سره دوی د خپلو صفونو اصلاح اوکړی چه دوی ته خپله نظريه معلومه شی چه کفر کفر اوګڼری او ګمراه کن سړے اوپيژنی داسې نه چه صبا مجاهدين حمله کوی او غلبه ورحاصله شی نو خامخا پديکې که چرته لږ لږ عارضی تاوان اوشی.

او مجاهدين پخپل مينځ کې پدې دوه ډلے شی چه دا ښه کار اوشو او که دا بد کار اوشو.

علامه قرطبی رحمه الله ددې آيت په ذيل کې فرمائی : ﴿ وَقَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِي الْكِتَابِ أَنْ إِذَا سَمِعْتُمْ آيَاتِ اللَّهِ يُكْفَرُ بِهَا وَيُسْتَهْزَأُ بِهَا فَلَا تَقْعُدُوا مَعَهُمْ حَتَّى يَخُوضُوا فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِ

---

[1] [ سورة النساء : ٨٨ ].

[2] [ سورة النساء : ٨٨ ].

إِنَّكُمْ إِذًا مِّثْلُهُمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ جَامِعُ الْمُنَافِقِينَ وَالْكَافِرِينَ فِي جَهَنَّمَ جَمِيعًا ﴿١٤٠﴾ [1]

علامه قرطبي رحمه الله فرمائی : چه د آیت مطلب دا دے : چه کله آیت الـهیاؤ سره کفر او استهزاء کیږی نو تاسو د هغوی سره مه کینئ حتی چه دوی د کفر او استهزاء نه علاوه نورے خبرے شروع کړی که ستا ورسره بیا نور څه کار وی نو ټیک ده مونږ مخکې وئیلے دي چه که تجارتی کار وی نو هیڅ خبره نده تجارتی تعلقات ورسره کوه خو دا شی ورسره مه کوه پدې کفر کې ورسره مه شریک کیږه د اقوام متحده او د بین الأقوامی قوانینو کې ورسره مه شریک کیږه په لائنسکلب فری مسن کې ورسره مه شریک کیږه د مسلمانانو په خلاف کې ورسره مه شریک کیږه مونږ دا وایو نو ددې کار نتیجه به دا وی که ته ورسره کینې چه الله پاک فرمائی : إنكم إذا مثلهم تاسو به د هغوی پشان شئ .

امام قرطبي رحمه الله فرمائی : چه ددې آیت نه معلومه دا شوه چه ګناهګارانو او بدکردارو نه اجتناب کول او د هغوی نه مخ اړول واجب دي ، خاص طور په هغه وخت کې چه کله هغوی د ګناه ارتکاب کوی چه کله یو مجلس د داسې خلقو وی چه هغوی پدې مجلس کې ګناهونه کوی نو مسلمانانو ته پکار دي چه د هغوی نه مخ واړوی ، کچرته د هغوی نه مخ وانهٔړوی او د هغوی سره کینی نو دا د هغوی عمل په خوښونکو کې ګنړلے کیږی چه دا د هغوی دا عمل خوښ دے نو کله چه د دوی دا عمل خوښ شو نو بیا مسئله دا ده چه : «**الرضاء بالكفر كفر**» رضا په کفر دا کفر دے ، ورنه څوک هم په خله باندې تاته دا نهٔ وائی چه زه په کفر باندې خوشحاله یم ، خو دا به درته وائی چه د اقوام متحده د قوانینو لاندې زندګی تیرول پکار دي دا به درته وائی چه د بین الأقوامی قوانینو لاندې وخت تیرول پکار دي دا به درته وائی چه د **نیوورلډآرډر** تابعداری پکار ده نو دیته رضا په کفر باندې وائی او دا بعینه کفر دے ، دا پدې باندې خوشحاله دے او دا ددې قوانینو لاندې زندګی تیروی او دا کفر دے او دغې ته کفر وئیلے کیږی ، څوک هم دا نهٔ وائی : چه زه په کفر خوشحاله یم تا ته

---

[1] [ سورة النساء : ١٤٠ ] .

به وائی چه زه په دغه څیزونو خوشحاله یم إنکم إذا مثلهم الله فرمائی : چه تاسو به په دغه وخت کې د دوی نه شمیرل کیږئ .

امام قرطبي رحمه الله فرمائی : هر هغه سړے چه د نافرمانئ والا مجلس اختیار کړی او په هغې کې کینی او پدې باندې څه تنقید او ملامتیا اوونه وائی نو دغه سړے د دوی سره په ګناه کې برابر شریک دے ، که دا په یو بد مجلس کې د اهل معاصیو سره کینی نو ددې سړی دپاره دغه مناسب دی چه دا نافرمانه بنده شو د الله تعالیٰ ګناهګار شو چه کله دا د یو نافرمانه سره خبرے کوی یو نافرمانه سړے د نافرمانئ خبرے کوی او دا د هغه نه نه منع کوی او ددې بدو خبرو نه ئې نه منع کوی واجبه طریقه خو دا وه چه دا دغه مجلس ته ورغلے وے او یو سړی بدې خبرے کولے او دې ورپاسیدلې وے چه مکوه دا پلیتې خبرے ، ده خو دا کار کولے خو چه کله دې منع نه کوی او ددې مجلس نه پاسی هم نه او د هغې قوانین هم منی نو دا بیا دوه طبقې ندی بلکه په حقیقت کې دا بیا یوه طبقه ده او دا هم ددغې طبقې نه دے.

عمر بن عبدالعزیز رحمه الله په زمانه کې چه دا یو مشهور خلیفه تیر شویدے د مسلمانانو یو لوئی امیر تیر شویدے او دا یو ډیر لوئی بزرګ انسان وو د عمر بن عبدالعزیز رحمه الله په باره کې یو روایت داسې هم نقل شویدے چه هغه پخپله انتظامیه کې یوه چاپه اووهله او په رنګوهاتو ئې څو کسان ګرفتار کړل چه هغوی شراب څکل نو په هغې کې د یو سړی په باره کې پته اولګیده چه دا خو روژه دار دے دا سړے پکې ناست وو خو دۀ روژه نیولے وه او دا سړے پدې شرابو څکلو کې نوو شریک شوے نو پدې موقع باندې عمر بن عبدالعزیز رحمه الله د هغه ادب او مزاج هغه راببیدار شو او د قرآن کریم دا آیت کریمه ئې وفرمائیلو : «**إنکم إذا مثلهم**» تاسو به د دوی نه ګڼړلے کیږئ نو ددې آیت نه دا خبره معلومه شوه چه نافرمانی خوښول دا هم نافرمانی ده ددې وجه دا ده چه کچرته د یو بد کارے ارتکاب کیږی او یو قابل ګرفت سړے یعنې چه د بدکار کولو والا سړے قابل ګرفت او قابل مواخذه دے او د بدکار خوښونکې هغه هم قابل ګرفت دے دواړو د ګناهونو سزا دې یو کړے شی نو تر دې پورے چه هغه ټول په ټوله هلاک شی او دا په مماثلت او موافقت کې اګر چه د دۀ ټول صفات او

اجزاء يو ندی لیکن صرف ظاهری طور باندې د دهٔ مِل جُل دے ورسره نو پدیکې ئې ورسره مماثلت او موافقت راغستے دے ، ددې وجه نه دهٔ دا شعر اووئیلو ، او دا شعر د طرفه بن عبدالبکری دے وائی :

**لا تسئل عن رجل واسئل قرینه فأن القرین بالمقارن مقتدی**

سوال مهٔ کوه د یو سړی په باره کې بلکه د هغه د ملګری په باره کې سوال کوه * چه یقینا یو ملګرے په بل ملګری پسې روان وی .

که بد ملګرے ئې وی نو دا به هم بد وی او که ښه ملګرے ئې وی نو دا به هم ښه وی، او د پښتو یو متل دے : چه ګرځې د سپو سره نو سر به وخرے د خپو سره ، ډیر ښه متل ئې کړے دے نو چه دا ښه سړے وے نو دا چرته هم د دوی سره نه ګرځیدو .

نو دې ټولو آیتونو کې الله رب العزت د کافرو سره د دوستئ په باره کې سخته منع اوفرمائیله ددې وجه نه ددې آیت په ذیل کې ، چه الله فرمائی : ﴿ لَّا تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْأَخِرِ يُوَآدُّونَ مَنْ حَآدَّ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ ﴾[1]

علامه ابن تیمیه رحمه الله فرمائی : « **فأخبر أنک لا تجد مؤمنا یواد المحادین لله ورسوله فأن نفس الإیمان ینافی مؤدته کما ینافی احد الضدین الآخر** » .

الله تعالیٰ خبر ورکړو چه ته به اونهٔ مومې یو سړے چه هغه دې وی مؤمن او هغه دې د الله او د رسول د دشمنانو سره دوستی کوی ځکه چه نفس ایمان چه په سړی کې موجود وی بیا د دوی د مؤدة د کفر د دوستئ سره منع کوی ځکه چه احد الضدین چه راشی نو بل ضد بیا نشی راتلے ، که دې ته تاسو خیال کړے وی چه اور راشی نو اوبه نشی راتلے هغه ځائی ته او چه اوبه راشی نو اور ورسره نهٔ جمع کیږی تور او سپین سره نه جمع کیږی نو دا د یو بل سره ضد دے ، نو یو متضاد چه راشی نو بل متضاد بیا هغه ځائی ته نشی رتلے « **فإذا وجد الإیمان**

[1] [ سورة المجادلة : ٢٢ ] .

» كله چه ايمان د ده په زړه كې موجود شو نو دا د الله سره محبت دے او د الله موالات دے نو چه كله دا موجود شو نو «**انتفاء ضده و هو موالاة اعداء الله**» پدې سره هغه متضاد شى نفى شو او هغه متضاد شى د الله دشمنانو سره دوستى كول دي ، بيا وائى : «**وإذا كان الرجل يوالى اعداء الله بقلبه**» كله يو سړے داسى وى چه دوستى كوى د الله د دشمنانو سره په زړه خپل سره نو «**كان ذلک دليلا على أن قلبه ليس فيه الإيمان الواجب**» پوهه شه چه د ده په زړه كې ايمان واجب نشته دے «**ومثله قوله تعالىٰ فى الآية الأخرىٰ**» الله پاک په بل آيت كې فرمائى ﴿ تَرَىٰ كَثِيرًا مِّنْهُمْ ﴾[1]ددې آيت نه روسته ورپسې بل آيت كې الله تعالىٰ فرمائى:

﴿ وَلَوْ كَانُوا۟ يُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلنَّبِيِّ وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْهِ مَا ٱتَّخَذُوهُمْ أَوْلِيَآءَ ﴾[2]

كچرته دوى ايمان راوړے وے په الله او په نبى كريم ﷺ او په قرآن كريم باندې نو دوى به دوستى نوے كړے د كافرانو سره .

امام ابن تيميه رحمه الله فرمائى : «**فذكر جملةً شرطيةً تقتضى أنه إذا وجد الشرط وُجد المشروط بحرف لَوْ تقتضي مع انتفاء الشرط انتفاء المشروط**» .

دلته كې لَوْ راغلے دے لو كانوا يؤمنون بالله كچرته دوى په الله تعالىٰ باندې ايمان راوړے او د الله تعالىٰ په نازل كړه كتاب دے ايمان راوړے وے او پدې باندې ئې صحيح ايمان وے نو « مااتخذوا هم اولياء » نو د كافرانو سره به ئې دوستى نوے كړے ، نو دې ځائى كې دوه جملے دي : يو دا لَوْ راغلے دے او لَوْ د شرط دپاره راځى نو كله چه شرط موجود شى نو مشروط هم موجوديږى نو شرط ايمان بالله دے او ددې سره عدم موالات د كافرانو دے يعنى د كافرانو سره دوستى نه كول او د كافرانو سره دشمنى كول ، او انتفاء د شرط انتفاء د مشروط راولى چه ايمان دې نوى نو بيا به دوستى كوے كافرو سره .

---

1) [ سورة المائدة : ٨٠ ] .

2) [ سورة المائدة : ٨١ ] .

او علم البيان والا وائی : چه ددې دويمې جملې د نفی نه به ته دليل نيسې داولے جملے په نفی باندې ، نو دويمه جمله «**ما اتخذواهم اولياء**» دوستی نه کول د کافرو سره دا نفی شوه ، او نفی چه په نفی داخل شی اثبات فائده کوي نو معنی دا شوه چه ايمان نه وی بيا دوستی د کافرو وی او چه ايمان وی بيا د کافرو دوستی نه وی .

او بيا دا فرمائی چه : « **فدل على أن الإيمان المذكور ينفى اتخاذهم اولياء ويُضاده ولا يجتمع الإيمان واتخاذهم اولياء فى القلب** » دې خبرے پدې باندې دلالت اوکړو چه کوم ايمان چه ذکر شوے دے نو دا نفی کوی د کافرانو سره د دوستئ نه او دا د هغې سره ضد دے او نه جمع کيږی ايمان او دوی سره دوستی کول په زړه کې ، يعنی دا په زړه کې نشی جمع کيدے چه هم دې ستا په زړه کې ايمان وی او هم دې ستا په زړه کې د کافرانو سره دوستی وی نو دا خو بالکل نشی جمع کيدے ، يا به دې په زړه کې ايمان وی او يا به دې د کافرانو سره دوستانه وی نو که ايمان دې په زړه کې وو نو د کافرانو سره به دې دوستی نوی او چه ايمان دې په زړه کې نوو نو بيا به دې د کافرانو سره دوستی وی ، نو که د کافرانو سره دې دوستی وه نو بيا دې په زړه کې ايمان نشته دے کافر يئ .

بيا فرمائی : «**ودل ذلک على أن من اتخذهم اولياء ما فعل الإيمان الواجب من الإيمان بالله والنبي وما انزل إليه**» چه چا دوستی اوکړه نو پدهٔ کې هغه فرضی ايمان په الله تعالیٰ باندې او په نبی کريم ﷺ او په قرآن کريم باندې نشته .

او دغه شان ددې په ذيل کې علامه سليمان بن عبدالله رحمه الله فرمائی : «**فأخبر تعالیٰ انک لا تجد من كان يؤمن بالله واليوم الآخر يواد من حاد الله ورسوله و لو كان أقرب قريب وإن هذا مناف للإيمان مضاد له لا يجتمع هو والإيمان إلا كما يجتمع الماء والنار**» .

چه الله پاک خبر ورکړو چه ته به اونه مومې مؤمن سړی لره چه هغه ايمان راوړی په الله باندې او په ورځ د آخرت باندې چه هغه دې دوستی اوکړی د الله د دشمن سره اګر چه دې ورسره اقرب القريب يعنی ډير زيات ورسره نزدے ولے نوی ، او بيا فرمائی : چه دا خبره

منافق ده د ايمان سره او دا ضد دے د ايمان سره او دا نه جمع كيږى د ايمان سره او دا كه د ايمان سره جمع كړے نو دا داسې دے لكه اور او اوبه سره جمع كړے ، نو څنګه چه اور او اوبه دواړه په يو ځائى باندې نه جمع كيږى نو دغه شانددې سړى په زړه كې ايمان نشته دے چه كوم سړے دا كار كوى يعنى دوستى د كافرو سره .

او دغه شان ددې په ذيل كې : ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ ٱرۡتَدُّواْ عَلَىٰٓ أَدۡبَٰرِهِم مِّنۢ بَعۡدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ ٱلۡهُدَى ٱلشَّيۡطَٰنُ سَوَّلَ لَهُمۡ وَأَمۡلَىٰ لَهُمۡ ٢٥ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمۡ قَالُواْ لِلَّذِينَ كَرِهُواْ مَا نَزَّلَ ٱللَّهُ سَنُطِيعُكُمۡ فِي بَعۡضِ ٱلۡأَمۡرِۖ وَٱللَّهُ يَعۡلَمُ إِسۡرَارَهُمۡ ٢٦ ﴾[1]

علامه ابن جرير الطبرى رحمه الله فرمائى : چه ددې آيت مطلب دا دے : چه بلا شک وشبه چه كوم خلق كفر ته واپس كيږى ګويه چه هغه كافر شى انتهائى افسوس ناكه خبره ده هغه پدې وخت كې حالت كفر ته د واپس تلو د دين حق نه او د صراط مستقيم نه بالكل واضحه ده د هغې دليل به څه وى چه دا كفر ته لاړو ؟ هغه فرمائى : چه د دې دليل دا دے : چه دۀ ګمراهئ ته په هدايت باندې ترجيح وركړه او انتهائى آسان معلومات ئې دا دي : چه دۀ د كفر تابعدارى وكړى دا د كفر تابعدارى كول دى چه يو سړے د اسلام نه كفر طرف ته واپس كيږى كفر ته د واپس كيدو د اسلام نه دا ډير بدكار دے ددې بدكار د معلومولو دپاره علامات دا دي : چه دۀ د كفر سره دوستى اوكړى او د كفر تابعدارى ئې شروع كړى د كافرانو د قوانينو تابع جوړ شى ، څوک چه د كافرانو د قوانينو تابع وى اجماع د امت ده پدې باندې چه دا سړے كافر دے .

علامه قرطبى رحمه الله ددې آيت په تفسير كې فرمائى : چه مطلب دا شو چه بيشكه هغه خلق چه ايمان لرى هغه به جدا وى د كافرانو د حالت نه هغوى طرف ته به نه واپس كيږى او چه كوم خلق واپس شو د هغې نه بعد كې چه ده ته الله تعالىٰ هدايت وركړے وى ، د هغه

[1] [ سورة محمد : ٢٥ ـ ٢٦ ] .

په باره کې الله تعالیٰ وفرمائيل : « ٱلشَّيۡطَٰنُ سَوَّلَ لَهُمۡ وَأَمۡلَىٰ لَهُمۡ » شيطان ورته دغه عمل او لاره خائسته کړے وه ، نو دا قوانين نن دوی ته شيطان خائسته کړيدي او دهوکه ئې ورکړيده « ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمۡ قَالُواْ لِلَّذِينَ كَرِهُواْ مَا نَزَّلَ ٱللَّهُ سَنُطِيعُكُمۡ فِي بَعۡضِ ٱلۡأَمۡرِۖ » يعنی دا منافق چه د کافرانو طرف ته مائل کيږی او د کافرانو باطل موقف ددې پرده پوش پټ چه کوم دے د هغوی خيرخواهي کوی بيا ددې منافقينو حالت ظاهری د زړونو د حالت نه څه بل شان دے « وَٱللَّهُ يَعۡلَمُ إِسۡرَارَهُمۡ » الله پاک د دوی هغه پټې خبرے پيژنی ، د دوی پټې خبرے دا وے چه : ﴿ وَٱللَّهُ يَكۡتُبُ مَا يُبَيِّتُونَ ﴾[1]

دوی چه د شپې په خپل مابين کې راجمع شی نو په دغه وخت کې دوی بيا نورے پټے پټے مشورے کوی ، خو اوس په دوی باندې الله تعالیٰ د کفر فتوی ېخپله اولګوله چه اګر چه دوی په زړه کې پټوی خو ليکن دا په حقيقت کې کافران دي .

شيخ سليمان رحمه الله فرمائی : «**فأخبر تعالیٰ أن السبب ما جری عليهم من الردة**» الله تعالیٰ خبر ورکړو چه په دوی باندې کوم ارتداد راغلے دے او دوی ته چه کوم شی شيطان خائسته کړے دے په کوم شی کې ورته شيطان دهوکه ورکړيده هغه خبره څۀ ده ؟

﴿ قَالُواْ لِلَّذِينَ كَرِهُواْ مَا نَزَّلَ ٱللَّهُ سَنُطِيعُكُمۡ فِي بَعۡضِ ٱلۡأَمۡرِۖ ﴾[2]

هغه دا خبره ده «**فإذا كان الكارهين لما انزل الله بطاعتهم فی بعض الأمر كافرا وإن لم يفعل ما وعدهم به**» کله چه يو سړے د مشرکانو سره هغه مشرکان چه هغه قرآن او سنت بدګنړی د هغې قوانين ئې ندی خوښ ، د هغوی سره ئې وعدے اوکړے نو دا سړے کافر دے اګر چه فعل عمل اونکړی صرف وعده ورسره اوکړی چه زه به ستا هم بعض خبرے منم مۀ خفه

---

1) [ سورة النساء : ٨١ ] .

2) [ سورة محمد : ٢٦ ] .

کيږه ، نو الله تعالیٰ صرف دا وعده کونکي سړے کافر کړو ځکه چه فعلاً هغوی نشو کولے پيغمبر عليه السلام موجود وو هغوی بل قانون ته نشو ورتلے ، د پيغمبر عليه السلام قانون ته به مجبورا راتلل نو صرف وعده ئې ورسره اوکړه نو پدې وعده باندې الله تعالیٰ کافران کړل، بيا فرمائی : « **فكيف بمن وافق المشركين الكارهين لما انزل الله من الأمر بعبادته وحده لا شريک له وترک عبادة سواهم من الأنداد والطواغيت والأموات وأظهر انهم على هدىً وان اهل التوحيد مخطئون فی قتالهم وان الثواب فی مسالمتهم والدخول فی دينهم الباطل فهولاء اولیٰ بالردة من أولئک الذين وعد المشركين بطاعتهم فی بعض الأمر** » هغه خلق به څنګه نوی کافران چه هغوی د الله عبادت پريخودے دے هغوی مشرکان دي د اندادو عبادت کوی او دغه خلق دوی ځان ظاهره وی چه مونږ په توحيد او هدايت باندې يو او بيا چه کوم خلق د کافرانو سره جنګ کوی نو دا وائی چه دا خلق خطاء دي پدې خپل جنګ کې او دوی سره صلحه پکار ده او د دوی د قانون لاندې ژوند تيرول پکار دي ، نو دا فرمائی : چه دا خلق بيا مرتد نوی او دا خلق چه وعده ئې د مشرکانو سره هم کړيده په بعضی کارونو کې او فعلاً ورسره دا کار کوی نو دا سړے به څنګه نوی مرتد چه الله پاک صرف په وعدے باندې په بعض الأمر کې چه په بعضی کارونو کې به مونږ د ستاسو تابعداری کوو چه صرف وعده ئې کړيوه صرف پدې وعده ئې کافر کړيدی نو هغه سړے چه وعده هم کوی او فعلاً دا کار هم کوی او څوک چه ورسره جنګيږی د تخطيئة ( هغه څوک چه مخالفت کوی هغه ته غلط هم وائی ) هم کوی نو دا سړے به کافر نوی ؟ د دۀ نه خو دوه يا دری کفرونه صادر شو :

۱/ کفر په وعدے سره صادر شو چه هغوی سره ئې وعده وکړه چه زه به ستا د قانون لاندې وخت تيروم .

۲/ کفر عملی ترينه صادر شو يعنی چه د هغوی سره ئې فعلاً موافقت وکړو او د هغوی قانون ئې په ملک کې رائج کړو .

۳/ کفر د تحليل او د تحريم ترينه صادر شو په تخطيئة د مجاهدينو کې چه مجاهدينو ته

خطاء وائی ، نو الله پاک جهاد کول حلال کړے وو او ده چه دا جهاد کول حرام اوګرځول، او کوم شی چه الله پاک فرض کړے وو چه هغه د کافرانو سره دشمنی وه نو هغه دهٔ خطاء اوګرځوله ، او دا رنګه د کفر د قانون لاندې زندګی تیرول الله پاک حرام ګرځولی او څوک ورته حلال وائی ، نو دغه کفر د تحلیل او د تحریم دے .

نو هغه سړے چه په هغه کې صرف یو کفر موجود وو نو په هغه باندې الله پاک د ارتداد فتوی اولګوله چه الله تعالیٰ فرمائي : ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ ٱرۡتَدُّواْ عَلَىٰٓ أَدۡبَٰرِهِم مِّنۢ بَعۡدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ ٱلۡهُدَى ... الآية ﴾[1]

او بیا چه په کوم سړی کې دا دری واړه صفات موجود شی نو هغه به بیا کافر او مرتد نوی ؟ عجیبه خبره ده .

او څلورمه خبره دا ده : چه کفر خو کوئ خو بیا رضا بالکفر ظاهره وی چه هغه دا خبره کوی چه دې مجاهدینو طالبانو ته ندی پکار چه د امریکې او د اقوام متحده خلاف جنګیږی بلکه دوی ته پکار دا دي چه دوی بین الأقوامی قوانینو ته تسلیم شی او وائی چه د دې مجاهدین سره به روغه اوشی چه دوی د افغانستان یا د نورو نام نهاد اسلامی ملکونو مجاهدینو دې دوی سره اساسی قانون اومنی ، لکه دوی په خبرونو کې وئیل : چه دا طالبان ددې ملک بچی دی خو چه دوی د خپل ملک اساسی قانون او آئین ته تسلیم شی ، ددې ملک کفری آئین دا دے چه اسلحه به په هیڅ حالت کې نه اوچتوی هاں کچرته د اقوام متحده آئین یا ددې ملک آئین چیلنج شی نو بیا اسلحه اوچتولے شی او که د الله آئین او قانون چیلنج وی نو په هغه وخت کې بیا تا ته د اسلحې وچتولو اجازت نشته نو دا به کفر نوی ؟

نو دا څلور قسمه کفر شو : ۱ـ کفر سره وعدے کول ، ۲ـ فعلاً کفر کول ، ۳ـ جهاد ته بد بد نومونه ورکوے او تحلیل او تحریم کول ، ٤ـ کفر خوښول .

علامه ابن حزم رحمه الله چه دا ډیر غټ عالم وو په **5** صدئ کې تیر شوے دے دا ددې

[1] [ سورة محمد : ٢٥ ] .

آيت په ذيل كې فرمائی : «**فجعلهم تعالیٰ مرتدين كفاراً بعد علمهم الحق وبعد أن تبين لهم الهدى بقولهم للكفار ما قالوا فقط و أخبرنا تعالیٰ أنه يعرف اسرارهم و أخبرنا أنه قد أحبط اعمالهم باتباعهم ما اسخطه وكراهيتهم رضوانه**»

دا فرمائی : چه الله تعالیٰ دغه خلق مرتدين وګرځول دا خلق ئې كافران اوګرځول پس د هغې نه چه د دوی علم په دې حقه خبره باندې راغے پس د هغې نه چه الله پاک دا خبره ظاهره کړه چه دوی کومه خبره ظاهره کړے وه چه صرف په خلے باندې دوی د کافرانو سره وعده کړے وه « بعد أن تبين لهم الهدى بقولهم للكفار ما قالوا فقط » دا صرف کافرانو ته خبر کړے وه چه مونږ ستاسو تابعداری کوو نو الله تعالیٰ دا خبره ظاهره کړه چه الله تعالیٰ د دوی پټ رازونه پيژنی ، او دا خبر مونږ ته الله پاک راکړه چه د دوی اعمال الله تعالیٰ برباد کړی دي ځکه چه دوی د الله د دشمنانو سره دوستی کړيده او د هغوی تابعداری ئې کړيده او چه کوم کسان چه د الله رضا بده ګڼړی نو دوی د هغو تابع شوی دي نو په دې باندې الله تعالیٰ د دوی اعمال حبط ( برباد ) کړل .

اوس وائی : چه کوم سړے ددې آيت په ذيل کې ددې آيت په تفسير کې د شيخ سليمان بن عبدالله رحمه الله تفسير ګوری نو د هغې شخص مطابق به دا نتيجه اخذ کړی پدې کې به ډير وخت اونه لګی چه کوم سړے د کافرانو سره دوستی او محبت قائم کړی او د اسلام او د مسلمانانو خلاف اقدامات کوی د کافر ايجنډا او د هغوی پروګرامونه نافذ کوی او هغوی ته لاس ورکوی ، او د هغوی پشان کردار اختياروی نو دغه سړے او هغه سړے چه د ده سره مخالف کيږی چه د کافر ګريوان نيسی او د الله تعالیٰ منصفانه شريعت نفاذ کوی او د هغه مطابق عدالتی نظام په حق کې اواز بلند کوی دا سړے د هغه مخالفت کوی نو چه دا سړے د هغه مخالفت کوی نو دا څه شے دے ؟

﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ ٱرۡتَدُّواْ عَلَىٰٓ أَدۡبَٰرِهِم مِّنۢ بَعۡدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ ٱلۡهُدَى . . . الآية ﴾[1] نو دا

---

[1] [ سورة محمد : ٢٥ ].

سړے مرتد دے نن په دې نام نهاد اسلامی ملکونو کې اوګوره دوی د کفر قوانينو ته بالکل تسليم دي ، خو که مجاهد راپاسی او په قوانينو او په حکومت کې د اسلام مطالبه اوکړی او مجاهد راپاسی او په هغه ملک کې اسلام اوغواړی نو بيا دوی د هغه سره دشمنی کوی او د هغه مخالفت کوی .

علامه ابن تيميه رحمه الله فرمائی : «**اما إذا قتله على دين الإسلام مثل ما يقاتلن الانصرانی على دينه فهذا شر من الكفار المعاهد فان هذا كافر محارب بمنزلة الكفار الذين يقاتلون النبی واصحابهم**»

چه کوم سړے په دين اسلام باندې د بل سړی سره جنګيږی په هغه ملک کې به ويډيو سنټر هغه نه ورانوی په هغه ملک کې سينماګانې وی هغه نه ورانوی ، په هغه ملک کې د زنا اډے وی هغه نۀ ورانوی ، په هغه ملک کې نور هر قسمه بې حيائی او شرکيات وی هغه نه ورانوی خو څه شی به ورانوی ؟ د الله تعالیٰ کور مسجد ورانوی ، د الله د قانون او نظام او کتاب الله سره جنګيږی د الله د دين بيانونکې او سپاهی سره جنګيږی څوک چه نظام د شريعت غواړی او يا ئې بيانوی د هغه سره جنګيږی دا سړے څه شی دے دا په مثل د هغه يهودی او نصرانی پشان دے چه د هغه سره په خپل دين باندې جنګيږی ، نو وائی چه : «**فهذا شرٌ من الكافر المعاهد**» داسی سړے د هغه کافر نه چه تاسو ورسره معاهده کړے وی نو د هغې نه هم ډير بدترين کافر دے «**فان هذا كافر محاربٌ**» او دا سړے حربی کافر دے او دا په منزله د هغه کافر دے چه «**يقاتلون النبی واصحابه**» چه د نبی ﷺ سره ئې جنګ کړے وو او د هغه د ملګرو سره ئې جنګ کړے وو .

اوس ددې آيت په ذيل کې مونږ سوچ اوکړو چه اوګوره الله رب العزت په زبانی او کلامی وعدو سره ئې په هغوی څومره رد اوکړو او د کفر فتوی ئې ورباندې اولګولے .

علامه ابن حزم رحمه الله فرمائی : «**من لحق بدار الكفر والحرب مختاراً محارباً لمن يليه من المسلمين فهو بهذا الفعل مرتدٌ له احكام المرتدين**» که يو سړے په خپله خوښه باندې دار

الحرب ته لاړ شي او بيا دغه سړے د کافرانو د طرف نه د مسلمانانو سره جنګيږی نو دا سړے پدې فعل باندې مرتد دے او د ده دپاره به احکام د مرتدينو وي .

او بيا فرمائی : « من وجوب القتل متی قدر عليه ، ومن اباحة ماله وانفساخ نکاحه » دا به واجب القتل وی چه کله هم په ده باندې قدرت حاصل شی او د ده مال مباح ( روا ) دے او ښځه د ده جدا ده يعنی نکاح د ده فسخه ده .

بيا فرمائی : « **وكذلك من سكن بأرض الهند والسند والترك والسودان والروم من المسلمين ، فأن كان لا يقدر على الخروج من هناك لثقل ظهر او لقلة مأل او لضعف جسم او لإمتناع طريق فهو كافرٌ** » .

دارنګه څوک چه پدې ملکونو کې وسيږی لکه هندوستان کې وسيږی دارنګه ترکی ، سوډان او په روم کې ( په هغه وخت کې پدې ملکونو کې کفر وو ) د مسلمانانو نه ، کچرے دا نشی راوتے نو د دې وجه نه چه دده کور مال يا افراد ډير زيات دي او يا مال ورسره کم دے دومره مال ورسره نشته چه هغه ورباندې را اوځی ، يا د جسم د کمزورتيا د وجه نه ، او يا لارے بندے وی نو دا خو ډير سخت دے نو دا هم ورسره کافر دے .

بيا فرمائی : «**ولو أن كافرا غلب على دار من دور الإسلام و أقر المسلمين بها على حالهم إلا أنه هو المالك لها المنفرد بنفسه فی دفعها وهو معلن بدين غير الإسلام لكفر بالبقاء معه كل من عاونه وأقام معه و ان ادعا أنه مسلم** » .

که يو سړے کافر دے او دا غالبه شو په يو دار د دار اسلام باندې او مسلمانان ئې په هغې کې مُقر کړل ، نو ددې فتوی خو ډيره سخته لګولے ده ، چه حاصل ئې دا دے : کچرته يو کافر د مسلمانانو په يوه علاقه غالبه شو او مسلمانان ئې پخپل حال باندې پريخودل چه نه مو وژنو هيڅ هم درته نهٔ وايو او دا مالک او منفرد بنفسه دے او دا اسلام نه بغير په بل دين باندې اعلان کوی علانيتاً ئې د اسلامی قانون په ځائی باندې ئې کفری قانون جوړ کړو نو دا فرمائی : چه « لكفر بالبقاء معه » چه څوک هغلته پاتې کيږی نو دا سړے کافر دے ، او

څوک ئې چه امداد کوی او څوک ورسره اقامت کوی پاتې کېږی ورسره اګر چه دا دعوی د مسلمانئ کوی خو بیا هم کافر دے .

نو د ده دا فتوی انتهائی سخته فتوی ده ، د اعانت مسئله خو مونږ هم منو چه په اعانت باندې سړے کافر کیږی او که د مجبورئ نه یو سړے پاتې کیږی اعانت نه کوی نو د هغې تکفیر بیا مونږ نۀ کوو ، او که یو سړے اعانت کوی نو دا سړے بیا کافر دے ، او داسې عبارت په مجموع الفتاوی د علامه ابن تیمیه رحمه الله کې راغلے دے .[1]

نو څوک چه د امت د اجماع نه جدا شی نو دا سړے هم مرتد دے .

علامه ابن تیمیه رحمه الله فرمائی : «**والإنسان متى حل الحرام المجمع عليه او حرم الحلال المجمع عليه، او بدل الشرع المجمع عليه كان كافراً مرتداً باتفاق الفقهاء** » .

کوم سړے چه حرام حلال اوګنړی چه هغه په اجماع د امت سره هغه شی حرام شوے وی یا د حلالو په حلت باندې اجماع شوے وی او هغه حرام اوګنړی او یا د یو شرعی قانون په ځائی دا بل قانون راولی نو دا سړے کافر دے مرتد دے په اتفاق د فقهاؤ سره .

اوس پدیکې حلل الحرام المجمع علیه په ټوله دنیا کې ګوره د مسلمان وینه تویول په ناحقه باندې حرام دي او په ناحقه د مجاهدینو وینه تویول دا خلق حلال ګنړی او کنه ؟

او که څوک ووائی : چه دا مجاهدین چه مسلمان وژنی ؟ نو هغه خو د تترس مسئله ده هغه خو مخکې بیان کړے شوه چه قصد خو د دوی هغه کافر او مشرک وی مسلمان خو نوی.

نو چا چه د مسلمان وینه حلال ګنړلے او حال دا چه دا حرامه ده ، او د مسلمان وینه حلال ګنړل دا خو کفر دے ، او څوک چه خپل قانون جوړ کړی بې ځایه د الله شریعت مو پریخودے دے او خپل شریعت مو جوړ کړے د الله اسلام پریږدئ او د ډیموکریټ اسلام تابعداری کوئ نو دا کفر دے او دا اتفاق د علماؤ دے پدې ارتداد باندې .

نو پدې وجه باندې پدې ځائی کې دوه قسمه جنګونه جوړ شو : یو جنګ د عقیدے او د

[1] [ مجموع الفتاوی : ٣٤ / ١٣٦ ـ ١٣٧ ] .

منهج او د دین په بنیاد دے او دویم جنګ د دنیاوی معاملے د وجه نه دے ، پدې وجه باندی که څوک دا وائی : چه مجاهدین تکفیر د مسلمان کوئ یعنی د بعضی نام نهاد اسلامی ملکونو مشران چه دوی علماء او مجاهدین قتلوی او اسلام ورانه وی نو دوی وائی چه حجاج خو صحابه قتل کړی وو د هغه تکفیر ولے نهٔ کوئ ؟

نو مونږ ورته وایو : چه د هغه تکفیر ځکه نه کوو چه هغه د دنیاوی شخصی مفاداتو د وجه نه د دنیاوی ذاتی بدئی د وجه نه یو سړے قتل کړیدے صحابی ئې هم قتل کړیدے مسلمان ئې هم قتل کړے دے ، خو د دین د وجه نه ئې څوک ندے قتل کړے بلکه چه کله د دین مسئله راغلے ده نو حجاج بیا خپل لښکر د کفر مخامخ اودرولے دے او د کفر سره ئې جنګ کړیدے نو پدې وجه باندې مونږ د هغه تکفیر نه کوو .

او هر چه د هغه خلقو تکفیر کوو نو هغوی چه کوم قتل کوی هغه په دین اسلام باندې کوی په عقیده د اسلام باندې ئې کوی ، الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَمَا نَقَمُواْ مِنۡهُمۡ إِلَّآ أَن يُؤۡمِنُواْ بِٱللَّهِ ٱلۡعَزِيزِ ٱلۡحَمِيدِ ۝٨ ﴾[1]

هغوی بل څه بد نهٔ ګڼړی مګر دا خبره بده ګڼړی چه دوی په الله تعالیٰ باندې ایمان راوړے «**من نصب الحرب على حق من حقوق الله فهو كافر يقاتل قتال الردة**» نو پدې جنګ او قتال باندې کافر کیږی او هغه په هغے باندې نه کافر کیږی .

دغه شان علامه ابن تیمیه رحمه الله فرمائی : «**فالذی يعتقد حل دماء المسلمين وأموالهم و يستحل قتالهم بأن يكون محاربا لله ورسوله كما قال تعالىٰ : إنما جزاء الذين يحاربون الله .. . الآية**» .

هغه سړے چه هغه دا اعتقاد لری د مسلمانانو وینه حلاله ګڼړی او د هغوی سره جنګ کول حلال ګڼړی نو دا سړے د الله سره جنګ کوی او دا خبره ئې ددې آیت نه فهم کړیده .

---

[1] [ سورة البروج : ٨ ] .

بيا وائی : چه هغه په مسلمانانو کې هم راځی ، دې دوه قسمه جوړه وی روستو دا وائی : چه دې په خپله فتاوی کې وائی چه علماؤ او سلف صالحینو دا خبره په دواړو ځایونو کې فِټ کړیده په هغه ځائی کې ئې هم فِټ کړیده چه کوم ځائی کې مسلمانانو ته راځی او په هغه ځائی کې هم فِټ کړیده چه په هغه کې سړے کافر کرځی ، نو په کوم ځائی کې سړے کافر نه کرځیږی چه په لاره کې کینی او لاره لوټ کوی پدې نه کافر کیږی ، خو کچرته یو سړے لاره لوټ کوی او دا حلال اوګنړی لکه نن چه څوک هم د مجاهدینو قتل حلال ګنړی او د مجاهدینو وینه حلاله ګنړی نو بیا دغه خلق په حقیقت کې د الله او رسول سره محارب دي ، لکه فرمائی : «**أو سعى في الأرض فسادا من هؤلاء كما ان الكافر الحربي الذي يستحل دماء المسلمين**» لکه څنګه چه حربی کافر د مسلمان وینه حلاله ګنړی ، او دا رنګه مال د مسلمان حلال ګنړی ، قتال د مسلمان سره جائز ګنړی «**اولى بالمحاربة من الفاسق الذي يعتقد تحريم ذلک**» بیا وائی : چه دا بدترین کافر دے د هغه نه چه دا کارونه حرام ګنړی خو بیا ئې هم کوی نو دا سړے فاسق دے ، او چه حلال ئې ګنړی نو دا سړے بیا بدترین کافر دے .

دارنګه علامه ابن تیمیه رحمه الله په بل ځائی کې فرمائی چه : «**وإذا كان السلف قد سموا مانعي الزكوٰة مرتدين مع كونهم يصومون ويصلون ولم يكونوا يقاتلوا جماعة المسلمين فكيف بمن صار مع اعداء الله ورسوله قاتلا للمسلمين**»

چه کله سلفو دا خبره اوکړه چه کومو خلقو د زکوة نهٔ ورکولو سره د دینه چه روژے ئې نیولے او سره د دینه چه مونځ ئې کولو او سره د دینه چه د مسلمانانو د جماعت سره ئې جنګ نهٔ کولو بیا هم ورته مرتد وئیل ، نو څنګه به کافر نوی هغه کس چه هغه د الله او د رسول الله ﷺ دشمن وی او د مسلمانانو سره جنګ کوی نو د کفر اعانت دهٔ په طریقه اولی سره اوکړو او دا کافر دے .

ده چه څه ټائیم په تاتاریانو باندې فتوی ورکوله چه بعضو خلقو په هغې کې اسلام قبول کړے وو او بیا به هم د مسلمانانو سره جنګیدل او یا به د هغوی په صف کې بعضی مسلمان

اودريدل نو دهٔ هغه ټائم کې فتوی ورکړے وه ، او بيا روستو د ده نه چا تپوس اوکړو چه که چرته د دوی په صف کې علماء اودريدل نو د هغوی به څه حکم وی ؟ نو ده بيا په آخر د فتوی کې ورسره اوليکل چه «وإذا رأيتموني فيهم و المصحف على رأسي فاقتلوني» کله چه ما د دوی سره په صف کې اووينئ او قرآن کريم زما په سر باندې پروت وی نو بيا مه هم قتل کړئ .

دغه شان علامه ابن حجر رحمه الله د يو حديث په ذيل کې فرمائی : چه هغه حديث کې راځی : «إذا نزل الله بقوم عذاباً أصاب من كان فيهم ثم بعثوا على أعمالهم» نو کله چه الله تعالیٰ عذاب راليږی نو الله پاک عام عذاب راليږی ټول خلق ورکې هلاک شی او بيا هر سړے په خپل عمل او عقيده باندې راپاسولے شی ، نو ابن حجر رحمه الله په " فتح الباری " کې ددې حديث په ذيل کې فرمائی : «وليستفاد من هذا مشروعية الحرب من الكفار ومن الظلمة لان الإقامة معهم من إلقاء النفس إلى التهلكة ، وهذا إذا لم يعنهم ولم يرض بأفعالهم فإن أعان او رضى فهو منهم» .

چه چرته کافران وی هلته مه وسيږه د هغې ځائ نه تخته ، مطلب دا ندے چه د جنګ نه تخته ، او د ظالمان نه هم تخته ، ځکه چه ته د هغوی سره اوسيږے نو په هلاکت کې غورځيږے د هغوی پشان ظلم به کوے او دهغوی پشان کفر به کوے د هغوی پشان اعمال به بيا کوے ، په هلاکت کې هله دے چه دا د هغوی اعانت نه کوی او د هغوی په افعالو باندې نوی خوشحاله ، او که دا خوشحاله وو او يا اعانت ئې ورسره اوکړو نو دا د هغوی نه دے ، يعنی د هغوی په مثل دے .

د عربو څلور جيد علماء کرام چه شيخ محمد بن عبداللطيف ، شيخ سليمان بن سمحان، شيخ صالح بن عبدالعزيز ، شيخ محمد بن ابراهيم رحمهم الله تعالیٰ دوی په يو ځائ باندې فتوی ورکړے وه ، دوه خارجی طرز کې فرقے وے يو عجمان وه او يو دويش د هغوی متعلق ترينه سوال اوکړے شو چه دوه فرقې داسې دي چه مسلمانانو په ښارونو کې خروج کوی او بغاوت

کوی اسلامی حکومت خلاف باوجود د دینه چه هغوی خپل ځان سیدنا جعفر بن أبي طالب ﷺ ته منسوب کوی او د هغه پیروکار ځان ګنړی ، او جعفر بن ابي طالب ﷺ د هغه د ملګرو د قدر او د منزلت نه هیڅوک آګاه نه وو چه دا خلق ځنګه وو او دا هغه عظیم خلق وو چه هغوی د الله او د رسول په خاطر باندې د مکې نه حبشو ته هجرت کړے وو دا خو هغه خلق دي ، او دوی دغه عظیمو هستو ته ځان منسوب کوی او په اصل کې دا دواړه فرق دا ګمراه دي خارجیان دي او مرتد قسم خلق دي او د خپل ځان دفاع کوی او دکافرانو سره یو شوی دی او د مسلمانانو خلاف جنګ کوی ، او په مسلمانانو باندې د کفر فتوی صادر وی ، نو د دوی به څه حکم وی ؟

نو دغه څلورو علماؤ بیا دا فتوی ورکړه : « **هؤلاء الذين ذكرهم السائل وهم العجمان والدويش ومن تبعهم لاشک فی کفرهم وارتدادهم** » دا خلق کافران دي او مرتد دي ولے ؟

« **لأنهم أن حازوا إلى اعداء الله ورسوله ، وطلب الدخول تحت ولايتهم واستعانوا بهم فجمعوا بين الخروج من ديار المسلمين وبين اللحوق لاعداء الملة وتكفيرهم لأهل الإسلام و استحلال دمائهم و اموالهم** » .

ځکه چه دوی د الله او د رسول د دشمنانو سره ځائی اونیوو ، او د هغوی د ولایت نه لاندې ئې ځان داخل کړو او د هغوی نه ئې امداد واغستو ، نو دوی په دوه خبرو کې جمع اوکړه یو د مسلمانانو د علاقې نه اووتل ، او بل لاړل د کافرانو د ملت سره ئې الحاق (پیوستوالے) اختیار کړو او بل دوی مسلمانانو ته کافر وائی د هغوی وینه او مال حلال ګنړی، نو پدې وجه باندې دوی کافر دي .

دغه شان علامه ابن تیمیه رحمه الله په زمانه کې د تاتاریانو فتنه راپاسیده او هغوی جنګ شروع کړو او فتوی ترینه طلب شوه نو ده په جواب کې اووئیل : « **من جهز إلى معسكر التاتار ولحق بهم ارتدّ وحل دمه وماله فإذا كان هذا فی مجرد اللحوق بالمشركين فكيف بمن اعتقد مع ذلک ان جهادهم وقتالهم لاهل الإسلام دين يُدان به هذا اولى بالكفر والردة** » .

چه څوک د تاتاریانو معسکر ته لاړو او هغوی سره ملحق شو نو د ده وینه او مال حلال شو او دا مرتد شو، او بیا ئی وفرمائیل: چه دا خو هغه سړے دے چه صرف ملحق شو د دوی سره او که چا بیا دا اعتقاد اولرلو چه مونږ چه کوم کار کوو نو دا جهاد دے او دا قتال دے او په دې کې د اهل اسلام فائده ده او دا مونږ دوی دپاره یو قانون او آئین راوړو چه دوی پدې قانون او آئین باندې روان شی لکه نن چه څوک د جمهوریت په بهانه باندې جنګونه کوی، نو دا وائی: چه دا په ارتداد او په کفر کې ډیر اولی دے دا غټ مرتد دے او غټ کافر دے.

او دغه شان حمدبن عتیق رحمه الله فرمائی: «**قد تقدم ان مظاهرة المشركين و دلالتهم على عورات المسلمين**» دا خبره تیره شوے ده چه امداد کول د مشرکانو سره او د مؤمنانو په پرده او د هغوی په پټو خبرو باندې دلالت (ښکاره) کول او یا د هغوی نه دفاع کول په ژبه باندې او یا رضا اختیار کې په هغه خبره باندې چه په کومه خبره دوی وی «**كل هذا مكفرات ممن صدرت منه من غير اكراه المذكور، ومن فعل ذلك فهو مرتدٌ، وإن كان مع ذلك يبغض الكفار ويحب المسلمين**» چه بغیر د اکراه نه دا کارونه د چا نه صادر شو نو داسړے کافر دے، اګر که دا سړے د کفارو سره بغض کوی او د مسلمانانو سره محبت کوی نو سره د دینه که چرته د هغوی په صف کې اودریدو د هغوی دفاع ئی اوکړه نو دا سړے کافر دے، نو دا سړے کافر شو او چه کوم سړے د حقیقی مسلمانانو سره بغض کوی او دکفارو سره محبت کوی دا سړے په طریقه اولی سره کافر دے.

بیا وائی: «**وقد تقدم فی ذلک فی غیر موضع وانما کررنا لعموم الجهل به وشدة الحالة الی معرفته**» چه ما پدې خپله رساله کې څو پیرے تیر کړل خو چه دا خبره مې دوباره بیا رانقل کړه ځکه چه خلق پدې باندې جاهلان ګرځیدلی دي، دا مسئله خلق نۀ پیژنی ځکه مې رامعاد کړه.

او بیا مزید وضاحت دا کوی چه: «**ان یوافقهم او الکفار فی الظاهر مع مخالفته لهم فی الباطن**» وائی: چه څوک د کافرانو سره دوستی اوکړی سره د دینه چه دا په زړه کې ورسره

مخالفت ساتی او دې د دوی په سلطان او قوت کې نوی داخل شوے «**اما حمله على ذلک اما طمع في رياسةٍ او مال او مشحّةٍ بوطن او عيال مما يحدث في المال**» بيا د حکومت يا د عهدے د طمعې د وجه نه ورغلے وی ، او يا دمال د وجه نه او يا د خپل وطن د دفاع دپاره چه په خپل وطن بخل کوی وطنيت پکې راغلے وی ، او يا په خپل عيال باندې ، او يا پدې خبره باندې يريږی چه په آينده کې به څه خبره راشی مسلمان به په شکست شی د طالبانو خو دومره قوت نشته او زه د دوی سره په صف کې اودريږم نو صبا به دا قوت ختم شی نو زه به بيا څه کوم ، نو دا کار چه چا اوکړو نو «**فإنه في هذه الحال يكون مرتداً ولا تنفعه كراهته لهم في الباطن**» دا سړے مرتد دے او دته په زړه کې د هغوی نه کراهت هيڅ فائده نه ورکوی ، او الله تعالیٰ ددې سړی په باره کې فرمائی : ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمُ ٱسْتَحَبُّوا۟ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا عَلَى ٱلْـَٔاخِرَةِ وَأَنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴿١٠٧﴾ ﴾[1]

دا رنګه شيخ سليمان رحمه الله فتوی ورکړے په اشعارو کې فرمائی :

و من يتول ا لكا فر ين فـمـثـلـهم ولا شـــک في تكفيره عند من عقل
ومـن يـواليـهـم ويـركـن نحـوهـم فلا شـــک في تفســيقه وهو في وجل
وكل محـــب او مـــعـين ونـاصر ويظهر جهراً للموفـاق عن العمـل
فهم مثلهم في الكفر من غير غيبةٍ وذا قول من يدرس صـوابا من الضـلل

څوک چه د کافرانو سره دوستی کوی دا ده په مثل باندې دے * او چه په چا کې عقل وی نو د ده په تکفير کې به هيڅ شک اونکړے * او څوک چه د دوی سره دوستی کوی او دوی طرف ته ميلان کوی * نو د ده په تفسيق کې هيڅ شک نشته سره د دينه چه دا په خوف کې وی يعنی چه د خوف د وجه نه ورسره دوستی کوی نو په ده باندې د فسق فتوی ده ، او چه څوک ورسره محبت کوی يا امداد کوی نو دا ورسره جهراً موافقت کوی په عمل کې بغير

---

[1] [ سورة النحل : ١٠٧ ] .

د شک نه دا د هغوی پشان په کفر کې دے او دا قول د هغه چا دے چه څوک حق پیژنی د غلطے لارے نه ، په غلطه لار باندې نه روانیږی او په حقه لار روانیږی .

عبدالله بن باز په سعودی کې غټ عالم تیر شویدے زمونږه د شیخ صاحب استاد هم وو ، هغه وائی : چه **«إن الذين يدعون الاشتراكية او الشيوعية او الجمهورية من المذاهب الهادمة المناقضة لحكم الإسلام كفارٌ ضلالٌ اكفر من اليهود والنصارى لانهم ملاحدةٌ لايؤمنون بالله ولا باليوم الآخر ولايجوز أن يجعل أحدٌ منهم خطيباً و اماماً فى مسجد من مساجد المسلمين ولا تصح الصلوٰة خلفهم وكل من ساعدهم على ضلالهم وحسَّن مايدعون اليه وذمّ دعاة الإسلام»** .

هغه خلق چه هغوی دعوت اشتراکیت طرف ته ورکوی او یا شیوعیت طرف ته دعوت ورکوی یعنی دهری او کمیونزم طرف ته دعوت ورکوی او غیرهما دے خو دا لفظ وائی ددې غیرهما نه نور مذهبونه مراد دی خو ته ددې په ځائی ورسره دا اوائی یعنی او لجمهورية والديموكراسية جمهوریت او دیمکراسی طرف ته دعوت ورکوی هغه مذاهب چه هغه د اسلام حکم ماتوی او د اسلام حکم ورانوی ، دا کافران دي او ګمراه دي دا د یهودو او نصاراؤ نه غټ کافران دي ځکه چه دا ملحدین دي دوی نه په الله ایمان راوړی او نه په آخرت باندې ایمان راوړی او نه دي پکار د دوی دپاره چه اوګرځولے شی یو د دوی نه خطیب او امام په یو مسجد کې د مساجدو د مسلمانانو نه او دداسې ملا شاته مونځ هم نه کیږی مونځ ئې نه صحیح کیږی ، او څوک چه پدې ګمراهۍ باندې تقویت ورکوی د هغه تائید کوی او د هغه سره اودریږی او دهغه تحسین کوی چه کوم دعوت هغه چلوی او وائی چه دا ښه دعوت دے او په دعاتو د اسلام باندې ذم کوی او وائی چه دا طریقه غلطه ده دا نده صحیح او د هغوی طرف ته اشارے کوی چه دا مسلمانان په غلطه دي ، نو بیا دا فرمائی : **«فهو ضالٌ حكمه حكم الطائفة الملحدة التى صارت فى ركابها و ايدها فى طلبها»** دا سړے ګمراه دے د دې حکم پشان د حکم د طائفی ملحدے دے چه د هغوی په رکاب کې ناست وی چه کوم ئې صرف تائید

هم كوى نو دا د هغوى پشان دے او دا هم د هغوى په قوت كې داخل دے .

او بيا په آخر كې فرمائى : « **وقد أجمع علماء الإسلام على أن من ظاهر الكفار على المسلمين وساعد عليهم بأى نوع من المساعدة فهو كافر مثلهم** » .

او علماؤ د اسلام پدې خبره اجماع كړيده چه چا د كافرانو امداد اوكړو په مسلمانانو باندې او چا چه په هرے طريقې سره د هغوى امداد اوكړو دا د هغوى پشان كافر دے .

« كما قال الله تعالىٰ : ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُواْ ٱلْيَهُودَ وَٱلنَّصَٰرَىٰٓ أَوْلِيَآءَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُۥ مِنْهُمْ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ۝٥١ ﴾[1]

وقال تعالىٰ فى مقام آخر :

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُوٓاْ ءَابَآءَكُمْ وَإِخْوَٰنَكُمْ أَوْلِيَآءَ إِنِ ٱسْتَحَبُّواْ ٱلْكُفْرَ عَلَى ٱلْإِيمَٰنِ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ۝٢٣ ﴾[2]

## تمـــت بالخـــير

[1] [ سورة المائدة : ٥١ ] .

[2] [ سورة التوبة : ٢٣ ] .